وزن الكلام اذا نطقت فإنما يبدي عيوب ذوي العقول المنطق

# تحسینات

پښتو شرح

# مرقات



تالیف
حضرت مولانا حسین علی حفظه الله
خریج جامعه دار العلوم کراچی نمبر ۱۴
استاد بجامعه تبلیغ القرآن پشاور

المکتبة الحقانیة

وَزِنِ الْكَلَامَ إِذَا نَطَقْتَ فَإِنَّمَا
يُبْدِیْ عُيُوْبَ ذَوِی الْعُقُوْلِ الْمَنْطِقُ

# تحسینات

## (پښتو)

# شرح مرقات

**تالیف** : حضرت مولانا ابوحماس حسین علی حفظه الله
خریج جامعه دارالعلوم کراچی نمبر ۱۴

**ناشر**
مکتبه حقانیه، محله جنگی ، قصه خوانی، پشاور

دکتاب نوم : تحسینات (پښتو) شرح مرقات.
تالیف : حضرت مولانا ابوحماس حسین علی حفظه الله
خریج جامعه دارالعلوم کراچی نمبر ١٤
تصحیح ونظر ثانی : مؤلف په خپله.
دچاپ کال : ۲۰۱۸ء
ناشر : مکتبه حقانیه، محله جنگی، قصه خوانی، پشاور.
زیراهتمام : الحاج مولانا جلال الدین حقانی حفظه الله.

# التقريظ المنظوم

لاستادنا واستاد العلماء بقية السلف ومرشد الخلف صاحب العلوم الوهبانية والتصائد الزكوانيه ابو عصام علامه فضل الحق عصمه الله من شر ما خلق مدير الجامعه كوثر القران باجوړ .

حمدتُ الله حمد العابدين　　تقبلْ يا اِلٰه العالمين
وصلينا علىٰ سيد الانام　　امام الانبياء والمرسلين
واما بعد ذٰلك يا حبيبي　　ويا اخوان قوم شائقين
لمرقاتٍ يسر الناظرين　　أفادبها الحسين علىٰ اخونا
مفيدات لطرز الماهرين　　ففيها حسن اقوال و معنیٰ
و فيها مقصدٌ للشائقين　　كتاب فيه فائدة كثيره
و فيه سقاية للعاطشين　　وفيه فوائد و جواهرات
و فيه هداية للجاهلين　　وفيه لطاءفات مُعجبات
و فيه كفاية للطالبين　　و شرح فيه تحقيق عجيب
تحقّق فيه طرز السابقين　　اَلَا يا طالب المرقات خُذهُ
تعلّمْ منه علم الاجودين　　جزى الله المؤلف خير اجرٍ
و اكرمه بدار المتقين　　ابوالاحسان يهديكم قريضا
لعقد لؤلئات الناظمين　　ويُوصيكم باخلاصٍ و تقوىٰ
و يوصيكم بفعل الصالحين

رقمه الاحقر الاقصر ابوالاحسان فضل الحق　الباجوري سلمه الباري

# تقریظ

للشیخ التقی، النقی، الصفی، الزکی، عمدة السلف، وقدوة الخلف ، جسیم العلم ، فخیم الحلم، جوهرالعالم وقطب الخاتم، جامع المعقول والمنقول، استادنا واستاد العلماء، ابو بلال علامه عبدالحلیم، صانه الله من الشیطن الرجیم، وادخله دار النعیم

مدیرالجامعة الربانیة سوات .

---

"الحمد لله الذی خلق الانسان وعلمه البیان والصلوة والسلام علی سید الانس والجان الذی لولا ارسله لما کشف ظلمة الکفر عن وجه الاسلام وعلی اله البررة الکرام ،

اما بعد،

فقد طالعت عدّة مواضع من "تحسینات" التی هی حاویة علی مسائل المنطق وحل المرقات، محتویة علی تحقیقات وتدقیقات خلا عنها الزبر المتداولة. للفاضل الفطین، المتصف بوصف حسین، المتخلق بالأخلاق الحمیدة، المتشرف بالعلوم العملیة والنظریة، المؤدب بالأداب، المتحلی باحسن الاوصاف، اعنی مولانا حسین علی، اللهم بارك فی عمره وعلمه،

اللهم اجعلها مشتهرة بین العلماء والطلباء وارزقنا ولمؤلفها الجنة فی العقبی فانك اهل التقوی

-

وأنا احقر، عبد الحلیم، صانه الله عن الرجیم، وادخله دار النعیم.

١٤ ذی الحجه ١٤٣٨ھ

٦ ستمبر ٢٠١٧ء

# تقریظ

للجامع المعقول والمنقول شمس العلماء وقدوة الفصحاء استادنا المحترم والشفيق المكرم غرّة الكرام ودرّة البشام ابو طاهر علامه نورالحق عصمه الله رب الفلق (مدير الجامعة الطاهرية بشام).

---

بسم الله الرحمٰن الرحيم

الحمدلله الذى اشرف العلماء بشرافة العلم واخرج الممكنات الى الوجود بعد ما كانت على شفا عدم وسلبٍ ثابت ومَنَّ على العلماء باشاعة العام الى الآفاق والاطراف والصلوٰة والسلام . على سيد الانبياء والمرسلين وعلىٰ الهٖ و اصحابه اجمعين.

اما بعد: فقد سرحت النظر القاصر على بعض مواضع "تحسينات" لشرح المرقات فوجدته جامعًا للاشتات والخفيّات ومفيدا للطلباء فى الحال والمآل وكافيا للعلماء المدرسّين جزى الله المؤلف اجراً جزيلاً وغفر ذنوبه حين حياته ورحم عليه بعد مماته وحفظه من الفزع الاكبر يوم لا ينفع مال ولا بنون الا من اتى الله بقلب سليم برحمتك ياارحم الراحمين.

و أنا احقر ابو طاهر

نور الحق عصمه الحق

عن زلة وزيغ عن الحق

مدير الجامعة الطاهرية لاشاعة التوحيد والسنة بشام

# تقريظ

للعلامة المحقق، والفهامة المدقق، جامع العلوم العقليه و حافظ العلوم النقليه ، بحر العلوم ، و بدر النجوم ، استادنا الرباني و فلك المعالي الشيخ عبدالله چارباغي. (شيخ الحديث بجامعه منار التوحيد سوات)

---

الحمد لله رب العالمين و الصلاة و السلام على افضل الانبياء و المرسلين محمد وعلى آله و اصحابه اجمعين .

اما بعد. فقد طالعت بعض الاوراق من هذا الشرح للمرقات الذي كتبه و رتّبه الأخ الفاضل المحترم حسين على بارك الله في عمره. فقد علمت ان الاخ قد سعى في جمع هذا الشرح سعيا مجهودا و مشكورا. ووجدته مفيدا لطلبة العلم بل للمدرسين في المدارس لكتاب المرقات في علم الميزان و اسئل الله تعالى ان يجعله نافعا للعامة و الخاصة من اهل العلم تقبل الله لجهده و خدمته في جمع هذا الشرح آمين.

وأنا الاحقر عبدالله عفي عنه چارباغي ، سـ

٦ صفر ١٤٣٨ه ، اكتوبر ٢٠١٧

# تقریظ:

للادیب الاریب والفاضل اللبیب، البارع فی العلوم و الفائق فی الفنون، علامه ابو الحسنات، وقاه الله عن السیئات.

---

"الحمد لله رب الارض والسموات والصلوة علی سید المخلوقات، وعلی اله واصحابه الطیبین والطیبات، وعلی اتباعهم الطاهرین والطاهرات۔

وبعد، فقد سرحتُ النظر القاصر بالعجلة علی اوراق تحسینات، فوجدتها کافیة شافیة بعد ما کانت کاشفة عن معضلات المرقات، ومِرأة لحل المغلقات، کیف لا تکون ومؤلفها مستفید من الاکابر کانهم بدور ساطعات.

و استفاض من الافاضل،حتی فاز تحت الوفاق بالدرجات، وتخرّج من دارالعلوم کراتشی، بادعیة الاساتذة مستجابة منشورات، اللهم اجعلها نافعة واضْعِفْ نفعها کحبةٍ سبعِ سنبلات، و لمؤلفها ذخرة لیوم الملاقات، وحسنةً من الباقیات الصالحات، وللمعلمین والمتعلمین نعمة مترقبةً کا الولد المحترم بعد سبع بنات، وللمعلمات والمتعلمات نعمة غیر مترقبة کوجود المفقود بعد شهرته بالممات، ولعامة المؤمنین مسکاً سمیکاً فی الرائحات، اللهم اغفر لعامة المسلمین خصوصا لابی الحسنات. واخر دعوانا أن الحمد لله رب البریات۔

# مقدمه

از ـ المحاضر الاسلامي . حضرت مولانا مفتي محمد آياز صاحب حفظه الله.
رئيس الجامعه تبليغ القرآن پشاور

---

بسم الله الرحمن الرحيم

ديني علوم دوه قسمه دي يو (علوم عاليه )شرعيه دويم قسم (علوم آليه) ذريعه. بيا علوم شرعيه بنيادي طور درى دى. قرآن ، حديث او فقه او ورسره نور متعلقات دى لكه اصول تفسير ، علوم القرآن ، اصول حديث ، علوم حديث، اصول فقه وغيره .

بهرحال علوم شرعيه اصل دا درے علوم دى چه په يو روايت كښې ورته اشاره هم شوے ده.

سيدنا عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه فرمائي چه نبي كريم ﷺ فرمائيلے دى چه .. العلم ثلاثة آية محكمة او سنة قائمة او فريضة عادلة وما كان سوي ذالک فهو فضل ..(رواه ابو داود . ابن ماجه . مشكوة ـ كتاب العلم ـ الفصل الثاني )

يعني حقيقي بنيادي شرعي علوم درې دي د قرآن محكم آيتونه، سنت (احاديث) ثابته په سند سره او احكام مستنبطه يعني فقه ، او د دے نه علاوه نور زياتي علوم دي .

د دى دريو بنيادي شرعي علومو نه علاوه څه اضافي علوم دى كوم چه دے دريو ته د رسيدو ذريعه ده هغه صرف ، نحو ، لغت ، بلاغت ، ادب منطق ، فلسفه او هندسه چه په كښې رياضي، جغرافيه او فلكيات تمام فنون شامل دى.

بيا په دے علوم آليو كښې اولني خو هغه دي چه د هغى نه بغير په قرآن ، حديث او فقه پوهه نه راځى . لكه صرف نحو ، بلاغت ، ادب او عربيت .

او دا آخري چه فلسفه ، هندسه ، منطق دي . دا هغه معقولات دي چه د علمِ شرعي فهم خو په دے نه دے بناء، البته په بعض مواقع باندے پكاريګي . او تشحيذ ذهني ورسره راځى .

## د حصول علم ذرائع

چونكه بنيادى علوم دوه قسمه دى علوم شرعيه ، علوم آليه، نو دغه رنګ د دى علومو د حاصلولو ذرئعے هم دوه دي .

دَ اول قسم ذريعه وحي ده او د دويم قسم ذريعه د انسان،عقل، مشاهده ، قياس اوتجربه ده .

دا اوله ذريعه قطعي ده نو په دی اولي ذريعے يعني وحي سره حاصل شوے علم هم قطعي دے.

او دا دويمه ذريعه ظني ده نو د دی دويمے ذريعے په واسطه حاصل شوے علم به هم ظني وي. کله به صحيح وي او کله به غلط يعنی د وحي غوندے قطعي هم نه دے خو بالکل بے اصل او سراسر ناقابل اعتبار هم نه دے، بلکه دا قسم علم او د دی د حاصلولو ذريعه، د الله تعالي د قدرت ورکړه ده. دا علم او د دی د حاصلولو قوت هم الله تعالي خپل مخلوق ته ورکړے دے. دے دپاره چه خپل مشاهدات، تجربات او عقل پکار راولي، او صحيح نتيجے ته د رسيدو کوشش اوکړي.

## يوناني منطق او فلسفه

په اوله او دويمه صدئي کښې مسلمانان د دی علومو نه نا واقف وو او په ساده طريقه د قرآن، سنت سره وابسته وو او په خپل دين ئے بغير د څه چون چران نه عمل کولو خو چه په دريمه صدئي کے اسلام د عربو نه عجمو ته اورسيدو نو په عين دغه وخت کښې د يونان فلاسفه د عقل پرستي په لار په اسلام حمله آور شو او د الله په ذات، صفاتو او احکام اسلام باندے اعتراضونه شروع کړل، نوی مسلمانان چه په هغوی کښې لا دَ عقل او ايمان پوختګي نه وه راغلی، هغوي ترې متاثره کيدل. نو دا ضرورت محسوس کړے شو چه د دے عقل پرستو دا فلسفه ايزده کړے شي او د دوي په ژبه د دوي جواب اوکړے شي لهذا په دريمے صدئي کے د مامون الرشيد په وينا يعقوب بن اسحاق الکندي(م: ۲٥٦ھ) د يوناني منطق د بحث او مناظری ابتدائي اصول د يونانئي نه عربئي ته ترجمه کړل او ابو نصر فارابي(م ۳۳۹ھ) ورله ترقي ورکړه او د د نه سل کاله بعد بو علي سينا(م ٤۲۸ھ) دا فن ازسرنو مرتب کړو. په مسلمانانو کښې د دے فن نه په نورو علومو کښې پوره کار اخستونکے او د علم کلام بنياد ايخوستنکے د چه امام غزالي[رح] (م٥٠٥ھ) دے او په مغربي علماؤ کښې ابن رُشد (م ٥٩٥ ھ)(دي دواړو) يوناني فلسفه او منطق دَ اسلامي تعليماتُ خادم او د ديني علومو دپاره د آله په طور پيش کړو. تر دی چه د شپږمے صدئ په آخر کښې دا فن د اسلامي علومو يو جز جوړ شو. په دغه دور کښې د دی فن اهميت امام غزالي ته د منسوب قول نه کيګي چه هغه وائي ،، مَن لَم يَعرِف المنطقَ فلا ثقة له في العلوم اصلا.. (کشف الظنون عن اسامي الکتب والفنون. لملا کاتب چلپي رح)

امام غزالي په اوله اوله کښې په فن منطق کښې کتابونه اوليکل، تر دې چه په اصول فقه باندې اوني خپل تصنيف "المستصفي" کښې ئې د منطق اصول داخل کړل خو چه کله پرې د تصوف غلبه راغله نو په "تهافة الفلاسفة" کښې د يوناني منطق د مسائلو تناقض ښکاره کړو او د دې فن ابطال ئې اوکړو. ابن رشد د امام غزالي د دلائلو ترديد اوکړو، او ويئويئل "يوناني فلسفه او منطق مثال د اوسپنې دې لکه چه د عربي مقوله ده" الحديد للحديد يقطع يعني دَ دې نه دَ تعمير او د تخريب دواړه کاره اخستې شي ،د اسلام خلاف هم استعمالى دې شي او په تائيد کښې هم ،ګويا دغه وخت منطق د مسلمانانو فن جوړ شو، خو بيا د الله په مشيت سره په اتمه صدئي کښې يو قدآور شخصيت شيخ الاسلام امام ابن تيميه رحمه الله (م ۷۲۸ھ) کښې پيدا شو. دا عين هغه وخت وو چه د منطق شهرت وه، هيڅ کتاب چه د هر فن به وو د منطق نه بې نيازه نه شو کيدے. دغه وخت کښې شيخ الاسلام په دې فن تنقيد اوکړو او يو مستقل رساله " الرد علي المنطقيين " ئې اوليکله او دنيا ته ئې اوخوده چه اصولِ شريعت کښې د هر اعتراض جواب شته دے، مونږ ته په دلائلو کښې د يونان د منطق نه مدد اخستلو ضرورت نشته. ،، په يو مقام کښې ليکى چه " اما بعد فاني كنت دائماً اعلم ان المنطق اليونانيه لا يحتاج اليه الزكي ولا ينتفع به البليد "

"څه په دې خبره پوهه ووم چه يوناني منطق ته ذهين سړى له ضرورت نشته او غبي سړے د دې نه فائده نه شي اخستلے،، په دغه زمانه کښې تفسير، بلاغت ، اصولِ فقه کښې شايد څه کتاب داسے نه وو چه په هغه کښې د منطق ملاوټ نه وو. بعض تفسيرونه خو بالکل په دغه رنګ کښې ليکلے شوى وو لکه تفسير کبير د امام رازي۔

## برصغير او يوناني منطق

اوومه صدي کښې چه کله مسلمانانو خپله علمي ورثه ځان سره برصغير ته راوړه نو په دغه علومو کښې د دوي سرمايه هم دغه منطق وو او دلته دے فن ته ډير زر لوي مقبوليت ملاو شو ، تر دى چه په يو وخت کښې په درس نظامي کښې شپاړس کتابونه د منطق شامل درس وو۔

ملا نظام الدين په دے فن کښې کتاب اوليکه او د هغه ځوي ملا بحر العلوم په هغے شرحه اوليکه ۔ د ملا محب الله بهاري سلم العلوم تقريبا سل کالو پورى په برصغير کے چرچه وه او بے شميره شرحى اوليکلے شوي او بيا هغه شرحى هم شامل درس وے لکه قاضي مبارک او حمد الله۔

بل طرف ته دا هم يو حقيقت دے چه يونان کښ د منطق رواج ختم شو او د يورپ او مغرب (فرنګيانو) په استقرائي منطق باندے محنت شروع کړو او د سائنس او ټيکنالوجي (science & technology) دپاره نوی انکشافات او ايجادات (New inventions) ئي شروع کړل . دلته مسلمانان په هغه زړه مورچه کښې پراته وو چه د کومې نه چي د دشمن فوج وړاندی تلے وو او هغوی په دی موجوده دور کښ د جديدو مورچو نه په اسلام حملے شروع کړی. خو مونږ اوس هم په زړه مورچه کلک نختي يو. اوس پکار ده چه مونږه (د پخوانو مورچو نه دَ اسلام حفاظت سره سره ) د دشمن د هغه نوو مورچو نه واقف شو، او د هغوی د مقابلې دپاره ځان تيار کړو او دَ هغوي په نوی انداز او طريقه واردات پوهه شو او د دے نوی شبهاتو جواب اوکړو ، چه د نن نوجوان نسل د هغوي د الحاد نه بچ شي .

الغرض عام طور دَ دے فن حمايت کونکی د منطق دوه فائدے ذکر کوي.

۱: يو د قدماء په کتابونو پوهه

۲: دويم تشحيذ اذهان (يعني د ذهن تيزيدل) .

په دے اولنئي فائده کښ خو د څه انکار ګنجائش نشته دا يو حقيقت دے، بهرحال دا فائده د علم منطق قابل تسليم ده . او د دی فائدی پيش نظر موجوده علماؤ او خصوصا وفاق المدارس د منطق څه کتابونه په نصاب کے شامل پريخی دي، په دی خاطر چه د سلفو بعضی کتابونه او بعضی تفاسير چونکه په دی رنګ ليکلے شوی دي نو د ضرورت په بنياد په دے فن پوهه پکار ده . نو په دغه تدريسي کتابونو کښ يو کتاب په درجه ثانيه کښ د مرقات په نوم د پخوا زمانی نه شامل درس دے . زمونږ د جامعه تبليغ القرآن يو قابل مدرس مولانا حسين علی صاحب مدظله العالی چه خصوصا په منطق او فلسفه کے ورته الله تعالي ډيره پوهه ورکړی ده، او په جامعه کښي د نورو فنونو سره سره خاص کر د منطق معياري تدريس کوي. په "مرقات" کتاب ئي يو بهتر او نوی طرز سره شرح ليکلی ده، الله تعالي دی د دوي په قلم کښ برکت واحوي او دا کتاب دی د مدرسينو او د طالبانو دوارو دپاره مفيد ثابت کړي. هذا ما عندي والله اعلم.

ابو معاويه محمد اياز درانی

خادم جامعه تبليغ القرآن يوسف آباد پشاور

اخــــي فـــي اللّٰه......................!

شريــطـنــا علــى قـــارئ كتـــابـنــا الاقـــصــار عـــن طلـــب عيـــوب خـــطاءنــا . والصـــفح عـــن مـــا يـــقـــف علـــيه مـــن إغـــفــالنـــا . و التـــجـــاوز عـــن مـــا ينـــتـــهى اليــــه مــــن اهـــمـالنـــالانــــه قـــد تـــقـــدمنـــا بـــالاقـــرار . ولا بـــد لـــلانـــسان مـــن زلـــل و عثـــار. و لـــيس كل المـــنـــطـــق عـــرفـــنـــاه وعـــلـــيــنـــا فـــي ذالــك الاجـــتـــهاد و الـــي اللّٰه الارشـــاد . و قَـــلّ مـــا نـــجـــا مـــؤلـــف لـــكتاب..

ـــه

عـــلى انـــمـــرء ان يـــسعـــى ويـــبـــذل جـــهـــده

ويـــقـــضـــى الـــــه الـــــحـــق مـــاكان قـــاضـــيـــا

(احقر حسین علی حفظہ اللہ)

سند الكتاب من الشارح (حسين على حفظه الله الى المصنف فضل امام رحمه الله)

أخبرنى به الشيخ عبد الحميد حفظه الله بقرأتى عليه هذا الكتاب (من اوله الى اخره) قال أخبرنى به الشيخ صبحى بن جاسم البدرى السامرائى، عن عبد الكريم بن العباس الشيخلى أبي الصاعقه .عن خير الدين النعمان بن ابي الثناء محمودا لآلوسى .عن السيد صديق حسن خان القنوجى .عن صدر الصدور صدر الدين خان الدهلوى .عن فضل امام خير آبادى.



(1) فضل امام خیرآبادیؒ

# حرفِ اول



الحمد لمن قدّر خیرًا وّ خبالًا
والشکر لمن صوّر حسنًا وّ جمالا

فرد صمدٌ عن صفة الخلق بریٌ
رب ازلیٌ خلق الخلق کمالا

ذو القوة ذو الفضل ذي اطول ملیک
ما روّح للارض جُنُوْبًا وّشمالا

لا ضِدّ ولا نِدّ ولا حَدّلِربّی
الْاٰن کما کان ولم یَلْقَ زوالا

لا جسم ولا جوهر لا جِرمَ لِرَبّی
لا ثانی لا ثالث لا شِرک تَـلَالا

ثُمَّ ارحَمْ عَبدَکَ حُسَینَ عَلِیٍّ
عِلمًا وَّبَیَانًا وَّجَمَالًا وَّکَمَالا

فِی کُلِّ صَبَاحٍ وَّمساءٍ وزوالا



مادرِ علمی جامعه دارالعلوم کراچی نه د فراغت نه بعد بفضله تعالی وکرمه او د استاذانو د دعا په وجه بنده مسلسل د درس او تدریس شعبی سره منسلک دے چه په دغه سلسله کښې بنده ته د مختلف فنونو د تدریس موقع راغلی ده. چه په هغې کښې علم تفسیر، علم فقه، علم اصول فقه، علم بلاغت، کلام، نحو، حکمت شامل دي.

مذکوره فنونو سره د علم منطق بعض کتابونو تدریس همیشه د غاړی هار جوړشویدے چه په هغې کښې مرقات (چه دا د علم منطق مشهور او مفید کتاب دے) په جامعه تبلیغ القران پشاور کښې د پړهائي سعادت د کافی وخت نه د بنده په ذمه دے. الحمد لله بنده سره د کم علمئ او کم استعدادئ نه په شوق سره د

کتاب مذکوره پړهائي کوي . او هرکال په طالبانو او طالباتو کښ مثبت تبديلي ويني .
چه د مرقات وئيلو نه بعد اکثر طلباء او طالباتو ته دعلم منطق اکثر اصطلاحات مختصر تحقيقات ، ضروری تعريفات ازبر وي . تير کال د مرقات ابتدائي بحثونو دوران کښ بعض طالبانو د دې خواهش اظهار وکړو چه د مرقات دا مخصوص انداز که د يو تقرير په شکل کښ محفوظ کړے شی نو مونږ او نورو طالبانو ته به ډيره اسانه شی نو بنده د تقرير ليکلو بعض کسانو لره اجازت ورکړو نو هغوې د درساً درساً سبق ليکلو نه بعد بنده وقتاً فوقتاً په هغې نظر ثانی کوله ، د يو مرحلې نه بعد بنده خپله دا تقرير ليکل شروع کړل او تقريبا په دويم کال کښ دا تقرير مکمل شو .
بيا د تصحيح د پاره د بعض ملگرو په خدمت کښ پيش شو . هغوې دا تقرير ډير جامع او نافع اوگنړلو . (فجزاهم الله خيرا ) او بنده نه يې مطالبه وکړه چه دا دې کتابی شکل کښ شائع شي . بنده هم په دې اميد چه واجب تعالی به دا د مدرسينو ، طلباء او طالباتو د پاره نافع اوگرځوي ، د طبع کولو اراده وکړه . باری تعالی د طباعت ټول اسباب اسان کړل اوس د ناظرينو په مخکښ د تحسينات شرح د مرقات په شکل کښ حاضر دے .
په اخر کښ يو څو خبری ناظرينو کرامو ته حواله کول غواړم :
۱ : دا شرح ما د مختلفو کتابونو او د استاذانو د استفاداتو نه راغونډه کړي ده . زما خپل اختراعات ډير کم دي . دغلطی قوی امکان دے . د تصحيح کما حقه اهتمام نه دے شوے که شرح کښ لفظي ، معنوي ، تحقيقي يا نقلي غلطي وي نو دتصحيح کولو بخل بالکل مه کوئ . او په مطلّع کولو باندی به شاکر يم .ځکه د عربئ يو مشهوره مقوله ده :
"من الّف کتابًا فقد اُستشرف واذا اصاب فقد اُستهدف واذا ما اخطأ فقد اُستقذف" او يو شاعر هم فرمائي :

وعين الرضاء عن کل عيب کليلة ولکن عين السخط تبدی المساويا

وقال اخر :

ابی الله عن تصحيح غير کتابه وکل کتاب غيره زل قائله

**دویمه خبره**

دا ده چه بعض مقاماتو کښې د مشهور قول او تقریر نه عدول شوے دے . او جدید او راجح قول اختیار کړے شوے دے او ورسره مضبوط دلیل او شاهد هم ذکر دے . امید دے چه اهل تحقیق حضراتو په نزد زمونږ دا اقدام قابل تعریف وي . او که بعضی اهل نظر حضرات په دی عمل څه نظر لری نو د اختلاف حق لری ...خو د انتشار نه! ......

سر محفل جو بولوں تو زمانے کو کھٹکتا ہوں
رہوں میں چپ تو اندر کی بغاوت مار دیتی ہے



ستعلم لیلیٰ اَیَّ دین تداینت
وایُّ غریم للتقاضی غریمها



**دریمه خبره :**

د مرقات معتمد علیها شروح په بازار کښې دستیاب دی لیکن مونږ په دی خپل شرح تحسینات کښې د لاندینی خصوصیاتو لحاظ ساتلے دے ، د دغی وجی نه به دا شرح انشأالله د(کالشمس بین النجوم ) مصداق وی .

١ : د کتاب د حل سره سره د فن د آسانولو کوشش کول .

٢ : اکثر مقاماتو کښې د رسمی مثالونو سره سره عرفی او محاوراتی مثالونه پیش کول .

٣ : د فلاسفؤ بعض غلطی خبری په مضبوط دلیل سره رد کول .

٤ : د استاذانو او د فطین طالبانو د علمی اضافی د پاره بعض مقاماتو کښې تحقیقی حاشیه لګول .

٥ : د منطق د اعلیٰ کتابونو بعض مسائل په اسانه طریقه ذکر کول .

٦ : بعض مقاماتو کښې شاندار وضاحت د پاره د پښتو او اردو مشترک مثالونه ذکر کول.

۷ : بعض اهم مباحث د (فائدةٌ) یا د (خبردار) په عنوان سره ذکر کول.

۸ : بعض مقاماتو کښې د ضروری خبری تحقیق باحواله درج کول.

۹: دمصنفؒ بعض تسامحاتو نشاندهی کول.

۱۰ : مروجه نقشو نه علاوه داسی نقشی راوړل چه معقولات د محسوساتو په شکل کښې حاصل شی. (تلك عشرةٌ كاملةٌ)

ددینه علاوه نور هم ډیر څه ........... په دی مقصد کښې مونږ څومره کامیاب شوی یو؟ دا فیصله به ناظرین کوي څکه :

(عطر آنست که خود ببوید، نه که عطار بگوید)

بہت کوشش کرتا ہوں اندھیرے ختم ہوں لیکن
کہیں پہ جگنو ہی نہیں ملتا، کہیں پر چاند بھی آدھا ہے

# صاحبِ مرقات

د مصنف نوم :

فضل امام بن شيخ محمد ارشد تقريبا په درى ديرش واسطو (٣٣) سره نسب حضرت عمر فاروق رض سره ملاويږي .

پيدائش : مصنف علام په اصل وطن خيرآباد ضلع سيتا پور (هندوستان) کې پيدا شوے او وسيدونکے وو . خو ليکن د بعض اسبابو د وجى نه خير آباد ته ئې خير باد اوئيلو او په شاه جهان آباد کې ئې سکونت اختيار کړو .

تحصيل علم :

مصنف علامِ اکثر علوم عقليه او نقليه د خپل استاذ مولانا عبدالماجد کرمانى نه حاصل کړي دي .

عهده : مصنف علام د درس او تدريس خدمت سره سره په دهلى کې صدرالصدور عهده باندى مشرّف شوے وو .

بيعت : مصنف علام د مولانا شاه صلاح الدين نه بيعت کړے وو .

مشهور شاګردان :

د مصنف علام د مشهورو شاګردانو نومونه دا دي :

١ : د مصنف خپل ځوي مولانا فضل حق .

٢ : مفتى صدرالدين ٣ : مولانا ثناء الدين ، وغيره علماء

تصانيف : د مصنف علام بعض تصانيف دا دى : ١ : تلخيص الشفاء

٢ : نخبة السر ٣ : آمد نامه ٤ :حواشي على ميرزاهد ملا جلال

٥ : مرقات وغيره دي .

وفات : ٥ ذى القعده ١٢٤٠ هجرى تاريخ باندى مصنف علام وفات شو .

مدفن :

په مقبره د مخدوم شيخ سعدالدين خير آبادى کې د خپل استاذ عبدالماجد کرمانىؒ د قبر خوا کې دفن شو . رحمة الله عليه .

بسم الله الرحمٰن الرحيم

مصنف ؒ دَ خپل کتاب مرقات شروع په بسم الله سره وکړه نو دا د دريو وجوهاتو نه.

(١): چه موافقت راشي دَ کتاب الله سره ځکه دَ کتاب الله په اول کښې بسم الله ده

(٢): چه عمل راشي په حديث باندې ځکه دَ نبي کريم ﷺ حديث دے "کل امر ذی بال لم يبدأ ببسم الله فهو ابتر".

(٣): چه موافقت راشي دَ سلف صالحين سره ځکه هغوی به دَ هر کار په اول کښې بسم الله ذکر کوله خواه کتابةً وه او که قراءةً.

## الحمدلله :

په دې مقام کښې څو خبرې پېژندل ضرور دي (١) تعريف دَ حمد، (٢) تعريف دَ مدح، (٣) فرق په ما بين دَ حمد او مدح کښې، (٤) تعريف دَ شکر، (٥) فرق په ما بين دَ حمد او شکر کښې.

حمد: په لغت کښې ثناء او صفت بيانولو ته وايي، او په اصطلاح کښې هو الثناء باللسان على الجميل الاختياري على جهة التعظيم سواء تعلق بالنعمة او لا.

## فرق په ما بين دَ حمد او مدح کښې

يو قول دا دے چه حمد او مدح يو شے دے هيڅ فرق نشته (كذا قال زمخشري ؒ)، دويم قول دا دے چه حمد اطلاق په هغه وصف کيږی چي اختياری وي او مدح اطلاق په هغه وصف کېږي چه هغه اختياري نه وي لکه مدحت اللؤلو على صفائها وئيلے شي حمدت اللؤلؤ نه شي وئيلے. دريم قول دا دے چه حمد اطلاق په هغه صفت کېږي چه هغه يقيني وي او مدح اطلاق په وصف يقيني او ظني دواړو باندې کېږي.

## د شکر تعريف:

هو فعل ينبئ عن تعظيم المنعم سواء كان باللسان او بالاركان او بالجنان.

## فرق په مابين دَ حمد او شکر کښې

فرق په مابين دَ حمد او شکر کښې دا دے چه مورد دَ حمد خاص دے چه لساز دے او متعلق يې عام دے چه په مقابله دَ نعمت کښې وي او که نه او مورد دَ شکر عام دے چه په ژبه سره وي او که په زړه سره وي او که په اندامونو سره وي او متعلق يې

خ ص دے چه په مقابل دَ نعمت کښې وی نو نسبت په مابين دَ حمد او شکر کښې عموم خصوص من وجه شو يو ماده اجتماعی غواړي دوده مادي افتراقي.
(۱) که تعريف په ژبه سره وي په مقابله دَ نعمت کېښې نو دا حمد هم دے او شکر هم دے او که بغير دَ نعمت نه وي نو حمد شو فقط شکر نه شوه. او که تعريف په مقابله ده نعمت کښې وي بغير دَ ژبې نه نو دا شکر شو فقط، الحمدللّٰه کښې که الف لام استغراقي شي نو معنیٰ به داشي تمام تعريفونه ثابت دَ اللّٰه تعالیٰ سره او که الف لام جنسی شي نومعنیٰ به دا شي چه ماهيت او حقيقت دَ حمد ثابت دے اللّٰه تعالیٰ لره.

## اركان دَ حمد

اركان دَ حمد پنځه دی : (۱) حامد، (۲) محمود، (۳) حمد، (٤)، محمود به، (٥) محمود عليه.

**حامد**: هغه عباد دی (چې هغه انسانان ،فرشتې او پېريان دي.)

**محمود**:اللّٰه تبارک وتعالی دے.

**حمد**:

هغه اظهار دَ صفات کماليؤ ته حمد وئيلے شي .

**محمود به**:

عبارت دے دَ وصف حسنه مسنده نه محمود ته (يعنی هغه الفاظ چه په هغې سره تعريف شوے وی ) مثلاً اللّٰه سميع، عليم، بصير دَ دې اظهار ته حمد وئيلے شي او چه دا صفات مسند دي باري تعالیٰ ته نو دېته محمود بهٖ وئيلے شي.

**محمود عليه**:

عبارت دے دَ باعث علی الحمد نه ، مثلاً اللّٰه تعالیٰ مونږ باندې يو نعمت کړے دے دَ هغه نعمت کېدو نه وروسته مونږ اللّٰه سميع، عليم، بصيروايو نو دغه نعمت محمود عليه شو.

**وبعبارةٍ اُخریٰ**

داسې اووايه چه اظهار د صفات کماليؤ په درجه د حکايت کښې ديته محمود به وائي

او په درجه د محکی عنه او نفس الامر کښې دیته محمود علیه وائی. یعنی اللّٰهُ سَمِیۡعٌ نه حکایت کوُن محمود به دے او چه په نفس الامر کښې هم الله سمیع دے نو دا محمود علیه شو. دویم فرق دا دے چه محمود علیه دیته وائی چه مدخول ده کلمے ده علیٰ وی لکه حمدتُ یوسف علیٰ حسن وجهه او محمود به دے ته وائی چه مدخول د کلمے د "باء" وی لکه حمدت یوسف بحسن وجهه۔

## ابدع الافلاک والارضین:

چه الله تعالیٰ په عجیب انداز پیدا کړي دي اسمانونه او زمکې افلاك جمع دَ فلك ده او فلك اسمان ته وایي او ارضین جمع دَ ارض ده نو افلاك او ارضین یې په صیغې دَ جمع سره ذکر کړېده اشاره دَ کثرت ته نو اسمان او زمکه دواړه اوه (۷) دي کما قال تعالیٰ: "الله الذی خلق سبع سمٰوات ومن الارض مثلهن" دا دلیل نقلي دے په کثرت باندې او دلیل عقلي دا دے چه الافلاك او الارضین کښې ۷،۷ حروف دی دا هم دلالت کوي چه اسمانونه او زمکې ۷، ۷ دي.

## والصلوٰة:

صلوٰة لغت کښې دُعا ته وایي.

او په اصطلاح کښې که دَ دې نسبت الله ته اوشي نو په معنیٰ دَ "رحمت" سره به وي او که نسبت یې فرشتو ته اوشي نو په معنیٰ دَ "استغفار" سره به وي او که نسبت یې وحوش طیورو ته اوشي نو په معنیٰ دَ "تسبیح او تهلیل" سره به وي او که نسبت یې انسانانو ته اوشي نو په معنیٰ دَ "دعا" ده دلته ترې مراد دَ "رحمت دے".

فاح العبیر اذا ذکرتُ محمدا | والنور اشرق والظّلام تبدّدا
صلّی علیك الله یانبع الهدیٰ | ما طار طیرٌ فی السماء وغرّدا

## علی من کان نبیا وادم بین الماء والطین

یعنی صلوة دی په هغه چا وی چه پیغمبر وو او ادم علیه السلام په هغه وخت کښې په مینځ د اوبو او د خته کښې وو.

**دا خبره یاد ساتل پکار دي:** چه دا حدیث په دی الفاظو سره صحیح نه دے، کما قال شیخ الاسلام ابن تیمیة رح" لا اصل له ولم یرویه احد من اهل العلم الصادقین ولا

هو فی شئ من كتب العلم المعتمدة بهذا اللفظ بل هو باطل فان ادم لم يكن بين الماء والطين قط فان الله خلقه من تراب وخلط التراب بالماء حتى صار طينا"، انظر مجموع الفتاوی ج١٨ \ ١٧٣ ، التذكرة : ١٢٤ ، الدررالمنتشرة : ١٦٣ ✿احقر حسين علی حفظ الله ✿،

هاں البته ديته قريب بل حديث دے هغه صحيح دے الفاظ ئي دا دی كنت نبيًا وادم بين الروح والجسد (سنن الترمذی كتاب المناقب حديث : ٣٦٠٩ ـ اسناده جيّد حسن وصحّحه البانی ، واخرجه البخاریؒ فی تاريخ الكبير ج ٦ \ ٦٨ـ٦٩ ،وابو نعيم فی الدلائل والبيهيقی فی الدلائل ج ١٣٠١١٢) او د دی حديث مطلب دا دے چه نبي عليه السلام په هغه وخت کې هم خاتم النبيين ليکلے شوے وو چه آدم عليه السلام لا پيدا هم نه وو.

يعنی ده ټولو انبياؤ ، نبوت مستفاد دے ده نبوت ده نبيﷺ نه "كما ان نور الكواكب مستفادٌ من نور الشمس"

يا د دے حديث مطلب دا دے چه کوم وخت عالم ارواح کښې الله تعالی تمام انسانان پيدا کړل، نو صفت د نبوت د ټولو نه مخکې د نبي ﷺ روح له ورکړے وو، او ادمؑ او نور انبياؤ ته نبوت هله ورکړے شو چه کله اتصال د روح د بدن د هغوی سره راغلے دے، نو په دے اعتبار سره د نبي ﷺ نبوت د ټولو انبياؤ نه مخکې شو. كذا قال ابن رجبؒ (لطائف المعارف ص١١٧) د دے تائيد د يوحديث نه هم کيږي "كنت اول النبيين فی الخلق اخرهم فی البعث" كنز العمال ص ج "والمعنی انه قبل تعلق روحه بجسده" ملا علی قاریؒ (مرقات).

"والمراد بها (ای بالرواية) الاخبار بوجوب نبوّته ای ثبوتها لروحه الشريفة المخلوقة قبل الارواح" (المنتقا فی فضائل رسول الله، لسيد عبدالله الغماریؒ)

✿ احقر حسين علی حفظ الله ✿

**وعلى اٰله :**

د آل په مصداق کې اختلاف دے بعض وائی چه دآل نه مراد اهل بيت دي چه هغه علیؓ ، فاطمهؓ ، حسنؓ ، حسينؓ او د دوي اولاد دے (به قال جمهور العلماء) يا د آل نه مراد ټول امت د اجابت دے (به قال النوویؒ ومالکؒ) د نبي عليه السلام رشته

داران چه هغه غیر مسلم دي هغه په ال کې داخل نه دي وقال حمیری

آل النبی هم اتباع ملته — من الاعاجم والسودان والعرب
لو لم یکن آله الا قرابته — صلی المصلی علی الطاغی ابی لهب

او یه هر مسلمان متقي مراد دے لکه حدیث کښې راخي "آل محمد کل تقی" (رواه الطبرانی) یعنې هر مسلمان متقی د نبی صلی الله علیه وسلم آل کښې داخل دے.

اصحابه:

دا صیغه د جمع ده. د دې مفرد لفظ څه دے ؟ په دی کښې څلور اقوال دی. (۱)دا جمع دَ صاحب ده لکه اطهار جمع دَ طاهِرٌ ده (۲) یا دَ صَحْبٌ جمع ده لکه انهار جمع دَ نهرٌ ده (۳) یا د صحیبٌ جمع ده لکه اشراف جمع د شرِیفٌ ده (٤) یا د صَحِبٌ جمع ده لکه انمار جمع د نمرٌ ده. ملګري ته وايې.

او په اصطلاح کښې صحابي: "من لقي النبي ﷺ مؤمنًا به ومات على الاسلام" كذا قال علامه ابن حجر فی الاصابه ص:ج۱\۷).

## فائـــــدةٌ نــــــــادرةٌ:

اوله خبره:

" د صحابی کیدو وپاره یو شرط دا دے چه ایمان په حالت کښ نبی ﷺ لیدلے وی که کفر حالت کښ نبی ﷺ اولیدو او د نبی ﷺ د وفات نه بعد مسلمان شو نو دا صحابی نه دے، دغه رنګ که یو سړی د ایمان حالت کښ نبی ﷺ اولیدو بیا مرتد شو بیا ئې د نبی ﷺ د وفات نه بعد ایمان راوړو لکه " اشعث ابن قیس" شو یعنی دوباره اسلام راوړلو وخت کښ نبی ﷺ او نه لیدو آیا دا صحابی دے او کنه ؟

مسئله اختلافی د صحیح قول دا دے چه دا صحابی دے دغه رنګ د نبی ﷺ ده لیدلو نه مراد لیدل دی په حیٰوة دنیوی د نبی ﷺ کښ.

که یو سړی نبی ﷺ اولیدو د مرګ نه روسته او دفن کولو نه مخکی، یا ئےد کشف په ذریعه یا په خوب کښ نبی ﷺ اولیدو نو هغه صحابی نه دے، لان حیوة الانبیاء بعد الموت حیوة برزخیة و اجراء الاحکام علی الحیوة الدنیویة..

دویمه خبره:

لکه چې څنګه انسان صحابی کیدے شي نو جن (پیرے) هم صحابی کیدے شي

څکه دا احکام شرعیو چه څنګه انسانان مکلف دی دغه سی پیریان هم مکلف دی "
کما یظهر ذالك من ایات سورة جن وایة سورة احقاف نمبر ٣٠"

دریمه خبره:

اصحاب او صحابه کښې فرق دا دے چه اصحاب عام دے هر ملګری ته وئلے شی او صحابه یا صحابی خاص دے د نبی ﷺ ملګری ته وئلے شی.

سوال: ده صحابه کرامو ؓ تعداد سومره دے؟

جواب: ده اهل سنت والجماعت په نزد د صحابو تعداد تقریباً یو لاکه څلوریشت زره(١,٢٤٠٠٠) دے یعنی ده لاکه نه تعداد متجاوز دے،، واخرهم موتاً ابو طفیل عامر بن واثله ؓ،،

او ده روافضو په نزد ده صحابو تعداد ده اهل بیتؓ نه علاوه صرف درے کسان دی مقداد ابن اسود، ابو ذر غفاری، سلمان فارسی، باقی ټول صحابه ده نبی ﷺ د وفات نه بعد مرتد شویدی ( نعوذ بالله)

"عن ابي جعفر عليه السلام قال كان الناس اهل الردة بعد النبي الّا ثلثة .................. المقداد ابن اسود وابوذرغفاری وسلمان فارسی".

(رجال کشی صفحه ١٢ "ایران")

دا مذهب په اتفاق د علماء مردود دے،،

(احقر حسین علی حفظه الله)

## وبعد فهٰذه عدة فصول فی علم المیزان

دلته یې علم منطق ته علم میزان ووئېلو څکه چه څنګه په میزان سره اشیاء وزن معلومېږي دغه رنګ په علم منطق سره صحیح او فاسد اذهان معلومېږي. تشبیه د میزان سره په معلومولو کښې ده.

بعد:

دا دَ ظروف زمانیؤ نه دے. د ده دري درې حالته دي.

(١): یا به مضاف الیه دَ ده مذکور وي یا محذوف که مذکور وي نو بیا معرب دے او که محذوف وي نو بیا به خالي نه وي یا به لفظا محذوف وي خو په نیت کښې به باقی

وي او يا به هم په لفظ کښې حذف وي او هم په نيت کښې په اول صورة کښې مبني دے ځکه محتاج شو په شان دَ حرف او په دوه صورتونو کښې معرب دے نو په دؤو صورتونو کښې معرب شو او په يو صورت کښې مبني شو دلته مضاف اليه دَ ده محذوف ده لېکن نيت کښې باقي ده تقدير به دا رنګ شي "بعد الحمد والصلوٰة" دَ بعدُ نه مخکښې اِمّا حرف شرط محذوف دے ځکه په جزاء کښې فا راغلې ده چه فهٰذه عدّة سُطور. يا ظرف زمان هم متضمن وى معنى د شرط لره او په جواب کښې ئي فاء راځي لکه "إذلم يهتدُوابه فسيقولون هذاإفك قديم".

وعلى الله التوكل وهو المستعان:

په الله تعالىٰ بهروسه ده او هغه مدد طلب کولو لائق دے نو مصنفؒ فرمايي چه ما دَ الله نه په کتاب ليکلو کښې او تاسو دَ هغه نه په يادولو کښې مدد غواړې.

مقدمه:

دا خبر دے د مبتدا يې محذوفي اى هٰذه مقدمةٌ ، مقدمه ماخوذ ده دَ "مقدمة الجيش" نه مقدمة الجيش د لښکر اولى حصى ته وائي ، دَ لښکر پنځه حصې وي.

(۱): يوه مقدمة الجيش دا دَ لښکر هغه اولنۍ حصې ته وايي کومه حصه چه دَ لښکر نه مخکښې لاړه شي دَ راتلونکي لښکر دَ خوراك څښاك انتظام کوي.

(۲): بله حصه دَ لښکر ښي طرف ته روانه وي هغې ته ميمنة الجيش وايي.

(۳): بله حصه ګس طرف ته روانه وي هغې ته ميسرة الجيش وايي.

(٤): بله حصه دَ لښکر نه وروستو روانه وي چه که څه شے دَ لښکر نه پاتې شي دا رنګې دَ وروستو نه حفاظت هم کوي دېته خلف الجيش وايي.

(۵): بله حصه په مېنځ (درميان) دَ لښکر کښې روانه وي هغې ته قلب الجيش وايي.

نو دا ماخوذ ده دَ مقدمة الجيش نه ځکه چه مقدمة الجيش لکه چه څنګه دَ راتلونکي لښکر انتظام کوي دغه رنګ دا مقدمه هم دَ راتلونکي کتاب انتظام کوي.

مقدمه په دوه قسمه ده: (۱) مقدمة العلم، (۲) مقدمة الكتاب.

(۱) مقدمة العلم: دا عبارت ده دَ تعريف، موضوع او غرض دَ کتاب نه.

(۲)مقدمة الكتاب: هى طائفة من الكلام قدمت امام المقصود لا رتباطها

ب مقصود و شغف فيه.
بد که مقدمه صيغه دَ اسم فاعل شي نو معنىٰ به يې شي "مخکښې کوونکے" نو
به ذي د سوال کيدے شي چه دا خو پخپله مخکښې ده بل لره نه مخکښې کوي.
نو جواب دا دے چه دا په معنىٰ دَ "متقدمّة" يعنې اسم فاعل دَ باب تفعيل په
معنى دَ اسم فاعل باب تفعّل دے او هغه لازمي دے معنىٰ خپله مخکښې،او باب تفعل
او تفعيل د يو بل په ځائے استعماليږي لکه ''وتَبَتَّلْ اِلَيْهِ تَبْتِيْلَا'' ، دلته د تبتل (تفعل)
د پاره مفعول مطلق تبتيل ( تفعيل ) باب نه راوړلے شوے دے دويم جواب دا دے
چه دا صيغه دَ اسم فاعل ده دَ باب تفعيل نه او دَ مذکور سوال نه جواب دا دے چه
مخکښې کوونکي هغه طالب لره چه هغه بصيرت والا وي او يائې شوق وي دَ منطق
سره په هغه طالب چه داسې نه وي .اي مقدمة لطالب الذي يكون ذا بصيرة او مشتاقاً
في المنطق على الطالب الذي لا يكون هكذا.

## اعلم ان العلم يطلق على معان

د دې عبارت نه مقصد دَ مصنف رح تعريف دَ علم کوي. نو دَ علم په تعريف کښې
مذاهب ثلاثه دي.

مذهب اول: اول مذهب دَ امام غزالی رح دے دې فرمايې چه علم نظري دے او په
نظري کښې متعسر التحديد دے يعنې تعريف يې ډېر مشکل دے.

مذهب ثاني: دَ امام رازی رح دے دې فرمايې چه علم بدېهي دے او په بدېهي کښې
اجلى البديهات دے يعنې علم ډېر واضح دے په شان دَ حرارت او برودت تعريف ته
ضرورت نه لري ، دَ عدم تعريف بله وجه دا ده که دَ علم تعريف په څه شي سره
اوشي نو هغه شے به مونږ پېژنو په علم سره ځکه بغېر دَ علم نه دَ څه شي معرفت نه
حاصلېږي نو هغه شئ موقوف شو علم پورې او علم موقوف شو هغه شي پورې نو
دور لازم شو او دور باطل دے . نو دې دواړو امامانو ځان دَ غم نه خلاص کړو يو په
نظارت سره او بل په بداهت سره.

مذهب ثالث: دَ جمهور علماء دے دوي فرمايې چه علم نظري ميسر التحديد دے
نو بيا يې تعريف څه شو نو دوي تقريبًا دَ علم ديارلس، څوارلس تعريفونه کړي دي.

نو په هغې کښې دا پینځه ترې مصنف . دَ مرقات رانقل کوي چه دا مشهور دي هغه دا دي

احدها: اول تعریف حصول صورة الشی فی العقل. یعني دَ یو څیز صورت حاصلولو ته علم وایې حصول معنیٰ مصدري ده یعنې صرف حاصلولو ته علم وایې.

ثانیها: دوېم تعریف الصورة الحاصله من الشئ عند العقل . یعنې دَ کوم څیز صورة چه په عقل کښې راشي هغه صورة ته علم وایې نو اول تعریف او دوېم تعریف کښې دا فرق شو چه اول تعریف باندې علم حصول یعنې حاصلولو ته علم وایې دوېم تعریف مطلب کوم شي چه ذهن ته راغلے دے هغه صورة ته علم وایې مثلاً یو کس سائیکل ته اوکتل او دَ هغه صورة یې په ذهن کښې راغلے نو تعریف اول مطابق دے دَ کتلو دَ سائېکل ته او ذهن ته دَ ده راوستلو ته علم وایې. او دوېم تعریف مطابق سائیکل کوم صورة چه حاصل شوے دے هغه علم دَسائیکل دے.او یا په اول تعریف کښې حصول په معنیٰ دَ حاصلة سره دے او دا صفت دے دَ پاره دَ صورة، ای صورة حاصله.

نو بناء په دې تاویل سره اول تعریف او دوېم تعریف دواړه یو شئ شو هېڅ فرق نه لرې صورة حاصله دَ شئ علم دَ هغه شي شو. کذا قالوا.

ثالثها: درېم تعریف الحاضر عند المدرک ، مشاهده کول دَ یو څیز یعنې حصول او صورة حاصله دواړه علم نه دي بلکه علم دېته وایې چه دَ یو صورة مشاهده کوي په وخت دَ ادراك کښې هغه علم دے. هغه شئ عالم ته حاضر وي.

رابعها : څلورم تعریف، قبول النفس لتلك الصورة چه دغه صورة نفس قبول کړي یعنې لیدل دَ نفس یو صورت لرۍ په هغې نفس متاثره شي یعنې دَ لیدو نه وروستو یا سر ور حاصل شي یا حزن دغه ته علم وایې.

خامسها:پنځم تعریف الاضافة الحاصلة بین العالم والمعلوم: دَ عالم او معلوم مېنځ کښې چه کوم نسبت دے هغې ته علم وایې.

فائده :

اوله خبره دا زده کړه چه علم په دوه قسمه دے حضوری او حصولی، د علم

حضوری وحصولی مختصر و ضاحت دا دے، چه کله د عالم په مخکې ذات د شئ (معلوم) موجود وی نو دیته علم حضوری وائی او که عالم په مخکې ذات ده شئ موجود نه وه بلکه د عالم په ذهن کښې صورة ده هغه حاصل وه نو دیته علم حصولی وائی، بناء په دی وضاحت باندی موثر دا ویئلے شو چه د باري تعالیٰ علم صرف حضوری دے ځکه تمام اشیاؤ ذات الله تعالیٰ ته حاضر دے او د باری تعالیٰ علم حصولی ځکه نه دے چه داسې نه شی کیدے چه د باری تعالیٰ ته د اشیاؤ ذات حاضر نه وی او ادراك د صورة ئی کوی ځکه "لا یعزُبُ عنه مَثقالُ ذرة'' او د انسانانو علم کله حضوری وی کله که د معلوم ذات حاضر وی عالم ته او کله حصولی وی چه د معلوم صورة حاصل وی او ذات ئی غائب وی، کله چه تا دا خبره اوپیژندله نو اوس دا خبره هم اوپیژنه..........

چه اول او دویم تعریف د "علم" دا د مخلوق د علم تعریف دے دارنګه دا دواړه تعریفونه د علم حصولی دی ، ځکه اول تعریف مطلب دا دے، (انتقاش الصورة) چه صورة د شئ په ذهن کښې منقش کول او دویم تعریف چه (الصورة المنقشه) هغه صورة چه ذهن کښې منقش کړے شویدے ،،او الله تعالیٰ د انتقاش الصُوَرْ،نه پاک دے او دریم تعریف عام دے علم د الله تعالیٰ او د ممکن دواړو ته شامل دے دغه رنګ علم حضوری او حصولی دواړو ته شامل دے کما یظهر ذالك بادنیٰ تأمل . او څلورم تعریف هم خاص دے علم د ممکن پورے یعنی دا د مخلوق د علم تعریف دے دغه رنګ دا هم علم حصولی دے حضوری نه دے (کماً مرّ فی التعریف الاول و الثانی) او پنځم تعریف هم عام دے علم د واجب او مخلوق ته شامل دے دغه رنګ علم حضوری او حصولی دواړو ته شامل دے.

دویمه خبره:

اول څلور تعریفونو د علم کښې اتحاد ذاتی او فرق اعتباری دے هغه داسې مثلاً یو شئ دے، د هغه ذات عالم مخکې موجود وی نو په دی دریم تعریف صادق دے چه الحاضر عندالمدرك او که د هغه شئ صورة عقل ته منتقل شی نو د انتقال په وخت کښې په هغه اول تعریف صادق دے چه حصول صورة الشئ فی العقل ، ځکه انتقال هم مصدر دے او حصول هم مصدر دے اوکله چه د هغه شئ صورة په عقل کښې حاصل

شی نو په هغه دویم تعریف صادق دے چه الصورة الحاصلة من الشئ عند العقل او چه کله عقل (نفس ناطقه) دغه صورة قبول کړی نو په هغه ځلور... تعریف صادق دے چه قبول النفس لتلك الصورة او دا څلور واړه تعریفونه د حکماؤ دی چه دوی قائل دی په وجود ذهنی د اشیاؤ، او پنځم تعریف د متکلمینو دے چه دوی صرف په وجود خارجی ده اشیاؤ قائل دی وجود ذهنی نه منی. ( والتفصیل فی المطولات)

## په دې تعریفونو کښې غوره تعریف:

نو دې کښې غوره تعریف دا دریم دے چه (الحاضر عند المدرك) یو خو په دې کښې لفظ الحاضر دے او دا علم حضوري او علم حصولي دواړو ته شامل دے.

او دویمه وجه دا ده چه دې کښې لفظ المدرك راغلے دے او دا دَ الله تعالي علم ته هم شامل دے. مخکښې تعریفونو کښې لفظ عقل دے او عقل اطلاق په الله تعالي نه کېږي ځکه عقل دَ جسم والا وي او الله تعالي دَ جسم او جسمیت نه پاك دے.

دویم نمبر بیا پنځم تعریف غوره دے چه هغه هم علم ده واجب او د ممکن او علم حضوری او حصولی ته هم شامل دے.

اصل خبره دا ده: چه دَ عالِم او معلوم درمیان کښې پرده وي هغه پرده چه کوم شیئ سره لرې کېږي هغه ته علم وایي.

نو دَ اول تعریف والا په نزد دغه پرده لرې کېږي په حصول سره او دَ دوہم تعریف والا په نزد په عین دغه صورة سره چه ذهن ته راشي او دَ دریم تعریف والا په نزد چه عین ذات ده شئ عالم ته حاضر شی نو دغه پرده هله لری کیږی او څلورم تعریف والا په نزد دغه پرده هله لری کیږی چه نفس ناطقه دغه صورة قبول کړي.

او دغه پردې لرې کولو نه کله تعبیر په (حالت ادراکی) سره هم کېږي چه ورته مبداء الانکشاف هم وایي.

نو دا تعبیرات اګر که مختلف دی لیکن معنون د ټولو یو دے، چه پرده لرې کول.

تمہیں میری اور رقیب کی راہیں جدا جدا
آخر کو ہم دونوں درِ جاناں پہ جا ملے!
احقر حسین علی حفظہ اللہ

## وينقسمُ علىٰ قسمين

دا علم په دوه قسمه دے (۱)علم حصولي، (۲)علم حضوري.

(۱)علم حصولي: چه په څه واسطې سره حاصل شوے وي لکه دَ يو کس علم په بل چا باندې.

(۲)علم حضوري: چه بغير دَ څه واسطې نه حاصل شوے وي لکه زمونګ علم په خپل ځان باندې او دَ دې علم حضور دَ پاره درې علاقې دي (۱) عينيت، (۲) نعتيت، (۳) عليت.

(۱)عينيت:لکه علم دَ الله شو په خپل ځان (ذات) باندې.

(۲)نعتيت:لکه علم دَ الله شو په خپل صفات باندې.

(۳)عليت:لکه علم دَ الله شو په ممکنات (مخلوق ) باندې.

وينقسم علىٰ قسمين احدها يقال له التصور.........................

وادراك النسبة الحكمية المسمّى بالحكم.

دَدېنه وروستو غرض دَ مصنف رح تقسيم دَ علم کوي دوه قسمونو ته چه يو تصور دے او بل تصديق.

اول قسم د علم تصوردے ، د تصور تعريف کوي :

تصور: فهو الادراك الخالي عن الحكم :

يعني تصور هغه علم دے چه خالي وي دَ حکم نه يعني هغه قضيه چه هغې کښې "دے" يا "ندے" په کښې نه وي نو حکم څه مطلب نو دَ حکم وضاحت کوي دې دَ پاره مصنف رح درې تعبيرونه ذکر کوي اول تعبير دا دے.

حکم مطلب دا چه نسبة امر الىٰ امر اٰخر ايجابًا او سلبًا:

دَ يو شي بل ته اثباتًا نسبت اوشي لکه زيد قائمٌ دلته دَ قيام نسبت زيد ته شوے دے يا دَ يو شي بل ته نفياً نسبت اوشي لکه زيد ليس بقائم دلته قيام نفي شوے دے دَ زېد نه.

دوېم تعبير دا دے: وان شئت قلت ايقاعًا او انتزاعًا. يعني که ستا ښوښه وي نو دَ ايجاب او سلب په ځائے ايقاعا او انتزاعًا هم وئيلے شي ايقاع معنىٰ نسبت واقع کول

او انتزاع مطلب نسبت وشکل نو کلام مثبت کښې متکلم نسبت واقع کوي او په کلام منفي کښې نسبت اُوباسي.

دریم تعبیر دا دے: وقد یفسر الحکم بوقوع النسبة اولا وقوعها:

یعنې نسبت ایجابي ته وقوع النسبة او نسبت سلبي ته لا وقوع النسبة هم وایې.

فائده: دا خبره یاد ساتل پکار دی چه د اول تعریف د حکم دا دمتقدمین دے او دویم تعریف چه لا وقوع دے دا د متاخرین تعریف دے نو د متقدمین په نزد اجزاء د قضیئ درې دی موضوع ، محمول ،او نسبت تامه خبریه، او د متاخرین په نزد اجزاء د قضئي څلور دي درې دغه مذکور او څلورم نسبة د وقوع او لا وقوع دیته نسبة تقیدیه هم وائي .

کما اذا تصوّرت:

دې عبارت سره مصنفؒ متال ذکر کوي دَ تصور دَ پاره چه اوګوره کنه چه ته یواځې دَ زید تصور اوکړې قیام ورلره ثابت نه کړي یا دَ قیام یواځې تصور اوکړی نو دې کښې حکم چه (دے )یا( نه دے )په کښې نشته نو دا تصور شو متال خطابي شو ده ممثل سره.

واما التصدیق فهو علی قول الحکماء، عبارة عن الحکم المقارن

دَ دې نه وروستو غرض د مصنفؒ تعریف دَ تصدیق کوي او دَ هغې په ضمن کښې یوه اختلافي مسئله هم ذکر کوي.

حاصل تعریف: دا دے چه تصدیق دېته وایې چه هغه کښې حکم وي برابره خبره ده که حکم ایجابي وي او که سلبي، حکم ایجابي په عربۍ کښې هُوَ او سلبي لَیْسَ دے او په اردو کښې ایجابی "ہے، او سلبي "نہیں او په فارسۍ کښې حکم ایجابي هست او سلبي نیست دے او په پښتو کښې حکم ایجابي دے او حکم سلبي نه دے او په انګلش کښې حکم ایجابی is او حکم سلبي NOT دے دېته ادوات غېر زمانیه وائي یعنې دَ دې روابطو دَ زمانې سره تعلق نشته او کله رابط زماني وي په عربۍ کښې کان، ما کان، یکون، لا یکون دے او په فارسۍ کښې بود، نبود ،دے او په اردو کښې تھا، نہیں تھا ، او په پښتو کښې وه ، نه وه ، دے او په انګلش کښې Was او Not was دے.

حداني مسئله دَ اختلافي مسئلې حاصل دا دے چه مثلا زيد قائم دے دلته يو زيد دے هغه ته محکوم عليه وائي. دوهم قائم دے چه هغې ته محکوم بهِ وائي. دريم نسبت دے چه دَ هغه ته تعبير په پښتو کښې په دے ، سره کولے شي. دې درې واړو ته تصورات ثلٰثه وايي. يو څلورم شئ دے هغه دے يقين په قيام دَ زيد چه هغه ته " اذعان " وئيلے شي کله چه په دې تمهيد باندې ته پوهه شوې. نو اوس دا خبره زده کړه چه حکماء وائي چه تصديق صرف ادغان (يقين) ته وئيلے شي. او دا تصورات ثلٰثه دَ يقين دَ پاره شرط دے دَ دې نه بغير تصديق نشي موجود کېدلے نو تصديق دَ حکماء په مذهب بسيط دے او دَ امام رازي مذهب دا دے چه تصورات ثلٰثه سره دَ حکم (يقين) نه مجموعه څلور شيانو ته تصديق وئيلے شي او دا تصورات ثلٰثه جزء دي دې تصديق نه نو دَ امام په مذاهب تصديق مرکب شو دې خبره نه داسې تعبير هم کولے شي تصورات ثلٰثه دَ حکماء په نزد دَتصديق دَ پاره شرط دي. او خارج دي دَ تصديق نه ځکه شرط دَ شي نه خارج وي اوْ دَ امام په نزد دا تصورات ثلٰثه شرط دي دَ تصديق يعنې داخل دي په تصديق کښې.

يوه اهمه خبره: حکم په څلور معانيو سره راځی (۱) حکم په معنیٰ دَ محکوم بهِ سره مثلا زيد قائم کښې قائم ته حکم وئيلے شي (۲) حکم په معنیٰ دَ نسبت سره کوم چه دَ محکوم عليه او محکوم په مېنځ کښې وي (۳) حکم په معنیٰ دَ نفس قضيه سره چې" زيد قائم" دے ، دې پوره قضيې ته هم حکم وئيلے شي (٤) حکم په معنیٰ دَ ازغان او يقين سره حقيقت کښې حکم ازغان او يقين ته وئيلے شي. او په دې نورو دريو (چه محکوم عليه محکوم به او نسبت دی )باندې دَ حکم اطلاق دَ سببيت دَ وجه نه کېږي چه دغه درې دَ حکم يعنی دَ اذعان اسباب دي (والله اعلم).

## دَ تصور او دَ تصديق مختصر اقسام

تصور په څلور قسمه دے : وجه د حصر دا ده چه کوم شئ ذهن ته راشی دا به خالی نه وي (۱) يا به هغه خالی وی د نسبت نه لکه تصور د مفرداتو شو (۲) يا به نسبت وی ليکن تامه به نه وي لکه تمام مرکبات ناقصه ( مرکب اضافی ، توصيفی ، منع صرف ، بنائي او صوتی ) (۳) يا به نسبت تام وي ليکن خبری به نوی لکه انشائيات

( أمر ، نهی ، استفهام وغیره ) (٤) یا به نسبت تام خبری وي لیکن په هغه به اعتقاد او جزم نه وي لکه زیدٌ قائمٌ په صورت د وهم ، شک او تخییل کښي ،

فائده : شک متساوی الطرفین ته وائي یعنی زید قائم او زید لیس بقائم دواړه نسبتونه ستا په ذهن کې برابر وي نو دا شک دے او تاته شکی ویلے شي او که یو نسبت راجح وو نو هغه ته ظن ویلے شي او جانب مرجوح ته وهم ویلے شي او کوم نسبت چه ذهن ته راشي او په هغه کښي ظن ، شک یا وهم نه وي پیدا شوے.یعنی قبل از التفاتِ ذهن تخییل دے .

## اقسام تصدیق:

**تصدیق هم په څلور قسمه دے (۱) ظن، (۲) تقلید (۳) جهل مرکب (٤) یقین.**

**وجه دَ حصردا ده:** چه اعتقاد به خالي نه وی یا به جازم وی او یا به جازم نه وی که نه وو نو دا ظن شو او که جازم وی بیا به خالي نه وی یا به په شک سره زائله کېږي او یا به نه زائله کېږی که زائل کېدو نو هغه ته تقلید وایې او که نه زائل کېدو نو بیا به خالي نه وي یا به مطابق وي دا واقع سره او یا به نه وي که نه وه نو دا جهل مرکب شو. او که وه نو دا یقین شو بیا یقین په درې قسمه دے (۱) عین الیقین، (۲) حق الیقین، (۳) علم الیقین.

**(۱) علم الیقین:** هغې ته وایې چه حاصل شوے وي په دلائلو سره لکه یقین دَ عامو علماؤ شو.

(۲) عین الیقین: عین الیقین دېته وایې چه حاصل شوے وي په مشاهدې سره لکه یقین دَ اولیاؤ شو.

(۳)حق الیقین: حق الیقین دېته وایې چه حاصل شوے وي په دواړو سره لکه یقین دَ انبیاء علیهم السلام شو.

۞که څان په نقشه پوهه کول غواړې نو په بله صفحه حاضره ده۞




وللعلماء فی اقسام التصور والتصدیق تفصیلات ترکناها قصداً واختصاراً

فصل: التصور قسمان:. دې عبارت سره غرض دَ مصنفؒ تقسيم دَ تصور او دَ تصديق کوي دوه دوه قسمونو ته. تصور هم په دوه قسمه دے او تصديق هم په دوه قسمه دے (۱) تصور بدېهي (۲) تصور نظري (۳) تصديق بدېهي (٤) تصديق نظري.

(۱)تصور بدېهي: چه غور فکر اور سوچ ته او دا رنګې ترتيب دَ امور معلومو ته په کښې ضرورت نه وي لکه تصور زمونګ دَ حرارت او برودت، اوس په دې کښې غور فکر ته ضرورت نشته نه دليل وئېلو ته حاجت شته دوېم نوم دَ بدېهي ''ضروري '' دے.

(۲)تصور نظري: چه هغه کښې غور فکر دا رنګه ترتيب ورکولو د امور معلومه ته پکښې ضرورت وي. لکه تصور زمونګ شو د جن او د ملائکو د غور فکر نه بغير يا د امور معلومؤ د ترتيب نه بغير مونږ د دی په حقيقت باندی نه رسيږو. نو اوس به امور معلومؤو لره ترتيب ورکړو .چه جن دېته وايې. جِسْمٌ نَارِيٌّ يَتَشَكَّلُ بِاَشكَالٍ مُخْتَلِفة او ملائک جِسْمٌ نُوْرَانِيٌّ يتشكل باشكال مُختلفةٍ،، نو دَ غور فکر او مشقت نه وروستو مونک په حقيقت دَ ملائک او دَ جن اورسېدو. او دېته کسبي هم وايې يعنې دَ نظري دوېم نوم کسبي دے نظري او کسبي يو شيئ دے يعنې نظري او کسبي هغه علم ته وايې چه هغه کښې مشقت دَ غور فکراو سوچ ته ضرورت و ي .

او تصديق هم په دوه قسمه دے (۱) بديهی ، (۲) نظری.

(۱) بدېهی: چه غور، فکر او ترتيب ورکول امور معلومؤو ته او سوچ ته پکښې ضرورت نه وي لکه الكُلّ اعظمُ من الجزءِ،، يا لکه الاثنان نصف الاربعه، کل اعظم وي دَ جزء نه دا خبره هر چاته معلومه ده غور فکر ته ضرورت نشته دغه رنګه دوه دَ څلورو نيم دي دا هر چاته پته ده.

(۲) نظری: چه غور فکر سوچ او ترتيب ورکول امور معلوؤ ته پکښې ضرورت وي. لکه العالم حادث په دې کښې سوچ، فکر ته ضرورت شته. او ترتيب ورکول امور معلومؤو ته او هغه به مونک داسې ورکؤو چه "لانه متغير وكل متغير حادث فالعالَم حادث" چه عالم کښې تغير راځي مونک په سترګو وينو کله بهار، کله خزان کله صحت کله بيماري.

والصانع موجود: وجود دَ صانع هم دَ امور معلومؤو ده ترتيب نه معلومېږي چه مصنوع موجود دے او مصنوع بغېر دَ صانع نه شي موجود کېدے پته اولګېده چه صانع موجود دے دا بداهت او نظارت د تصور يا دتصديق دا دَ امور اضافيئو نه دے ځکه يو شئ به داسې وي چه يو کس ته به نظري وي او بل کس ته به بدېهي وي دَ دې حسي مثال لکه يو کس ته سائېکل چل ورځي نو هغه ته بديهي دے او چالره چه نه ورځي هغه ته نظری دے يا لکه يوه مسئله ده دَ علم يو کس ته بدېهي وي او بل کس ته نظری وي. حاصل دا شو بدېهي او نظری کښې اتفاق ضروري نه دے يو شيئ به چاته بدېهي وي بل چاته به نظری وی.

فائده: واذا علمت ماذكرنا ان النظريات..................لم يكن حاصلًا لك قبل.

وهي العالم حادث.

مخکښې دا خبره ذکره شوه چه تصور نظري او تصديق نظری دېته وايي چه هغه محتاجه وي نظر او فکر ته. نو اوس تشريح او وضاحت کوي دَ نظر چه نظر څه شئ دے .دَ نظر تعريف دا دے:

ترتيبُ أُمورٍ مّعلومةٍ ، امور معلومو لره ترتيب وركولو ته نظر وايي.

ترتيب په لغت کښې: وضع كل شئ فى مرتبته يعني هر شي لره خپل مقام مرتبه وركول او په اصطلاح کښې ترتيب دېته وايې : بعضې شيونه مقدم کړے شي او بعضې مؤخر کړے شي په دې شان سره چه دا موسوم کولے شي په اسم واحد سره. تصورات کښې به جنس مخکښې کړې او فصل خاصه وغېره به وروسته کړې لکه : ما تانه تپوس وکړو چه ما الانسان نو ته په جواب کښې وايي چه حېوانٌ ناطقٌ. نو جنس مخکښې ذکر شو بيا فصل مرتبه وه هغه ذکر شوه ځکه عام مخکښې ذکر کول ضروري دي بيا خاص ذکر کوي نو دې امور متعدده چه يو جنس دے بل فصل دے جنس مخکښې فصل وروستو دے دا مجموعه موسوم کولے شي په يو نوم سره چه معرف يا قول شارح دے.

او په تصديقات کښې ترتيب دېته وايي چه صغرىٰ به مخکښې ذکر کړې بيا به كبرىٰ يا به مقدم مخکښې کړې بيا به تالي ذکر کړې لکه: لانه متغير دا صغرىٰ ده

**وكل متغير** حادث كبرئ ده نو اول صغرئ ذكر شوه دا مقدّمه شوه بيا كبرئ ذكره شوه دا مؤخره ذكر شوه دا مجموعه موسوم كولے شي په يو نوم سره چه دېته دليل او حجت وايي نو كوم وخت كښې امور معلومو دَ پاره ترتيب ورکړے شو نو دا به تا صحيح نتيجې ته اورسوي. چه هغه تاته دَ ترتيب نه مخکښې معلومه نه وه مثلاً په مثال مذكور كښې په تصورات كښې انسان حقيقت نه وه معلوم كوم وخت كښې چه ترتيب ورکړے شو امور معلومؤو ته اوئيلے شو چه 'حيوان ناطق' نو اوس معلوم شو او په تصديقات كښې 'العالَم حادث'، نه وه معلوم كوم وخت كښې ترتيب ورکړے شو صغرئ او كبرئ دَ پاره نو علم راغے په دغه نتيجه باندې چه العالم حادث دے.

**فصل: اياك وان تظن ان كل ترتيب يكون صوابًا**

غرض دَ مصنفؒ: دې عبارت سره يو ضرورت ثابت كوي منطق ته چه منطق فضول علم نه دے دا ډېر ضروري علم دے ځكه چه فكر او نظر كښې غلطي راځي هغه غلطي معلومولو دَ پاره مونږ سره بله فارمولا(Formula ) نشته سوئ دَ منطق نه .نو دَ منطق نه مستغنئ كېدل پكار نه دي بلكه په شوق سره ازده كول پكار دي.

دوېم غرض دَ مصنفؒ:دې عبارة نه دفع دَ سوال ده حاصل دَ سوال دا دے چه تصور نظري معلومېږى دَ تصور بدېهي نه او تصديق نظرى معلومېږى دَ تصديق بدېهي نه نو بس مونږ ته فارمولا معلومه شوه چه نظريات به معلؤو دَ بديهاتو نه نو منطق ته حاجت پاتې نه شو او كوم شي ته چه حاجت نه وي هغه فضول وي نو علم منطق فضول شو.

نو مصنفؒ په دې عبارت سره جواب كوي حاصل دَ جواب دا دے چه هر ترتيب صحيح نه وى چه صحيح نتيجې ته سړے اورسوي يعنى ترتيب وركول ده هر چه كار نه دے زكه چې دا ده لوند خوږ خيرات نه دے په معرف كښې خطاء راتلے شي يا په اعتبار دَ مادې سره او يا په اعتبار دَ هيئت سره په اعتبار دَ مادې سره خطاء دا ده چه دَ جنس په ځائے بل جنس ذكر شي يا عرض عام ذكر كړي. يا دَ فصل په ځائے بل فصل يا خاصه ذكر شي او خطاء په هيئة كښې په معرف كښې دا ده چه دَ كوم حق مخكښې وي هغه وروستو كړي او دا وروستو مخكښې كړي او په حجة كښې هم

<u>وامتیاز القشر عن اللباب:</u>
یعني انساني طبیعت سره پوستکے دَ مغز نه نشي جدا کولے مراد دَ قشر نه غلط نتیجه ده او مراد دَ لباب نه صحیح نتیجه ده یا مراد دَ قشر نه (باطل) دے لکه العالم قدیم نظریه باطله وه. او دَ لباب نه مراد (حق) دے لکه العالم حادث نظریه حقه وه، اوس دَ منطق په ذریعه مونږ اوپیژنده چه العالم قدیم نظریه غلطه ده ځکه دَ دې قیاس صغریٰ چه "لانه مستغن عن المؤثر" دا غلطه ده او خلاف ده دَ واقع نه دا مشتمل ده په جهالت یا په تجاهل باندې ځکه مونږ روزانه مشاهده کؤو. چه عالم مرتکب دَ تغیراتو دے دا تغیرات بغیر دَ مغیّر نه نشي کیدے. نو خلق دَ عالم چه دا یو لویه کارنامه ده بغیر دَ موجد نه څنګه کیدے شي؟

<u>فجاءت الحاجة فی ذٰلك الی قانون:</u>
نو هر کله چه غلطی او خطاء په انسانی طبیعت سره نه معلومیږی نو حاجت پیښ شو یو قانونه ته چه دَ هغه قانون په رڼا کښې پته اولګي. چه دا نتیجه یا دا نظریه خطاء ده او دا صحیح ده.

قانون: دَ سریاني لفظ دے په لغت کښې (مسطر الکتاب) پیماني ته وایې. او په اصطلاح کښې قانون هغه قاعدې کلیې ته وایې چه هغه کله په جزئیات باندې فټ کړے شي دَ هغوی احکام ترې نه معلومیږي لکه دا یوه قاعده کلیه ده چه کُلُّ فاعلٍ مرفوعٌ اوس دَ جزئیات حکم به داسې معلومیږي چه یو صغریٰ به ذکر کړې سهلة الحصول او دا قاعده کلیه به ورته کبریٰ کړي نو دَ جزی حکم به معلوم شی مثلاً: زید فی ضرب زید فاعل (صغریٰ سهلة الحصول) وکُلُّ فاعلٍ مرفوعٌ (کبریٰ) (فزید مرفوع) (نتیجه) دغسې دَ عمر، بکر، خالد، ساجد وغیره ټولو احکام معلومولے شي کله چه دوی فاعل واقع شي.

<u>طرق اکتساب المجهول:</u> یعني داسې یو قانون او فن ضروري شو چه هغې کښې مجهولات حاصلول دَ معلومات نه دَ هغې طریقې ذکر وي.

<u>وهٰذا القانون هو المنطق والمیزان:</u> یعني موصوف په دې صفات مذکورؤ سره هغه نه دے مګر فن منطق دے. منطق ماخوذ دے دَ نطق نه نطق معنیٰ "خبرې کول" منطق

صيغه دَ مصدر ميمي ده په معنیٰ دَ خبرې کولو سره يا صيغه دَ ظرف ده يعنې "ځائے دَ خبرو کولو" يا په کسرې دَ ميم سره صيغه دَ آله ده په معنیٰ دَ آله دَ نطق. اګر که صيغه دَ آلے استعمال مشهور نه دے. اوس منطق لغوي معنیٰ خو خبرې کول شو نو دَدې مبارك او شريف علم دا نوم ولې ايخودے شوے دے؟

ما القرقرة فی هٰذا:؟ نو مصنف رح دَ دې شبهې نه څه په دې ډول جواب کوي.

**فلتاثيره فی النطق الظاهری اعنی التکلم الخ:**

حاصل دَ جواب دا شو چه انسان کښې دوه صفته دي يو ظاهرًا خبري کول دوېم باطني سمجه او پوهه ، او علم منطق دی دواړه صفاتو کښي کمال پېدا کوي ځکه کوم سړے چه دَ علم منطق عالم وي هغه په ظاهري خبرو کښې داسې يو ملکه ورته حاصله وي چه سم "چالاك خان" وي په نسبت دَ هغه سړي چه هغه دَ منطق نه جاهل وی ځکه دے دَ هغه په مخکښې بالکل مضوب وي او باطني پوهه او ادراک ته نطق باطني وايي علم منطق دا صفت هم دَ انسان کمال ته رسوي مصنف رح دَ دې بيان څه په دې ډول کړے دے.

**لان المنطق يعرف حقائق الاشياء ويعلم اجناسها ...الخ:**

يعنې کوم سړےچه دَ علم منطق عالم وی دَ هغه نطق باطني په نسبت دَ جاهل کامل وي ځکه هغه دَ اشياؤ حقيقت، جنسيت ښه پېژني چه دا شئ دَ کوم جنس سره تعلق ساتي، او حقيقت يې څه دے دا رنګه دَ شي فصل، نوع، خاصه او لوازم هم په نسبت دَ هغه چا چه جاهلي وي دې مبارک علم نه ، ښه پيژنی او نور هم معرفت ئې کامل شی چه هر شئ تار په تار پېژني.

**<u>و اما تسميتهٔ باالميزان :</u>**

يعنې علم منطق ته علم ميزان ولې وايې دَ هغې وجه منصف رح په دې عبارت سره ذکر کوي.

<u>فلانه قسطاس للعقل يوزن به الافکار الصحيحة</u>: حاصل دَ دې عبارت دا دے چه ميزان (تلې) سره اشياء وزن معلومېږي په ثقل او خفت کښې او په منطق سره هم افکار صحيحه او افکار فاسده معلومېږی نوتشبيه صرف په معلومولو کښې ده په

تمام صفات کښې تشبيه ورکول مقصود نه ده.

اختلال: هغه نقصانات ته وايې چه دَ اختصار نه پيدا شوے وي يعنې يو کلام دومره مختصر ذکر شي چه دَ مراد پته او نه لږي دلته مراد مطلق نقصان دے.

ومن ثم يقال له العلم الآلي: غرض دَ مصنف رح په دې عبارت سره دريم نوم دَ دې فن ذکر کوي چه دَ دې فن يو دريم نوم هم شته دے چه هغه علم الیٰ دے اوس منطق ته علم الیٰ ولې وايې.

لکونها آلة لجميع العلوم سيما للعلوم الحکمية:

يعنې ده ته علم الیٰ ځکه وايې چه علم منطق دَ ټولو فنونو دَ پاره آله ده يعنې چه څوک دې منطق باندې پوهيږي نو په نورو فنون هم ډير ښه پوهيږی چه دلته هيرو( Hero )وی نو په نورو فنونو کښې هم هيرو وی او چه دلته زيرو (Zero) وی نو هغه په نورو فنون کښې هم زيرو وی خصوصًا علم منطق آله ده دَ علم حکمت، يعنې چه څوک په علم منطق باندې پوهيږی په نورو فنونو کښې هم بيا چليدے شي گاډے په پاټلۍ روانولے شي لېکن چه څوک په علم منطق نه پوهيږي نو هغه په علم حکمت کښې چه هغه (رياضي، طبعی او الٰهی دے) بالکل نشي چليدے ځکه دَ علم حکمت تقريبًا ټول مباحث موقوف دي په فهم دَ منطق باندې نو چه دلته لا ادري وي نو هلته به هم لا ادري وي: (من کان فی هٰذه اعمیٰ فهو فی الاٰخرة اعمیٰ.)

فائده اعلم ان ارسطاطاليس الحکيم دون هٰذا العلم:

غرض دَ مصنف رح په دې عبارت سره بيان دَ مدون دَ علم منطق دے چه تدوين دَ علم منطق هغه ارسطاطاليس کړے وه او دے دَ عيسیٰ عليه السلام نه تقريبًا ٣٨٤ درې سوه څلور اتيا کاله مخکښې تير شوے دے ارسطاطاليس دَ افلاطون شاګرد وه او افلاطون دَ حکيم سقراط شاګرد وه اوسقراط دَ فيثا غورث شاګرد وه او فيثاغورث دَ سليمان عليه السلام شاګرد وه دَ يونان بادشاه فلپ دَ خپل ځوے سکندر دَ تعليم دَ پاره ارسطو استاد مقرر کړو بيا دَ سکندر په درخواست باندې ارسطو علم منطق ايجاد کړو دَ دې وجه نه دې ته معلم اول وئيلے کيږی.

**والفارابي هذّب هذا الفن:**

ارسطو نه وروستو بيا ابو نصر فارابي چه دے د مامون الرشيد همعصر وو المتوفى ٣٣٩ هـ دے هم ـ مسلمانانو فلاسفؤ يو اهم غړے دے ، دَ دې فن صفائي وکړه او بې کاره او فضول بحثونه يې ترينه لرې کړل. او يو شاندار انداز کښې منطق دنيا ته پېش کړو نو ده ته معلم ثاني دَ منطق وئيلے کېږي.

**وبعد اضاعة الكتب الفارابي:**

دَ فارابي دَ علم کتابونه په يوه حادثه کښې اوسوځېدل. نو دنيا ته ډېره پرېشاني لاحقه شوه چه منطق دَ دنيا نه ختم شو نو ابو علي ابن سينا چه هغه حافظ دَ منطق وو نو هغه منطق بيا د سره کړل . او دنيا يې يو ځل بيا په منطق سره روښانه کړه . دَ فارابي او ابن سينا په مېنځ کښې تقريبًا سل کاله وقفه وه. ځکه فارابي په ٣٣٩هـ کښې او ابن سينا په ٤٢٨هـ کښې تېر شوے دے[1].

**فصل ولعلك علمت مما تلونا عليك:** په دې فصل کښې مصنفؒ دا خبره ذکر کوي چه تاسو ته مخکښې بيان ده ضرورت دَ منطق تېر شو زما امېد دے چه دَ هغه بيان نه ذکي طالبانو او طالباتو به تعريف دَ منطق معلوم کړے وي خو که چا نه وي معلوم کړے زۀ به ورته بيا صراحةً ذکر کړم خو ياد دې ساتي تعريف دا دے.

---

[1] : فائده : بعض علماؤ (کالغزالی وغيره) ابن سينا ته د کفر نسبت کړے دے ځکه دے د معادِ جسمانی قائل نه وو دغه شان علامه ابن قيمؒ په اغاثة اللهفان کښې د فارابی ابو علی سينا او ارسطو باره کښې ليکی : ‹‹كانوا من عُبّادِ الاصنام›› والله اعلم بحقيقة حاله ليکن د ابن سينا د کتابونو نه معلوميږی چه دا الزام غلط دے ، الهيات شفاء ، کتاب کښې ابن سينا د معاد جسمانی متعلق ليکی : ‹‹وقد بسطت الشريعة الحقّة التى اتانا بها نَبِيّنا وسيدنا ومولانا محمد ﷺ حال السعادة والشقاوة التى بحسب البدن›› ، علم الکلام اور الکلام ص ٩٦ ـ بعض خلکو په ابن سينا باندی د کفر فتوٰی ولګوله نو ابن سينا په دغه وخت کښې دا دردناک شعر وئيلے وو :

"در دهر چوں من وآں هم کافر — پس در همه دهر يک مسلمان نبود"

ترجمه : که دنيا کښې زما په شان سُور مؤحد هم کافر شی بيا خو دنيا کښې هيڅوک مسلمان نشته .

علامه ابن حجرؒ په لسان الميزان کښې د ابن سينا دا اشعار ذکر کړی دی چه دا دلالت کوي د هغه په توبه باندی .

"نعوذبک اللّٰهم من شر فتنة — تطوق من حلّت به عِيشةً ضنكا

رجعنا اليك الأن فاقبل رجوعنا — وَقلّب قلوبا طال اعراضها عنك"

... ثابتولو کښې خامخا دير تکليف کولو ته ضرورت نشته . والله اعلم ، ✿ احقر حسين علی حفظه الله ✿

تعریف دَ علم منطق: "علم بقوانین تعصم مراعاتها الذهن عن الخطاء في الفکر" حاصل دَ تعریف دا دے چه علم منطق داسې علم دے چه په قوانینو مشتمل دے که دَ هغه قوانینو خیال اوساتلے شي نو انسان دَ فکري غلطیانو نه بچ کیګي.

**فصل: موضوع کل علم مایبحث فیه عن عوارضه الذاتیه له:**

غرض دَ مصنف رح اول بیان دَ مطلق موضوع کوي چه مطلق موضوع څه ته وایې او بیا به بیان دَ موضوع دَ منطق اوکړي. نو دَ څه علم یا دَ فن موضوع دېته وایې ما یبحث فیه عن عوارضه الذاتیه کوم علم کښې چه دَ هغه دَ عوارض ذاتیه نه بحث کېږي. دغه عوارض ذاتیه موضوع دَ دغه علم وي. مصنف رح مثال پېش کوي "کبدن الانسان للطب" لکه بدن دَ انسان موضوع دَ علم طلب ده ځکه علم طلب کښې عوارض ذاتیه دَ بدن نه بحث کېږي چه دې بدن دَ انسان باندې بخار کله راځي او ولې راځي او علاج يې څه دے،ده شوګر(Diabetes) اسباب څه دي او علاج ئې څه دے بلډپرېشر ولې هایې(high) کېږي او نارمل(normal) کېږي به څنګه، وغېره وغېره نو بدن دَ انسان دا موضوع دَ علم طب او دَ مېډیکل شوه.

خبردار: دا اعتراض څوک نشي کولے چه عوارض ذاتیه، لفظ استعمالول غلط دي ځکه عارضي معنیٰ خارج او ذاتي معنیٰ داخل نو دا خو اجتماع دَ نقیضېن ده. ځکه مونږ وایو چه دلته دَ عارض دغه مشهوره معنیٰ مراد ده نه چه خارج بلکه عارض په معنیٰ دَ متصل کېدونکي او لاحق کېدونکي سره دے شيئ پورې بیا عام دے داخل وي او که خارج.

## په خبره کښې خبره

دَ عوارضو ذکر تېر شو نو مناسب ده چه دَ عوارضو اقسام سره دَ تعریف نه اولېکلے شي. دَ هغې تفصیل څه په دې ډول دے چه درې عوارض ذاتیه دي او درې عوارض غریبه دي اول عوارض ذاتیه دي.

(۱): چه عارض کیږي شيئ پورې بالذات لکه تعجب چه عارض کېږي انسان ته بالذات (په ادراك دَ امر غریبه سره).

(۲): یا به عارضي کېږي شي ته په واسطه دَ جُزء سره لکه حرکت چه عارضي کېږي

انسان ته په واسطې دَ حېوان سره او حېوان دَ انسان جُزء دے.
(۳): يا به عارض کبري شي ته په واسطې دَ امر مساوي سره لکه ضحک چه عارض کېږي انسان ته په واسطه دَ متعجب سره او انسان او متعجب کښې مساوات دي لان کل انسان متعجب وکل متعجب انسان.
او عوارض غريبه دا دي: (۱): چه عارض کېږي شي ته په واسطې دَ خارج سره دغه خارج به خالي نه وي يا به عام وي لکه حرکت چه عارض دے ابيض ته په واسطه دَ حېوان سره او حېوان عام دے دَ ابيض نه ځکه حېوان سپينې چرګې ته هم شامل دے اوتورې چرګې ته هم شامل دے. او ابيض صرف سپينې چرګې ته شامل دے.
(۲): او يا به عارض کېږي شي ته په واسطه دَامر خاص سره لکه ضحك چه عارض دے حېوان ته په واسطه دَ انسان سره او انسان دَ حېوان نه خاص دے.
(۳): او يا به عارض کېږي شي ته په واسطه دَ امر مبائن سره لکه حرارت چه عارض دے ماء ته په واسطه دَ نار سره او نار مباين دے دَ ماء نه.

العوارض

| غريبه | ذاتيه |
|---|---|
| ۱: مايعرض الى الشئ بواسطة الاعم | ۱: مايعرض الى الشئ بالذات |
| ۲: مايعرض الى الشئ بواسطة الاخص | ۲: مايعرض الى الشئ بواسطة الجزء |
| ۳: مايعرض الى الشئ بواسطة المبائن | ۳: مايعرض الى الشئ بواسطة امر مساوي |

ملحوظه:

بعض علماؤ دَ منطق يو څلورم قسم هم په عوارض غريبه کښې شماري اګر که هغه مشهور نه دے په نزد دَ عامو هغه دا دے "چه عارض وي شي ته په واسطه دَ امر عارض سره لکه مفرق البصر چه عارض دے ثلج ته په واسطه دَ بياض سره او بياض عارض دے" والله اعلم.

فموضوع المنطق: دې عبارت نه وروستو غرض دَ مصنفؒ موضوع دَ منطق ذکر کوي. چه هغه معلومات تصوريه او معلومات تصديقيه دي خو لېکن په دې حېثيت سره چه د دوی د مجهول تصوري او مجهول تصديقي معلومېږي يعنې پواځې

تصور دَ زيد دی اوکړو. نو دا موضوع دَ منطق نه ده او حيوان ناطق تصور دې اوکړو نو دا هم موضوع دَ منطق نه ده. هان که حيوان ناطق سره دې انسان حاصل کړو نو اوس حيوان ناطق موضوع دَ منطق شوه. دغسې لا نجه په تصديق کښې هم ده.

فائدة: اعلم ان لكل علم صناعة غاية الخ: غرض دَ مصنف رح دې عبارت سره بيان دَ غرض دَ علم منطق دے دَ علم منطق غرض بيانوي په دې عبارت سره چه وغاية علم الميزان سره دَ هغه نه مخکښې بيان دَ دې خبرې کوي. چه غرض پېژندل ولې ضروري دي نو مصنف رح فرمايي چه غرض پېژندل ځکه ضروري دي چه که علم وی او که هر يوفن او مشغله وي دَ هغه غرض او نه پېژندل شي نو دوه نقصانه به راشي طلب دَ هغه علم عبث شي. دوېم چه دَ يو کار غرض وغايه معلوم نه وي نو دَ هغه دَ پاره کوشش کول فضول کار دے او دَ فضول کار ارتکاب کول عبث او وقت ضائع کول دي. ولا ينبغى هذا بشأن المعلمين والمتعلمين.

غرض دَ علم منطق: غرض دَ علم منطق او تعريف دَ علم منطق تقريبًا قريب قريب دي چه الاصابة فى الفكر وحفظ الرأى عن الخطأ يعنې انسان په غور او سوچ کولو کښې دَ فکري غلطيانو نه بچ کول.

فائده: دَ هرمرکب دَ پاره څلور علتونه ضروري دي (١)علت مادي، (٢) علت صوري، (٣) علت فاعلي، (٤) علت غائي.

مثلاً: يو کمره جوړول شو دَ کوموآلاتو او اسبابو نه چه کمره جوړېږي هغه علت مادي دے (لکه سيمنټ، سريه وغيره) او صورت دَ کمرې پس دَ جوړولو نه هغه علت صوري دے او کاريګر علت فاعلي دے او چونکه کمره دَ اوسېدو دَ پاره جوړېږی نو اوسېدل علت غائي دے.

معلومات تصوريه او تصديقيه دا علت مادي دے او دغه معلومات ترکيبي صورة علت صوري دے اور غور فکر کوونکے علت فاعلي دے و الاحتراز عن الخطاء فى الفکر علت غائي دے . والله اعلم.

فصل لا شغل للمنطقي من حيث انه منطقيٌّ

غرض دَ منصف رح دَ دې عبارة نه دفع دَ يو وهم ده. وهم دا دے چه مقصود دَ منطقي

هغه معرف او حجة دے (يعني معلومات تصوريه او معلومات تصديقيه) نو بحث کول دَ الفاظو نه يا دَ دلالت نه دا خروج دے دَ موضوع نه او خروج دَ موضوع نه دا ښه کار نه دے جواب حاصل دا دے چه معرف او حجة دَ قبيلې دَ معانيو نه دي ځکه معنئ دَ حيوان ناطق معرف ده دَ انسان دَ پاره نه دَ لفظ دَ حيوان ناطق هم دا رنګه معنئ دَ العالم متغير و کلّ متغير حادث حجت ده دَ پاره دَ العالم حادث نه لفظ دَ العالم متغير ليکن تعليم او تعلّم فائده او استفاده معانيو نه حاصليږي په الفاظو سره چه الفاظ دلالت اوکړي په دغه معانيو باندې نو ضروري شوه معرفت دَ دلالت نه چه دا موقوف عليه دے دَ الفاظو دَ پاره نو بحث کول دَ دلالت اوالفاظ نه دا مقصود بالذات نه دي بلکه مقصود بالعرض دي ا و بحث کول دَ مقصود نه هغه خروج دَ موضوع نه نه دے. اګر که هغه مقصود بالعرض وي من حيث انه منطقي يې ځکه وئيلي دي چه منطقي ته دَ منطقي په نظر اوګورې چه دا منطقي دے لا غير.

نو هغه بيا دَ الفاظو نه بحث نه کوي او چه منطقي نحوي هم وي لکه نن صبا داسې ډير دي چه هم منطقي وي او هم نحوي يا اصولي وي نو بيا هغه دَ الفاظو نه بحث هم کوي.

<u>وهذا البحث بمعزل عن غرضه</u>: يعنې دَ الفاظو نه بحث کول دَ منطقي دَ غرض نه لرې دے.

<u>فصل في الدلالة</u>: دَ دې فصل منعقد کول نه غرض دَ مصنفؒ بيان، تعريف او اقسام دَ دلالت کوي. دلالت په لغت کښې هو الارشاد يعني رهمنائي لارښودلو ته وايې او په اصطلاح کښې کون الشئ بحيث يلزم من العلم به العلم بشئ اٰخر الخ.

په اصطلاح کښې دلالت ديته وايې چه په يو شي باندې علم راشي نو دَ هغې دَ وجې نه په شئ اٰخر هم علم راشي مثلاً تا مناره اوليدله او ستا علم په مسجد راغلو. نو ديته دلالت وايې شئ اول، ته چه مناره ده په مثال مذکوره کښې دال. وايې اوشئ ثاني ته چه مسجد دے په مثال کښې مدلول وايې.

<u>فائده</u> : په تعريف کښې لفظ دَ علم راغلے دے چه يلزم من العلم بِهِ الخ دَ علم اطلاق په يقين او ظن دواړو باندې کيږي نو دَ دې نه څلور صورتونه جوړيږي.

(١) يقين وي په شئ اول د هغه نه يقين وي. په شئ ثاني لکه چا مناره اوليدله او يقين يې برې راغلو چه دا مناره ده د هغې نه يقين راغلو په مسجد باندې.
(٢) يقين وي په شئ اول دَ هغه نه ظن وي په شئ ثاني لکه ستا په وريځ ليدلو باندې يقين وي ليکن په باران کېدو باندې ظن وي.
(٣): ظن وي په شئ اول او دَ هغې نه ظن وي په شئ ثاني لکه تا ظن اوکړو په يو کاډے چه دا ايمبولنس(Ambulance ) دے او بيا دې ظن اوکړو چه دې کښې زخمي يا مړے دے.
(٤): ستا ظن وي په شئ اول دَ هغه نه يقين وي په شئ ثاني دا نفس احتمال دے مثال يې نشته ځکه يقين ظن نه نه حاصلېږی.
دلالت اول نه په دوه قسمه دے : (١)يو لفظي دے، (٢) او بل غېر لفظي دے.
لفظي: هغه دلالت ته وايې چه دال لفظ وي لکه زيد دلالت په ذات دَ زيد باندې.
غېر لفظي:چه دال لفظونه نه وي لکه دَ منارې دلالت په مسجد باندې.
دلالت لفظي او غېر لفظي هر يو په درې قسمه دے: (١) وضعي، (٢)طبعي، (٣) عقلي نو دا مجموعه شپږ قمسونه شو تفصيل يې دا دے.
وکل منهما على ثلاثة انحاء: غرض دَ مصنفؒ په دې عبارة سره تعريفات دَ اقسام دَ دلالت کوي نو اول په هغې کښې دلالت لفظي وضعي دے.
(١): دلالت لفظي وضعي: هغه دلالت چه دال پکښې لفظ وي او دلالت دَ وضع دَ وجې نه وي لکه دلالت دَزيد شو په خپل مسمّي باندې.
(٢): دلالت لفظي طبعي: هغه دلالت ته وايې چه دال په کښې لفظ وي او دلالت دَ طبيعت دَ تقاضې دَ وجې نه وي لکه دلالت دَ لفظ "اح اح" په درد دَسينې ( Chest Infection) باندې .
وقيل بفتحها: په دې عبارت سره مصنفؒ په "اح اح" کښې دوېم قرأت هم ذکر کړے دے چه دوېم قرات په دې کښې فتحه د همزه ده چه "اَح اَح" دے.
فان الطبيعة تضطر: مطلب دَ عبارت دا دے چه انسان محتاجه کېږي دې خبرې ته چه کوم وخت سينه کښې تکليف وي (chest infection) نو دا آواز "ا ح اح" به اوباسي.

(٣): دلالت لفظي عقلي هغه دلالت چه دال پکښې لفظ وي او دلالت صرف د عقل د وجې نه وي لکه لفظ دَ ديز چه اَلتې دَ زيدْ دے ځکه که د ديز په ځايې زيدْ سي بيا به وضعي شي نه عقلي چه دَ دېوال دَ شانه دَ ديز ديز اواز راځي نو عقل وايې چه دَ ديوال شاته څوک شته چه دا لفظ دَ ديز ادا کوي.

(٤) دلالت غير لفظي وضعي: هغه دلالت چه دال پکښې لفظ نه وي او دلالت دَ وضع د وجې نه وي لکه دلالت دَ دوال اربعه شو په هغه خپل مدلولات باندې. دوال اربعه دا دي: (١) عقود، (٢)خطوط، (٣)نصب، (٤)اشارات .

(١)عقود: هغه بندونو ته وايې چه په شمار دلالت کوي لکه عقد انامل شو مثلاً .

(٢)خطوط : لکه جمع + ضرب X منفي-، تقسيم ÷ ، وغيره دا دلالت په خپل مدلولات کوي.

(٣) نُصُبْ: لکه په چوکونو کښې دَ ګاډؤ ودرولؤ او روانولؤ اشارې .

(٤)اشارات : لکه دَ سر اشارات، اثبات يا نفي دَ پاره يا د لاس اشارات اياب يا ذهاب دَ پاره

(٥)دلالت غيرلفظي طبعي: هغه دلالت چه دال پکښې لفظ نه وي او دلالت دَ طبيعت دَ تقاضې دَ وجې نه وي لکه دلالت دَ اواز دَ اَس په طلب کولو دَ اُوبو يا وَخؤ باندې.

(٦) دلالت غير لفظي عقلي: هغه دلالت چه دال پکښې لفظ نه وي او دلالت دَ عقل دَ وجې نه وي لکه دلالت دَ لوګي په اور باندې. دويم مثال لکه تا يو خايسته شين باغ او هغې کښې قسما قسم ګلونه او کيارې وليدې نو ستا علم په مالئ (Gardener)هم راځي چه د دې باغ مالئ هم شته.ځکه خو وحشت شاعر فرمائي ؛

*لاکھ ناداں سہی اتنے بھی تو ہم کور نہیں*
*کہ چمن دیکھ کے ذکرِ چمن آرا نہ کریں*

<u>فهذه ست دلالات:</u> نو دا شپږ دلالتونه شول. نو اوس چه منطقيان بحث کوي نو

دلالت دَ لفظي وضعي نه بحث کوي ځکه چه بل لره فائده ورکول یا دَ بل نه فائده اخستل دا حاصلېږي دَ دې دلالت لفظي وضعی نه په آسانتیا سره په خلاف دَ دې نورو نه ځکه په ـې نورو دلالاتو کښې بل لره فائده ورکول یا دَ بل نه فائده حاصلول دا خالي نه دي دَ صعوبت او مشکلاتو نه او چونکه انسان سهولت پسند ( facilitate ) دے ، داسی لانجو ته غاړه نشی ایخودے ، دی وجی نه نورو دلالاتو نه منطق کښی طيِّ کشح کیږي

**فصل وینبغي ان یعلم .. الخ**: غرض دَ مصنف رح په دې عبارت سره یو تحقیق المقام کوي چه دلالت لفظي وضعي چه هغه په عام محاورات کښې په خبرو اترو بات چیت او گفتکو کښې او علوم کښې معتبر دے سوا دَ نورو اقسامو نه چه دَ هغوي دا مرتبه نه ده نو دغه دلالت لفظي وضعي په درې قسمه دے.

(۱)**المطابقیه وهي ان یدل الخ**: دلالت مطابقي دېته وايې چه لفظ دلالت اوکړي په ټول معنیٰ موضوع له باندې لکه انسان دلالت اوکړي په ټول حیوان ناطق باندې چه دَ دې انسان پوره معنیٰ او موضوع لهٗ دے او دېته مطابقي ځکه وايې چه مطابقي دَ تطابق نه دے او تطابق توافق ته وېي لکه عرب وايې طابق النعل بالنعل داهله وايې چه یو پیزار دَ بل سره برابر شي. دلته هم لفظ دَ موضوع لهٗ سره مطابق او برابر شو.

(۲)**التضمینه وهی ان یدل اللفظ ...الخ**: دلالت تضمني دېته وايې چه لفظ دلالت اوکړي په جزء دَ موضوع لهٗ باندې **لکه کافیه** دلالت اوکړي صرف معرب باندې دېته دلالت تضمني وايې ځکه دا مدلول جزء دَ موضوع له دے.

(۳) دریم دلالت التزامي دے، **الالتزامیه** وهی ان یدل ....الخ: دېته وايې چه لفظ دلالت اوکړي په خارج دَ معنیٰ موضوع لهٗ باندې لېکن هغه خارج دَ موضوع له دَ موضوع سره لازم وي. لکه دلالت دَ حاتم طائي شو په سخا باندې حاتم موضوع له حیوان ناطق دے په سخا دلالت کول دا معنیٰ خارج ده دَ موضوع له نه لېکن دا خارج معنیٰ دَ حاتم طائي سره لازم ده. پس زده کړه دا خبره چه لزوم په درې قسمه دے.

(۱)لزوم ذهني: چه ذهن کښې یو څیز دَ بل څیز سره لازم وي لکه زوجیت لازم دے دَاربعه سره په ذهن کښې.

(۲)لزوم خارجي: چه لزوم په خارج کښې وي نه په ذهن کښې لکه حرارت لازم دے دَ نار سره په خارج کښې نه په ذهن کښې.
(۳) لزوم عرفي: لکه سخا لازم ده دَ حاتم طائي سره لېکن په عرف کښې.
**والِلازِم هو ما ينتقل الذهن** ...الخ: غرض دَ مصنف دَ دې عبارت سره تعريف دَ لزوم کوي چه لزوم دېته وايې چه تصور دَ ملزوم سره تصور دَ لازم هم راځي لکه دَ انسان دَ تصور سره دَ قابل العلم او فن دَ کتابت هم راځي نو قابليت دَ علم او فن دَ کتاب دَ انسان سره لازم دي يا لکه عمي سره بصر لازم دے ځکه چه مونګ تصور دَ عمي اوکړو نو دَ بصر تصور ورسره هم راځي ځکه دَ عمي تعريف دا دے چه عدم البصر عما من شانه ان يکون بصيراً دَعمي تعريف بغېر دَ بصر نه نه کېږي ځکه بصر لازم دے دَ عمي سره.
**فصل: الدلالة التضمينية والالتزامية لاتوجدان بدون المطابقة**. الخ
غرض دَ مصنف رح دَ دې فصل نه بيان دَ نسبت دے په ما بين دلالت تضمني التزامي او مطابقي کښې دې عبارت کښې مصنف رح دوه دعوې ذکر کوي. اوله دعوه دا ده: چه دلالت تضمني او التزامي بغېر دَ مطابقې نه نشي موجود کېدے. دوېمه دعوه دا ده: چه دلالت مطابقي بغېر دَ دلالت تضمني او التزامي نه موجود کېدے شي.
حاصل دَ هغې دا دے چه دلالت تضمني او التزامي بغېر دَ دلالت مطابقي نه نه موجودېږي ځکه چه دلالت تضمني دېته وايې چه لفظ دلالت اوکړي په جزء دَ موضوع له باندې. او جزء بغېر دَ کل نه نه شي موجود کېدے يعنې کل متبوع وي او جزء تابع وي. او تابع بغېر دَ متبوع نه نه شي موجود کېدے دغه رنګه دلالت التزامي بغېر دَ مطابقې نه نه شي موجود کېدے ځکه دلالت التزامي دېته وايې چه دلالت اوکړي په لازم دَ معنیٰ موضوع له باندې نو لازم بغېر دَ ملزوم نه نه شي موجود کېدے ځکه ملزوم متبوع وي او لازم تابع وي اوتابع بغېر دَ متبوع نه نه شي موجود کېدے.
دوېمه دعوه دا ده چه دلالت مطابقي بغېر دَ دلالت تضمني او التزامي نه موجود کېدے شي هر چه دلالت مطابقي بغېر دَ دلالت تضمني نه موجود کېدے شي ځکه

کیدے شي یو لفظ دې وضع شوے وي د یو معنیٰ د پاره او د هغه معنیٰ جزء دې نه وي لکه لفظ دَ الله شو. دا وضع شوے دے دَ ذات دَ واجب دَ پاره چه موضوع له دے لفظ دَ الله نو دلالت مطابقي شته او تضمني نشته ځکه دَ واجب تعالیٰ هيڅ جزء نشته دا رنګه کیدے شي یو لفظ دے وضع شوے وي دَ یو معنیٰ د پاره او دَ هغه معنیٰ لازم دې نه وي. نو دلالت مطابقي موجود شو. لیکن دلالت التزامي نشته.

فان قلت: غرض دَ مصنفؒ دَ دې عبارت نه دَ امام رازيؒ اعتراض نقل کوي. او بیا قلنا سره به دَ هغې جواب کوي.

حاصل دَسوال دا دے چه دا نه منم چه لفظ دلالت اوکړي په یو معنیٰ او دَ هغی معنیٰ لازم نه وي، هر معنیٰ سره بالضرور څه نا څه لازم وي. که بل څه شيئ لازم نه وي نو دا خو ورسره لازم دے کنه. چه دا معنیٰ خپل ځان نه غیر نه ده .مثلاً ستا لاس کښې موبائل دے دې سره که بل څه شے لازم نه وي. نو دا خو ورسره لازم دے کنه چه دې خپل ځان نه غیر نه دے یعني قلم نه دے بلکه موبائل دے.

قلنا سره مصنفؒ جواب ذکر کوي حاصل دَ جواب دا دے چه زمونږ مراد دَ لازم نه لازم بیّن بالمعنیٰ اخص دے او مطلق لازم مراد نه دے او لازم بیّن بالمعنی الاخص دیته وایې چه تصور دَ ملزوم سره تصور دَ لازم کیږي. او ډیر کرته مونږ تصور دَ معنیٰ کوو. لیکن دَ غیر تصور سره نه کیږ (او چه دا معنیٰ خپل ځان نه غیرنه ده) دَ دې تصور خو بالکل نه کیږي مثلا مونږ دَانسان تصوراوکړو نو دَ لازم طرف ته بالکل ذهن ته متوجه کیږي نو چه لازم طرف ته ذهن نه متوجه کیږي نو غیر یا لیس غیرها طرف ته په طریقه اولیٰ سره نه متوجه کیږي حاصل دَ جواب دا دے چه ستا مراد دَ لازم نه لازم بیّن باالمعنیٰ الاعم دے چه دَ لازم او ملزوم او دَ نسبت تصور سره جزم باللزوم حاصل کیږي او زمونګ مراد دَ لزوم نه لازم بین با المعنی الاخص دے کوم چه زمونږ مراد دے په هغه اعتراض نه رازي او په کوم چه اعتراض رازي هغه زمونږ مراد نه دے.

خبردار: مصنف چه کوم جواب امام رازيؒ له ورکړو دا جواب ناکا فی دے ځکه امام رازی په نزد معتبر په دلالة التزامی کښ مطلق لزوم دے (نه لازم بین بالمعنی

الاخص) او جمهور علماء هم د دلالة التزامی د یاره مثال په قبل العلم او صنعة الکتابة سره بیش کوي او دا دواړه هم نفس لازم دی د انسان سره ، دا دواړه لازم بین بالمعنی الاخص نه دی ، نو د جمهور علماؤ مثال هم تائید د امام رازي کوی . [هذا کعث ولایکاد یلوکه ذو ذُوْرَدْ (فاقد الاسنان)] **حق جواب** امام رازي ته دا دے چه دلالة التزامی د مطابقی سره لازم نه دے که لازم شي؟ نو بیا به دلالات غیر متناهیه موجود شي ځکه 'انه لیس غیره' که لازم شي د هر ماهیت سره نو دا خو هم یو ماهیت دے د ماهیاتو نه نو د سره به هم 'انه لیس غیره لازم وی . هلمّ جرا فیتسلسل . ولعمری هذا فاسد'

❁ احقر حسین علی حفظ اللہ ❁

پس زده کړه دا خبره چه په اعتبار دَ وضوح او خفاء سره لازم په څلور قسمه دے (۱) لازم بین بمعنی الاخص، (۲) لازم غیر بیّن بمعنی الاخص، (۳) لازم بیّن بمعنی الاعم، (٤) لازم غیر بیّن بالمعنی الاعم.

(۱): لازم بین بمعنی الاخص: دېته وايي چه تصور دَ ملزوم سره تصور دَ لازم هم کېږي لکه تصور دَ عمي سره تصور دَ بصر هم کېږي. یا لکه تصور د بم (bomb) سره تصور د دهماکی ( blast ) یا د تخریب ( vitiation ) هم کیږی .

(۲):لازم غیر بیّن بمعنی الاخص: دېته وايي چه تصور دَ ملزوم سره تصور دَ لازم نه کېږي. لکه کتابت بالقوه لازم دے دَ انسان سره لېکن دَ انسان تصور سره تصور دَ کتاب بالقوه نه حاصلېږي.

(۳):لازم بیّن بمعنی الاعم: دېته وايي چه دَ ملزوم او دَ لازم او دَ دوي په مینځ کښې دَ نسبت تصور سره جزم باللزوم حاصلېږي لکه زوجیت لازم دے دَ اربعه سره لېکن دا لزوم هله حاصلېږي چه دا اربعه او دَ زوجیت او دَ دواړو مینځ کښې دَ نسبت تصور اوشي نو جزم باللزوم حاصلېږي.

(٤): لازم غیر بیّن بالمعنی الاعم: دېته وايي چه دَ ملزوم او دَ لازم او دَ نسبت تصور سره جزم باللزوم نه حاصلېږي بلکه خارجي دلیل ته ضرورت وي لکه حدوث لازم دے دَ عالم سره لېکن صرف دَ عالم او دَ حدوث او دَ نسبت تصور سره جزم

باللزوم نه حاصلېږي تر څو پورې چه خارجي دليل نه وي قائم شوے چه لانه متغير الخ. يا لکه مثلا موت دا لازم دے دعزرائيل عليه السلام سره ولو لحظة ليکن په دى لزوم يقين هله راځى چه دليل په دى قائم شي . چه وَيَبْقَى وَجْهُ ربك الخ دے . يا هغه حديث دے چه د هغه مختصر مفهوم دا دے چه : باری تعالى چه کله د تمام د مخلوق دمرګ نه بعد د جبرائيل او ميکائيل عليهما السلام باندى د مرګ فيصله اوکړى نو عرش به سفارش اوکړى چه يا الله دا خو بچ کړه کنه........؛ الله به جواب ورکړى چه اُسْكُتْ فَقَدْ كَتَبْتُ الْمَوْتَ عَلٰى مَنْ كَانَ تَحْتَ عَرْشِىْ . بيا به د اسرافيل عليه السلام باره کښى حکم اوشي : فَلْيَمُتْ اِسْرَافِيْلُ بيا به باری تعالى عزرائيل عليه السلام نه تپوس وکړى نور څوک ژوندى شته ؟ هغه به جواب کښى وائي صرف بزه ته ئي او عرش نه لاندى زه يم . باری تعالى به عزارائيل عليه السلام ته حکم اوکړى مُتْ هغه به هم مړ شي.

## فصل اللفظ الدال اما مفرد او مرکب ....الخ

هر کله چه فارغ شو مصنف رح دَ تعريف او دَ اقسام دَ دلالت نه نو اوس يې شروع وکړه په دال کښې چه لفظ دے دا دال په دوه قسمه دے (۱) مفرد، (۲)مرکب بيا دَ مفرد دَ پاره پنځه (۵) مصداقه دي.

(۱): لفظ دَ پاره جزء نه وي لکه همزه دَ استفهام (ء) دَ دې جزء نشته.

(۲):دَ لفظ دَ پاره جزء وي ليکن دَ معنىٰ دَ پاره جزء نه وي لکه لفظ دَ (هَلْ) شو لفظ جزء شته چه (ه) او (ل) دي ليکن دَ معنىٰ جزء نشته. ځکه دا دَ همزه استفهاميه معنىٰ سره دے او دَ هغې دَ سره جزء نشته يا لکه لفظ دَ الله شو.ده لفظ اجزاء شته (ا) ، (ل)، (ه) ليکن دَ معنىٰ جزء نشته ځکه دَ دې معنى ذات دَ واجب دے او هغه بري من الاجزاء دي .

(۳): لفظ دَ پاره هم جزء وي معنى دَ پاره هم جزء وي ليکن جزء دَ لفظ دلالت نه کوي په جزء دَ معنىٰ لکه غضنفر شو لفظ هم اجزاء شته چه (غ،ض،ن،ف،ر) او دَ معنىٰ هم جزء شته چه انسان دے او دَ هغه اجزاء شته ليکن جزء دَ لفظ دلالت نه کوي په جزء دَ معنىٰ چه غبن دلالت وکړي په سر باندې ضاد دَلالت وکړي په خپو

باندې ن دلالت اوکړي په لاس باندې وغيره.

(٤): لفظ دَ پاره هم جزء وي معنیٰ د پاره هم جزء وي جزء د لفظ به هم دلالت کوي په جزء د معنیٰ لېکن دغه معنیٰ به مقصود نه وي لکه څنګه الرحمن په حين دعمليت کښې ټول شرائط موجود دي جزء د لفظ دلالت هم کوي په جزء د معنیٰ خکه خليل معنیٰ دوست رحمن معنیٰ ډېر رحم کوونکے. لېکن د عمليت انوه اخودو په وخت کښې) معنیٰ مقصود نه وي څکه په دغه معنیٰ دلالت په اعتبار د معنیٰ اضافي سره کېږی حالانکه مقصود معنیٰ علمي ده نه اضافي ولې که معنیٰ اضافي مقصود شي نو بيا به خليل الرحمٰن مرکب شي نه مفرد لکه کوم وخت کښې خليل الرحمٰن علم نه وي نو بيا مرکب دے.

(٥): يا دَ لفظ معنیٰ هم مقصود وي لېکن دلالت مقصود نه وي مثلاً حيوان ناطق دَ چا نوم کېخودے شي نو جزء دَ لفظ په جزء دَ معنیٰ هم دلالت کوي. او دا معنیٰ مقصود هم ده چه حيوان معنیٰ (ساه او روح والا) او دَ ناطق معنیٰ (خبرې کوونکے) او دا معنیٰ مقصود هم ده څکه دغه سړے حقيقت هم حيوان ناطق دے لېکن دَ نوم اېخودو په وخت کښې دَ دې دلالت ايراده نه ده شوې. دلته تميز مقصود دے دَ ده جميع ما عدیٰ نه حيوانيت او ناطيقيت مقصود نه دے..

## فائـدةٌ نـادرةٌ

سوال: خليل الرحمان يا مثلاً عبدالله او حيوان ناطق کښې څه فرق دے چه عبد الله په حين د علميت کښې جز د لفظ په جز د معنیٰ مقصود باندی دلالت نه کوی او حيوان ناطق په حين د علميت کښې جز د لفظ په جز د معنیٰ مقصود باندی دلالت کوی دا فرق خو څما سمجه ته را نغلو؟؟

جواب: فرق دا دے چه عبدالله د پاره دوه معنیٰ دی يو معنیٰ ترکيبی ده( يعنی قبل العلميت) چه هغه عبوديّت او الوهيّت ده او دا معنیٰ مقصود نه ده او دويمه معنیٰ د عبد الله هغه عَلَمِي چه هغه ماهيتِ انسانی سره د تشخّص نه او دا معنیٰ مقصود ده، نو معنیٰ ترکيبی جز نه ده د معنیٰ علمي نه، او جز د لفظ دلادلت کوی په جز د معنیٰ ترکيبی باندی (او هغه خو غير مقصود ده) نو په معنیٰ مقصود دلالت او نه شو.

او حيوان ناطق د پاره هم دوه معنى دى يو معنى تركيبي (قبل العلميت) چه هغه ماهيت انساني دے فقط او دا معنى غير مقصود ده او دويمه معني علمي ده چه ماهيت انساني مع التشخص او دا معنى مقصود ده، ليکن دلته معنى غير مقصود، چه ماهيت انساني دے جز ده معنى مقصود نه (چه ماهيت انساني مع التشخص ده) حکه معنى مقصود کښې دوه جزه دى (۱) ماهيت انساني (۲) مع التشخص نو هر کله چه حيوان دلالت اوکړو په معنى ترکيبي باندےچه هغه غير مقصود ده او دغه معنى ترکيبي جز ده دمعنى علمى نه ( چه مقصود ده) نو جز د معنى ترکيبي هم جز شو د معنى علمي نه حُکه جز د شي دا جز وى د دغه شي نه نو گويا کښې حيوان دلالت اوکړو په جز د معنى مقصود باندى ليکن دا دلالت غير مقصود دے حُکه مقصود زمونږ ده حيوان نه په حين د علميت کښې هغه تميز دے. ❁ احقر حسين علي حفظ الله ❁

## والمركب ما يقصد بجزئه .... الخ

مرکب هغې ته وايې چه جزء دَ لفظ دلالت کوي په جز دَ معنىٰ باندې لکه زيد قائم او رامى السهم دى دواړو مثالونو کښې جز دَ لفظ دلالت کوي په جز دَ معنىٰ باندې حُکه زيد په ذات معين دلالت کى او قائم په ذات من له القيام باندې دلالت کوي او رامى دلالت کوي په ذات من له الرمى او سهم دلالت کوي په جسم مخصوص باندې او دَ هغه معنى دَ متکلم مقصود هم ده نو دا مرکب شو حاصل دا شو چه کوم لفظ کښې دَ هغه مذکور پنځه شرائطو نه موجود وي نو هغه به مرکب وي علىٰ فحواه معنىٰ خپل په مصداق او مراد باندې

ثم المفرد علىٰ ثلثة انحاء: غرض دَ مصنف رح دې عبارة نه تقسيم دَ مفرد دے اقسام ثلاثؤو ته وجه دَ حصر دا ده چه دا مفرد به خالي نه وي يا به په دلالت کولو کښې غير ته محتاج وي يا به نه وي که په دلالت کولو کښې غير ته محتاج ؤو مستقل بالمفهومية نه وه نو دېته حرف وايې او په اصطلاح دَ منطقيانو کښې ادات وايې لکه من، علىٰ وغيره.

او که مستقل بالمفهومية وه يعني په دلالت کولو کښې غير ته محتاجه نه وه نو بيا به خالي نه وي يا به دَ درې زمانو نه يو زمانه دې کښې وي يا به نه وي که وي نو

دا فعل دے او په اصطلاح دَ منطقیانو کښې دېته کلمه وايې او که مقترن زماني پورې نه وه دېته اسم وايې.

اعلم انه قد ظن بعضهم الخ: غرض دَ مصنف رح دَ دې عبارت نه تحقيق المقام او دفع د توهم کوي هغه وهمْ اکثر خلقو ته کېږي چه دَ نحويانو فعل او دَ منطقيانو کلمه يو شئ دے يعنې دې دواړو کښې نسبت دَ مساوات دے يعنې هر فعل کلمه ده او هره کلمه فعل دے.

نو مصنف په دې فصل کښې دَ دې وهمْ ازاله کوي چه فعل او کلمه کښې دَ مساوات نسبت نه دے بلکه دې دواړو کښې نسبت دَ عموم خصوص مطلق دے فعل عام مطلق دے او کلمه خاص مطلق ده يعنې هر کلمه فعل دے لېکن هر فعل کلمه نه ده ځکه مثلًا (تضربُ، مضارع مخاطب، او متکلم صيغې چه اضربُ، نضربُ)دی، يعنى هغه صيغې چه فاعل پکښې ذکر وي دا صيغې دَ فعل دي لېکن کلمه نه دي ځکه کلمه دَقسم دَ مفرد نه ده او دا قسم صيغې مرکب دي ځکه دې کښې جزء دَ لفظ دلالت کوي په جزء دَ معنیٰ باندې ځکه "تا" په مضارع مخاطب کښې دلالت کوی په فاعل، او همزه او نون دلالت کوي په متکلم او فاعل باندې او ض ، ر، ب، دلالت په حدث کوي نو جز د لفظ دلالت اوکړو په جز د معنیٰ باندی، دويم دليل د ترکيب د دے صيغو دا دےچه اَضرِبُ يا نَضرِبُ، نه وروستو چه ضمير ذکر شي مثلاً اَضرِبُ اَناَ يا نَضرِبُ نَحنُ نو دا تاکيد دَ فاعل به وي فاعل به نه وي نو معلومه شوه چه فاعل مخکښې صيغه کښې خپل ذکر دے نو دا مرکب شو په خلاف دَ ضرب يضرب نه چه دا کلمه هم ده او فعل هم دے ځکه ضرب يا يضرب نه وروستو چه اسم ذکر شي مثلاً زيد نو هغه به ورلره فاعل شي نو معلومه شوه چه ضرب کښې فاعل نه وه نو دا مفرد شو نودا هم کلمه شوه او هم فعل.

خبردار: دَ بعضې علماؤو په نزد باندې اضرب او دَ نضرب وغېره صيغې په کلمه کښې داخل دي ځکه هغوئ دَ مرکب په تعريف کښې يو دا قېد لګوي چه مستقل به وي په تلفظ کښې او مرتب في السمع به وي او دا صيغې مستقل په تلفظ کښې نه دي نو دا مفرد شوې (والله اعلم).

د ... دغه شان د نحوينو حرف او د منطقيانو ادات کښې هم نسبت د مساوات نه دے بلکې د عموم خصوص مطلق نسبت دے ځکه کان د نحويانو په نزد فعل دے ليکن دمنطقيانو په نزد ادات دے نو هر حرف ادات دے او هر ادات حرف نه دے. هم دغه شان اسم منطقي او اسم نحوي کښې عموم خصوص مطلق دے ، ماده اجتماعي لکه زيد شو ، ماده افتراق لکه اسمِ فعل شو . دا اسم نحوي دے او اسم منطقي نه دے.

❁ احقر حسين علي حفظ الله ❁

## فصل وقد يقسم المفرد بتقسيم اٰخر......الخ

غرض دَ مصنفؒ دَ دې فصل نه دويم تقسيم کوي په مفرد کښې ليکن دا خبره ياد ساتل پکار دي چه اول تقسيم په مفرد کښې په اعتبار دَ استقلال او عدم استقلال سره وه او دا تقسيم په اعتبار دَ وحدت معنیٰ او کثرت معنیٰ سره دے، مفرد په اعتبار دَ وحدت معنیٰ او کثرت معنیٰ سره په وه (۷) قسمه دے درې په اعتبار دَ وحدت معنیٰ سره دي چه علم، متواطي، مشکک او څلور اقسام په اعتبار دَ کثرت معنیٰ سره دي چه هغه مشترك، منقول، حقيقت او مجاز دی چه هغه په راتلونکي فصل کښې ذکر کېږي.

حاصل دَ دې فصل : دا دے چه لفظ مفرد به خالي نه وي يا به معنیٰ دَ دې واحد متعين وي نو دېته عَلَمْ وايې لکه زيد، هو، هٰذا شو مصنفؒ فرمايي چه غوره چه دَ دې قسم نوم جزئي حقيقي شي ځکه هُوَ، هٰذا وغيره اسماء اشارات او ضمائر دا علم نه دي او جزئي حقيقي دي (ځکه علَم ما وضع لشي معيّن ته وائی لکه زيد، عمرو شو او اسمائے اشارات ضمائر داسی نه دی ځکه هذا وضع شوے دے د هر مفرد مذکر محسوس بالبصرد پاره او هو وضع شوے دے د هر مفرد مذکر غائب ما تقدَّم ذکرهُ لفظاً او معناً او حکماً دپاره، نو دا عَلَم نه دی) نو دَ زيد معنیٰ واحده او متعيّنه ده ځکه زيد چه دَ چا نوم دے په هغه صادق کېږي نه په نورو او که دَ لفظ مفرد معنیٰ واحد وی ليکن معين نه وي ځکه په ډېرو افرادو په برابره صادق کېدو په اوليّت، اولويّت،اشديّت او ازديّت په اعتبار سره څه فرق نه وو. نو دې ته کلي متواطي وئيلے شي لکه انسان دَ ده معنیٰ واحد ده په ډېرو افرادو صادق کېږي چه

افراد يې زيد، عمر، بکر وغېره دي لېکن په يو فرد باندې هم په اوليّت، اولويّت، اشديّت اذديّت سرهٖ فرق نشته ځکه دا ټول افراد يو شان انسانان دي ده ته متواطي ځکه وايې چه متواطي دَ تواطو نه دے او تواطو توافق ته وايې دلته هم دَ کلي صدق خپل په افرادو په برابره دے په صدق کښې څه فرق نشته. او که دَ لفظ مفرد معنیٰ واحد غېر معين وي لېکن په کومو افرادو چه دا صادقېږي نو په برابره نه صادقېږي بلکه په بعضې افرادو باندې صدق په اعتبار دَ اوليت سره وي او په بعضو نور په اوليت سره نه وي يا په بعضې افراد صدق په اولويت سره وی او په بعضو نورو په اولويت سره نه وی او يا په بعض افرادو صدق اشد وي او په نورو بعضې باندې صدق ضعيف وي يا په بعضو افرادو صدق په زيادت سره وي او په بعضو نورو په کمه وي. نو دېته کلي مشکک وايې لکه وجود شو ځکه دَ وجود معنیٰ واحد ده لېکن معين نه ده ځکه وجود په الله هم صادقېږي او په ممکناتو هم صادقېږي لېکن وجود صدق په الله تعالیٰ علت دے دا رنګه اشد دے دا رنګه اولیٰ دے دَ صدق ده وجود نه په ممکن باندې او صدق دَ وجود په ممکن باندې بالواسطه دے دغه رنګه ضعيف دے او وروسته دے يا لکه بياض شو چه صدق دَ بياض په (ثلج) واوره باندې اشد دے دَ صدق دَ بياض نه په (عاج) يعنې دَ هاتي په غاخ باندې هغه کښې بياض ضعيف دے يا لکه وزن شو دا هم يو کلي دے صدق په بعضې افراد په زياته کېږي چه دوه کلو غنم وي مثلاً او په بعضې افرادو په کمه کېږي لکه يو کلو غنم دي مثلاً.

حاصل دا شو دَ تشکيک دَ پاره څلور مراتب دي يعنې تشکيک په څلور قسمه دے.

(۱) تشکيک بالاولیت: دېته وايې چه صدق دَ کلي په بعض افرادوعلت وی دَ صدق دَ کلي نه د بعضې نورو دَ پاره ۓ[1]

(۲)تشکيک بالاولوليت: دېته وايې چه صدق دَ کلي په بعضې افرادو بالذات وي او په

---

[1]: بالاوليت دا معنیٰ نه ده چه صدق د کلي په بعضې افرادو مقدم وي او په بعضې مؤخر وي خکه بيا انسان کلي مشکک سو خکه دَ ده صدق په ادم عليه السلام مقدم دے او په اولاد باندې مؤخر دے حالانکه انسان کلي متواطي دے نه مشکک"

✿ احقر حسين علی حفظ الله ✿

بعضې فرد بالتبع وي لکه هم دغه وجود شو ځکه وجود په نسبت دَ الله تعالیٰ ته بالذات حاصل دے او وجود په نسبت سره ممکن ته بالتبع دے ځکه دَ ممکن وجود دَ واجب تعالیٰ دَ وجود نه حاصل دے یا لکه ضوء شو چه شمس دَ پاره بالذات حاصل دے او د قمر دَ پاره بالتبع دے (لان نور القمر مستفاد من نور الشمس). ( moon takes its light from the sun )

(۳) او تشکیك فی الاشدیت: دېته وایې چه کېفیت کښې صدق دَ کلي په بعضې افرادو اشد وي او په بعضې ضعیف وي لکه بیاض شو چه دا په ثلج کښې اشد دے دَ هاتي دَ غاښ نه.

(٤) او تشکیك في الازدیت: دېته وایې چه صدق دَ کلي په بعضې زیات وي او په بعضې نورو کم وي لکه وزن شو صدق دَ ده په دوه کلو غنمو باندې زیات دے دَ صدق دَ ده نه په یو کلو غنم باندې یا لکه ګز شو صدق دَ ده په دؤه ګزه کپړه باندې زیات دے دَ صدق دَ ده نه په یو ګز کپړه باندې.

مشکک وجه تسمیه: مشکک ته مشکک ولې وایې وجه دَ تسمیه دا ده چه مشکک معنیٰ (شک کښې اچوونکے) او دا کلي هم سړے شک کښې واقع کوي ځکه بیاض مثلا په ثلج کښې هم دے او په عاج کښې هم دے په اصل معنیٰ (بیاض) کښې دواړه شریک دي. نو کتونکي خیال کوي چه بیاض کلي متواطي دي ځکه دَ کلي متواطي افراد هم په اصل معنیٰ کښې شریک وي لکه انسانیت کښې زید، عمر، بکر وغېره شریک دي. لېکن بل طرفته چه کتونکے (بیاض) ته اوګوري چه دا بیاض په یو فرد چه (ثلج) دے دې کښې زیات دے او په بل فرد چه (عاج ) دے کم دے نو دَ هغه دا خیال راشي چه دا بیاض یو لفظ مشترک دے یو معنیٰ یې ثلج دے او بله معنیٰ یې عاج دے نو هغه وائی دا مشترک دے.

والمتکثر المعنیٰ له اقسام عدیدة: غرض دَ مصنفؒ دَ دې فصل نه بیان دَ هغه لفظ کوي چه دَ هغه معنیٰ کثیره وي دا په څلور قسمه دے (۱) مشترک، (۲) منقول، (۳) حقیقت، (٤) مجاز.

وجه دَ حصر دا ده: چه دغه لفظ چه کثیر معنیٰ یې وي د. به خالي نه وي یا به وضع

دَ لفظ دَ هر معنیٰ دَ پاره ابتداءً شوي وي یا نه که شوي دي نو هغه ته مشترک وایي.
او که نه وي شوي بلکه اولاً خو لفظ دَ یو معنیٰ د پاره وضع شوې وه بیا خه مناسب
دَ وجه نه په دوېمه معنیٰ کښې مشهور وي او اوله معنیٰ به پرېښودلے شوې وي نو دا
ته منقول وایي. او که اوله معنیٰ پرېښودے شوې نه وي کله اوله معنیٰ کښې
استعمالېږي او کله دوېمه کښې نو چه اوله معنیٰ کښې استعمالېږي دېته حقیقت
وایي او چه دا لفظ په دوېمه معنیٰ کښې استعمالېږي دېته مجاز وایي لکه (اسد شو)
دَ ده اوله معنیٰ حېوان مفترس دے نو چه اسد په حېوان مفترس کښې مستعمل شي
نو مونږ به دېته حقیقت وایو. او دغه اسد کله بهادر سړي د پاره هم استعمالېږي نو
مونږ به بیا اسد ته مجاز وایو.

دَ مشترک دَ پاره مثال لکه لفظ عېن شو چه دا په څو معانیو کښې شریک دے او
هر معنیٰ دَ پاره مستقل وضع شوے دے.

(۱)یو معنیٰ دَ عېن سونا، (۲) معنیٰ سترګه، (۳) معنیٰ زنګون. د دې نه علاوه نورې
معنې هم شته لکه جاریه شوه اوبه چینه شوه. دَ نمر ککوړي ته هم وایي ذات ته هم
وایي وغېره.

بیا دا خبره یاد ساتل پکار دي: چه منقول په درې قسمه دے.

(۱) منقول عرف عام: چه عامو خلقو یو لفظ دَ یو معنیٰ نه راخستلے وي او په دوېمه
معنیٰ کښې استعمال کړے وي لکه لفظ دآبّة شو دا په اصل کښې ما يَدِبُّ عَلَى
الارْض ته وایي یعنې هر هغه حېوان ته وئیلے شي چه په زمکه ګرځي چه هغه پیشو
وي ،که منګك، او که مار وي ،که خامار، مېږے وي ،که نولے، خر وي ، که قچر،
بانګی وي ، که هاتي، مچ وي ،که مکر مچ ، او پړانګ وي، که پتنګ . بیا عامو
خلکو دا لفظ صرف په هغه حېواناتو کښې استعمال شروع کړل چه دَ هغې څلور
خپې وي او غټ هم وي لکه اوښ، خر، اس، قچر او که څلور خپې يې وي او
وړوکے وي نو هغې ته هم دا به نه وئیلے کېږي لکه پیشو شوه وغېره بلکه په ګډو
چېلو کښې دَ دآبّة استعمال هم ډېر کم دے چه په نِش حساب دے.

---

(٢) منقول شرعي: او منقول شرعي دېته وايي چه اهل شرع يو لفظ د معنیٰ نه نقل کړی او بله معنیٰ کښې استعمال کړي لکه لفظ دَ صلوٰة او صوم شو چه صلوٰة اصل کښې دُعا ته وئيلے شي اهل شرع دا نقل کړو ارکان مخصوصه ته په اوقات مخصوصه کښې او صوم امساک (ځان بندولو) ته وئيل کېده اهل شرع دا رانقل کړو. مخصوص عبادت دَ يارې يې نوم کړو. چه امساک وی دَ اکل شرب او جماع نه دَ صبح صادق نه د ... عروب د نمر پورې. يا لکه تعديل شو دا اصل کښې برابر والي ته وئيلے شي دَ هر شي لېکن اهلِ شرع دا مستعمل کړو په مونځ کښې قيام، رکوع او سجده په صحيح طريقې سره اداکولو ته.

(٣) منقول اصطلاحی: منقول اصطلاحی دېته وايي چه يو خاص طبقه يو لفظ ده. يو معنیٰ نه راواخلي په دوېمه معنیٰ کښې استعمال کړي او دغه دوېمه معنیٰ په ټولو طبقاتو کښې مشهوره شي لکه اسم اصل کښې نوم ته وايي نحويانو دا رواخستو او استعمال يې کړو په "کلمه تدلّ علیٰ معنیً مستقلٍ فی الدلالة غير مقترن بزمان او فعل اصل کښې کار کولو ته وايي نحويانو دا راواخستو او استعمال يې کړو په کلمه تدل علیٰ معنیً مستقلٍ فی الدلالة مقترن باحد زمان من الازمنة الثلاثة.

وان لم يشتهر فی الثانی: او که دا لفظ په دوېمه معنیٰ کښې مشهور نه وه او اوله معنیٰ هم نه ده پرېښودلے شوې بلکه دا لفظ کله په اوله معنیٰ کښې استعمالېږي او کله په دوېمه معنیٰ کښې نو چه اوله معنیٰ ته نسبت اوکړي دېته حقيقت وايي او چه دويمې معنیٰ ته يې نسبت اوکړې دېته مجاز وايي.

مثلاً اسد شو چه دَ دے معنیٰ حقيقي حيوان مفترس ده، دا يې اوله معنیٰ ده لېکن کله بهادر سړي ته هم اسد وئيلے شي نو اسد چه مستعمل شی په بهادر سړي کښې دې ته مجاز وايي (والله اعلم).

## فصل: وان کان اللفظ متعددًا والمعنیٰ واحد

ما قبل کښې بحث دَ هغه لفظ وو چه لفظ واحد وي او معاني کثيره وي اوس بحث کوي دَ دېنه چه الفاظ کثير وي او معنیٰ يې واحده وي. يعني چه الفاظ يې ډېر وي او معنیٰ يې واحده وي هغې ته مترادف وئيلے شي ځکه مترادف دَ مرادفت نه

ماخوذ دے یا دَ ترادف نه او مرادفت او ترادف (رکوبُ احدٍ خلفَ الاخرِ) ته وائی یعنې یو کس دَ بل کس شاته (په خر یا په سائېکل یا په موټر سائېکل )سور شي. دا دَ ترادف لغوی معنیٰ ده او ترادف په اصطلاح کښې دېته وایې چه دَ دؤو لفظونو یا زیاتو دَ پاره یو معنیٰ وي ځکه دلته هم معنیٰ په شان دَ سورلی ده او دا الفاظ په شان دَ سوارو دي. (دا مناسبت شو په مابین دَ معنیٰ لغوي او اصطلاحی کښې) دَ مرادفین دَ پاره مثال مصنفرح په دې قول سره پېش کوي.

کاالاسد واللیث والغیم والغیث: نو اسد او لیث دواړه مرادفېن دي ځکه دَ دواړو معنیٰ یوه ده چه (منزرے) دے او غیم مرادف مصنفرح نه دې ذکر کړے چه سحاب دے او دَ غېث مرادف یې هم نه دے ذکر کړے چه هغه مطر دے.

خبردار: په ظاهر کښې داسې ښکاري چه غیم او غېث مرادفېن دي لېکن حقیقت کښې معامله داسې نه ده ځکه دَ غېم مرادف سحاب دے او دَ غېث مرادف مطر دے یا لکه "قعود جلوس" شو چه دا دواړه هم مرادفین دي ځکه دواړو معنی "کېناستل" دي.

فائده : د ترادف د پاره څلور شرطونه دی . (۱) دواړه لفظونه به موضوع وی . که یو لفظ مهمل وو نو دغه ترادف نه دے لکه روټئ موټئ ، سړے مړے ، (۲) تاکید لفظی به نه وی لکه ضرب ضرب زیدٌ (۳) تاکید معنوی به نه وی لکه جاء زید نفسه (٤) دواړه لفظونو مصداق او مفهوم به یو وی . که مصداق ئې یو وو او مفهوم ئې جدا وو نو دا ترادف نه دے لکه ناطق او فصیح شو ځکه د دوي مصداق یو دے چه انسان دے لیکن مفهوم ئې جدا دے ځکه ناطق معنی خبری کونکے او فصیح معنی فصاحت والا .

فصل والمرکب قسمان: غرض دَ مصنفرح دَ انعقاد دَ دې فصل نه تقسیم دَ مرکب دے دؤو قسمونو ته چه یو مرکب تام دے دوېم مرکب ناقص دے مرکب تام تعریف په دې الفاظو سره مصنف کوي.

"ما یصح السکوت علیه" او دَ مرکب ناقص تعریف چه " ما لیس کذٰلك" حاصل دا دے چه مرکب تام دېته وایې چه په یو کلام متکلم سکوت اوکړي نو دَ مخاطب

سکوت هم صحیح وي مزید انتظار ته یې حاجت نه وي او دَ سکوت صحیح والي علامت په جمله اسمیه کښې دا دے چه کلام کښې مبتدا او خبر وي او په جمله فعلیه کښې فعل فاعل وي اول دَ پاره مثال لکه زید قائم او دویم د پاره مثال لکه ضرب زید چه متکلم په خپل کلام کښې مبتداء او خبر ذکر کړل. یا په جمله فعلیه کښې فعل او فاعل ذکر کړل نو کلام تام شو دَ مخاطب سکوت صحیح دے مزید انتظار ته حاجت نشته.

سوال: فعل خو مفعول ته هم محتاجه وي نو په فاعل څنګه کلام تام شو؟

جواب: فعل مفعول ته محتاجه دے لیکن په تعقل کښې نه په وجود کښې ځکه خو مفعول ته فضله هم وئیلے کیږي چه په وجود کښې فعل ده ته محتاجه نه دے.

او مرکب ناقص دیته وایې: ما لیس کذٰلك یعنې چه دغه سې نه وي یعنې چه متکلم کلام ذکر کړي او خاموش شي نو دَ مخاطب سکوت صحیح نه وي بلکه مزید انتظار کوي چه متکلم به نور کلام ذکر کوي یعنې مخاطب په فهم کښې پوره خبره نه وي راغلي هغه دَ مزید معلوماتو منتظر وي لکه وروسته مثال راروان دے لیکن نه ایډوانس کښې اوس معلوم کړه چه هغه مثلاً غلام زید یا رجل عالم دے.

فصل المرکب التام ضربان: غرض دَ مصنفؒ دَ دې فصل تقسیم دَ مرکب تام دے دوو قسمونو ته چه یو ته خبر او قضیه وایې او دویم ته انشاء وایې.

خبر تعریف مصنفؒ په دریو جملو سره ذکر کړے دے .یعنې دَ خبر یې درې تعریفونه ذکر کړي دي. لیکن دا درې واړه مآلًا یو دي دې تعریفونو کښې څه منافات نشته.

اول تعریف: ما قصد به الحکایة خبر دیته وایې چه دَ څه واقعې حکایت کړے شوے وي لکه قیام دَ زید یو واقعه ده هغې نه تا حکایت اوکړو په دې عبارت سره چه زید قائم نو دا خبر شوم.

دویم تعریف: چه خبر دیته وایې چه ما یحتمل الصدق والکذب چه هغې کښې احتمال دَ صدق او کذب وي.

دَ صدق او کذب تعریف: صدق دیته وایې چه مطابقت دَ کلام دَ اعتقاد او دَ واقع سره

او كذب وئيلے شي عدم مطابقت د كلام د اعتقاد او واقع سره.

دريم تعريف دَ خبر دا دے يقال لقائله انه صادق او كاذب، چه د دغه كلام قائل ته صادق يا كاذب وئيلے شي يعني كه دغه كلام مطابق د واقع سره وه نو متكلم ته صادق وئيلے شي او كه مطابق دَ واقع سره نه وه نو متكلم ته كاذب وئيلے شي مثال د خبر لكه: السماء فوقنا و العالم حادث درې واړه تعريفونه دېته شامل دی اول تعريف ځكه شامل دے چه دا حكايت دے دَ واقعي نه دوېم تعريف هم شامل دے چه دې مثالونو كښې احتمال دَ صدق دے دريم تعريف هم شامل دے ځكه دَ دې متكلم ته وئيلے شي چه انه صادق ځكه اَلسّماءُ فوقَنا هم دَ واقع سره مطابق دے او العالَم حادث هم دَ واقع سره مطابق دے.

فان قيل نه وروستو مصنف رح يو اعتراض نقل كوي په تعريف دَ خبر باندې او بيا به دَ هغه نه جواب كوي اعتراض اصل كښې دَ خبر په دوېم تعريف باندی دے چه ته وايې خبر دېته وايې چه احتمال دَ صدق او دَ كذب لري نو "لا اله الا الله" دا قضيه او خبر دے سره دَ دې نه دا صرف احتمال دَ صدق لري احتمال دَ كذب خو نه لري. او كه څوك وايې چه داخبر احتمال دَ كذب لري هغه سُور كافر دے . دَ دې اعتراض نه دوه جوابونه دي اول جواب دَ بهر نه دے چه دَ خبر تعريف اصل كښې داسې دے ما يحتمل الصدق اوالكذب يعني يا احتمال دَ صدق لري او يا احتمال دَ كذب لري او كلمه توحيد خو صرف احتمال دَ صدق لري "فلا اشكال ولا جواب" دوېم جواب مصنف رح په دې عبارت سره كوي "قلنا مجرد اللفظ يحتمله" يعنې چه صرف الفاظو دَ كلمې ته اوګورې چه دا يو كلام خبري دے نو دا هم احتمال دَ كذب لري .

وان كان الیٰ خصوصية الحاشيتين غير محتمل الكذب.... الخ: او كه نظر اوكړے شي طرفينو ته نو بيا دا كلام خبري احتمال دَ كذب نه لري. مراد دَ طرفين نه يو مسلمان متكلم دے چه متكلم ته اوګورو چه هغه (سور پنج پيرے) دے ياد (څلورو مياشتو تبليغي) دے نو بيا دا كلام احتمال دَ كذب نه لري او دوېم چه واقع ته اوګورو چه واقع نه هم معلومېږي دَ علاماتو نه چه الله معبود حق دے نو دا كلمه توحيد احتمال دَ كذب نه لري او كه دغه دوه طرفينُ نه نظرقطع كړو چه صرف دېته

اوګورو چه انّه کلامٌ خبريٌ بيا دا هم احتمال دَ کذب لري.[1]

دوېم قسم دمرکب تام انشاء ده:او دَ انشاء ډېر اقسام دي بعضې دَ هغه نه دَ مصنف رح ذکر کړی دي. چه امر، نهي، تمني، ترجی، استفهام او نداء دي. امر: وئيلے شي طلب الفعل علىٰ سبيل الاستعلاء مثلاً:قُمْ.

نهي:وئيلے شي طلب ترك الفعل علىٰ سبيل الاستعلاء مثلاً: لاتضرب.

تمني:وئيلے شي حصول شئ علىٰ سبيل المحبّه.

برابره خبره ده چه هغه شيئ محال وي لکه ليت الشباب يعود.يا ممکن وي لکه ليت قومي يعلمون. يا لکه دا شعر :

ألا ليت "الشرور" بلا نقاطٍ          وليت" الحرب "كانت دون راءٍ

ترجيّ:دېته وايي حصول الشئ علىٰ سبيل المحبة لېکن هغه شے به ممکن وي لکه لعل السلطان يکرمني.

استفهام: وئيلے شي استعلام من الغير دَ غير نه ځان پوهه کول لکه أزيد قائم.

نداء: وئيلے شي طلب دَ توجه دَ غير نه لکه يا جعفر.

فصل المركب الناقص علىٰ انحاءٍ.....الخ

غرض دَ مصنف رح تقسيم دَ مرکب ناقص کوي. دَ مصنف رح دَ کلام حاصل دا دے چه مرکب ناقص په دوه قسمه دے (١) مرکب اضافي لکه غلام زيد او دوېم قسم مرکب توصيفي لکه الرجل العالم درېم قسم مرکب تقيدي دے لکه في الدار شو.

خبردار:په دې تقسيم کښې دَ مصنف رح نه دوه غلطۍ شوي دي.

(١): مرکب اضافي او مرکب توصيفي يې مقابل دَ مرکب تقيدي ګرځولي دي حالانکه دا دواړه دَ مرکب تقيدي مقابل نه دي بلکه دَ مرکب تقيدي اقسام دي.

(٢): دوېمه غلطي دا شوېده چه دَ مرکب تقيدي دَ پاره مثال فى الدار سره پيش کړے

---

[1] اقول تنحل هذه العقدة ،بما قال السمعانى رح فى قواطع الأدلة ص٣٢٣ج ١ فى تعريف الخبر حيث قال"اعلم ان حد الخبر كلام يدخله الصدق والكذب ولايُعنى بهذا دخولهما عليه فى حالة واحدة،لكن المراد منه أنه يصح فيه الصدق والكذب من حيث صيغته ثم يكون الصدق بدليله والكذب بدليله"۔

الفروق للامام القرافى رح ص١٠٣ ✿ ...

دے حالانکه دا مثال دَ مرکب غیر تقیدي دے نه د مرکب تقیدي نو اول دَ سر نه صحیح خبره دا شوه چه مرکب ناقص اولاً په دوه قسمه دے.

(١) تقیدي: چه جزء ثاني قید وي دَ جزء اول دَ پاره.

(٢) غیر تقیدي: چه جزء ثاني قید نه وي دَ جزء اول دَ پاره.

## مرکب تقیدي بیا په دوه قسمه دے

(١)مرکب اضافي: چه یو جز مضاف او بل مضاف الیه وي لکه غلام زید شو دا مرکب تقیدي ځکه دے چه غلام ځکښي عام وه هر چاته شامل وه زید ذکر کولو سره پکښي خصوص پیدا شو عموم ختم شو.

(٢) مرکب توصیفي: چه جزء اول موصوف او دویم صفت وي لکه الرجل العالم شو دلته هم دویم جزء قید دے دَ اول جزء دَ پاره ځکه ځکښي رجل عام وه ډم، جولا، کلال، اینګر، نائي، ډرائیور ټولو ته شامل وه. عالم چه ذکر شو نو رجل کښي خصوص پیدا شو. ټول تربنه خارج شول صرف مُلا پکښي پاتې شو.

مرکب غیر تقیدي: چه جزء ثاني قید نه وي دَ جزء اول دَ پاره لکه في الدار شو.

دلته جزء اول "فی" او جزء ثانی "دار" دے جزء اول کښي چه حرف دے څه عموم نشته نو دار هغي کښي هم خصوص نه دے پیدا کړے ځکه دېته مرکب غیر تقیدي وایي.

## وههنا قد تم بحث الالفاظ والأن نرشدك الى بحث المعاني....الخ

یعني تر دې ځایې پورې بحث دَ الفاظو وه هغه سر ته ورسېدو. اوس به مونږ ستا رهنمائي کوو بحث دَ معانیؤ طرفته". دا خبره تاته ځکښي نه معلومه ده چه منطقي دَ الفاظو نه بحث نه کوي دَ معانیو نه بحث کول مقصود اصلي دَ منطقي وي لېکن چونکه افهام او تفهیم په الفاظوموقوف دے دَ دې مجبورۍ دَ وجې نه ده الفاظونه هم بحث کوي اوس دَ هغي نه فراغت راغے نو مقصد اصلي ته رجوع کوي چه هغه بحث دے دَ معانیو نه نو دَ معانیو دَ بحث ابتداء دَ مفهوم نه کوي.

خبردار: په منطق کښي مقصود دوه شیان دي.

(١) معرف: یعني معلوم تصوري چه رسوونکے وي مجهول تصوري ته.

(۲)حجت: يعني معلوم تصديقي چه موصل وي مجهول تصديقي ته او دَ تصور او دَ تصديق دواړو دَ پاره څه مبادي دي. دَ تصور مبادي كليات خمسه دي او دَ تصديق مبادي قضايا دي.

نو مصنف رح تصور مقدم كړو په تصديق ځكه تصور جزء دے دَ تصديق نه او تصديق كُل دے او جزء مقدم وي په كُل باندې نو مبادي دَ تصور يې هم مقدم كړل په مبادي دَ تصديق باندې ځكه دا موقوف عليها دي. دَ قضايا دَ پاره نو دَ كليات خمسه دَ بيان نه مخكښې بيان او تقسيم دَ مفهوم ضروري دے چه جزئي او كلي اوپېژندلے شي او بيا دَ كلي اقسام حاصل شي چه كليات خمسه دي.

خبردار: مفهوم، معنىٰ او مدلول كښې اتحاد ذاتي دے او مغائرت اعتباري دے اتحاد ذاتي داسې دے چه كوم شے په عقل كښې حاصل شي هغه ته مفهوم ، معنىٰ او مدلول وايي او فرق اعتباري دا دے چه كوم شے په عقل كښې حاصل شي په دې اعتبار سره چه دا دَ لفظ نه فهم كېږي دےته مفهوم وايي او په دې اعتبار سره چه دا مدلول ده لفظ دے لفظ په دے دلالت كوي نو دے ته مدلول وايي او په دې اعتبار سره چه دا قصد كېږي دَ لفظ نه دېته معنىٰ وايي مثلاً حيوان ناطق فهم كېږي دَ انسان نه نو دا مفهوم شو او انسان په حيوان ناطق دلالت كوي نو دا مدلول شو او دې قصد كېږي هم دَ انسان نه نو دا معنىٰ شوه.

اما الجزئي فهو يمنع نفس تصوره عن صدقه على كثيرين كزيد .... الخ

مصنف رح فرمايي. چه مفهوم په دوه قسمه دے يو جزئي او بل كلي په دې عبارت سره تعريف دَ جزئي كوي چه جزئي هغه دے چه نفس تصور دَ ده مانع وي دَ صدق نه په كثيرين باندې لكه زيد شو زيد معنىٰ حيوان ناطق مع هٰذا التشخص. او دا دَ زيد نه علاوه په بل چا نه صادق كېږي.

فائده: تشخص وئيلے شي دَ هر شي خپل مخصوص طول ،عرض، عمق او خپل ناز او انداز او كيفيت مخصوصه ته چه په هغې سره هغه شيئ دَ اغيارو نه جدا كېږي دَ زيد خپل تشخص دے او دَ عمرو خپل تشخص دے دغسې دَ هر چا خپل خپل دے.

فائده : معرفه د نحويانو او جزى د منطقيانو كښى نسبت د عموم خصوص مطلق

دے لان کلَ جزئٍ معرفة ولا عکس دغه شان کله چه علم تثنیه یا جمع شی هغه بیا جزی نه پاتی کیږي بلکی کلی کرزی لکه زیدان زیدون شو.

دوېم مثال دَ جزئ دَ پاره لکه هٰذا الفرس او هٰذا الجدار شو په دې کښې اشاره ده چه اسماء اشارات هم په جزئی کښې داخل دي.

<u>واما الکلی فهو ما لا یمنع نفس تصوره عن وقوع الشرکة.....الخ</u>

یعنې کلي دېته وايي چه نفس تصور دَ دهغه مانع نه وي شرکت نه او د صدق دَ ده نه په کثیرینو باندی.کالانسان لکه انسان او فرس شو نو انسان وئیلے شي حیوان ناطق ته حیوان ناطق زید هم دے خالد هم دے هر خوک دے نو په کثیرین صادق شو دغه رنګه فرس وئیلے شي حیوان صاهل ته حیوان صاهل هر فرس دے.

<u>وقد یفسر الکلي والجزئي بتفسیرین اخرین.....الخ</u>

غرض دَ مصنفؒ دَ دې عبارة نه دوېم تعریف دَ کلی او جزئي ذکر کوي دَ دوېم تعریف هم حاصل دا دے چه کلي دېته وايي چه عقل جائز ګڼي صدق دَ ده په کثیرینو او جزئي دېته وايي چه عقل جائز نه ګڼي صدق دَ ده په کثیرین.

<u>فائده</u>: دا دواړه تعریفونه قریب قریب دي خاص فرق پکښې نشته البته دومره فرق ضرور دے چه دَ جزئي او کلي اول تعریف افراد په خارج کښې غواړي دا رنګه تکثر او عدم تکثر هم حقیقت دے مثلاً زید اول تعریف مطابق جزئي دے ځکه خارج کښې صدق یې په کثیرین نه کیږي او انسان کلي دے ځکه حقیقةً صدق یې په کثیرین کیږي. او دَ <u>دوېم تعریف</u>: مطابق دَ افرادو موجود کېدل په خارجٍ کښې ضروري نه دے تکثر او عدم تکثر حقیقي نه دے بلکه فرضي دے مثلاً کلیات فرضیه چه لا شئ او لاممکن دي دوېم تعریف مطابق کلیات دي حالانکه دَ دوي افراد په خارج کښې بالکل نشته دغه رنګه واجب الوجود کلي دے ځکه نفس تصور دَ ده مانع نه دے دَ صدق دَ هغه نه په کثیرین لېکن په خارج کښې منحصر فی فردٍ دے افراد کثیره یې نشته.

سوال: په اول تعریف کښې جزئي مقدم کړے وه په کلي او په دوېم تعریف کښې کلي مقدم کړه په جزئي په دې کښې څه قرقره ده ؟

جواب: په اول تعريف کښې تعريف دَ جزئي وجودي او تعريف دَ کلي عدمي وه او په دوېم تعريف کښې تعريف دَ کلي وجودي ده او تعريف دَ جزئي عدمي دے او وجودي نسبت سره عدمي وي اشرف وي. او دې وجې نه کله تعريف دَ جزئي مخکښې کوي او کله دَ کلي.

سوال: جزئي ته جزئي او کلي ته کلي ولې وايې وجه تسميه يې څه ده؟

جواب: جزئي په غالب اوقاتُ کښې کل وي. او کلي جزء وي نو چه جزئي کل شو نو کلي معنیٰ منسوب بسوئے کل نو کلي ته کلي ځکه وايې چه نسبت يې کېږي کُل ته چه جزئي دے او جزئي ته جزئی ځکه وايې چه جزئ معنیٰ منسوب بسوئے جز او ده جزئ يو جز کلي دے۔ په دې خبره ځان په مثال سره پوهه کړه.

دَ جزئی دَ پاره مثال لکه زېد شو او دَ کلي مثال لکه انسان شو. زېد تعريف دا دے: حېوان ناطق مع هٰذا التشخص. نو دَ جزئی په تعريف کښې دوه شيان دی (۱)حېوان ناطق، (۲) تشخص. او دَ انسان تعريف صرف "حيوان ناطق" دے نو دَ کلي په تعريف کښې يو شئ دے چه حېوان ناطق دے نو دَ جزئي تعريف کل شو. ځکه هغه کښې دوه شيان دي او دَ کلي چه انسان دے هغه تعريف کښې يو شئې دے. نو هغه جز شو نو کلي چه انسان دے جزء شو دَ کل چه "زيد" دے او جزئي چه "زيد" دے کل شو دَ جزء چه انسان دے. نو کلي ته کلي ځکه وايې چه منسوب بسوئے کل او دَ انسان نسبت هم کل ته کېږي چه زيد دے (لکه افغاني نسبت افغان ته کېږي پشاور معنیٰ منسوب بسوئې پشاور) او انسان هم جز دے دَ پاره دَ زيد او کوم شے چه منسوب وي کل ته هغه کلي وي او جزئي منسوب بسوئے جُز او زېد چه جزئي دے دَ ده هم نسبت کېږي جزء ته چه انسان دے او زېد کُل دے دَ پاره دَ انسان او کوم شے چه منسوب وي جزء ته هغه ته جزئي وايې.

<u>فصل الكلي اقسام الخ</u>: دا تقسيم دَ کلي په اعتبار دَ وجود او عدم دَ افرادو سره دا خبره ياد ساتل پکار دي چه کلي په اعتبار دَ وجود او عدم دافرادوسره په شپږ قسمه دے لېکن مصنفؒ بعض اقسام په بعضو کښې داخل کړېدي ځکه يې څلور قسمونه ذکر کړي دي.

(۱): اول قسم دَ کلي چه هيڅ يو فرد يې موجود نه وي په خارج کښې لکه کليات فرضيه لا شئ لا ممکن لا موجود شو، يا لکه شريك الباري شوی.

(۲): دوېم قسم کلي فرد موجود کېدل په خارج کښې ممکن وي لېکن موجود نه وي لکه عنقاء شودا رنګه جبلٌ من یاقوت، دَ یاقوتو غر شو نو دَ یاقوت غر کلي دے په خارج کښې فرد یې موجود نه دے خو ممکن دے که موجود شي نو هېڅ نقصان پېکښې نشته او عنقاء دَ یو قسم مارغه نوم دے. تعریف ئې دا دے :

"طائر ذو جناحین لو وقع علی الجبل لارتفع الجمل" دا مارغه په یو زمانه کښې وه. ډېر نقصان یې کولو دَ خلقو ماشومان او څاروي به یې تختول بیا خلقو دَ ده خلاف احتجاج اوکړو. او خپل پېغمبر ته یې دَ ده شکایت اوکړو نو پېغمبر بد دعا اوکړه. او همېشه دَ پاره دَ ده نسل ختم شو[۱] نو دا هم کلي دے په خارج کښې افراد یې نشته خو که یو فرد پیدا شي نو څه کفر شرک نه لازمېږي.

فائده: عنقاء، په فتحې دَ عېن سره دے او په ضمې دَ عېن سره لوستل صحیح نه دي، لانه وزن فعلاء نحو حمراء وفی الصحاح وطارت به العنقاء(العقود الدریة للرباطی ص۶۰)

❁ احقر حسین علی حفظ الله ❁

یو شاعر فرمایي :

لما رأیت بني الزمان ومابهم خلٌ و فیٌ للشدائد اصطفی
فعلمت ان المستحیل ثلاثه الغول والعنقاء والخِلّ الوفي

(۳):درېم قسم کلي صرف یو فرد موجود وي او دَ دوېم فرد موجود کېدل ممکن وي لېکن موجود نه وي لکه شمس او قمر شو[۲]

---

۱ : وحکی الزمحشری فی(ربیع الابرار) أن الله تعالیٰ خلق فی زمن موسی علیه السلام طیرًا یقال له عنقاء له وجه کوجه الانسان واربعة أجنحةٍ من کل جانب وخلق له انثی مثله ثم أوحی الله تعالیٰ الی موسیٰ علیه السلام أنی خلقته کهیئة الطیر وجعلتُ رزقه الوحوش والطیر التی حول بیت المقدس قال فتناس وکثر نسلهما فلما توفی موسی علیه السلام انتقلت الی نجد والعراق فلم تزل تاکل الوحوش تخطف الصبیان الی ان تنبأ خالد بن سنان العبسی فشکوها فدعا علیها فانقطعت وانقطع نسلها وانقرضت" المستطرف ج۱۱۱۱۱۱۱/ ۱۳۴ ❁ احقر حسین حفظ الله ❁

۲ : وانما یصح هذا اذاکان لفظ الشمس اسم جنس بحیث لا یقصد به الشمس المعینة فإن الکل عندهم مثل اسم الجنس ----والناس لایقصدون بلفظ الشمس الاالشمس المعینه واللام فیها لتعریف العهد لا للجنس کما قال تعالیٰ وهوالذی خلق اللیل والنهار والشمس والقمر الخ فمسمی الشمس والقمر هذجزئی لاکلی بخلاف لفظ الکوکب والنجم :الرد علی المنطقین ص۲۶۹ ❁ احقر حسین حفظ الله ❁

(٤) څلورم کلي صرف یو فرد موجود وي د بل فرد موجود کېدل ممتنع وي لکه واجب الوجود یا واجب تعالیٰ شو دا مفهوم کلي دے خو صرف یو فرد یې موجود دے نور ر نشته ځکه لو کان فیهما الهة الا الله لفسدتا. ده ته کلي منحصر فی فردٍ وایي.

خبردار: واجب الوجود یا واجب تعالیٰ ته کلي وئېل دا دَ مناطقو مشهور منتر دے چه هر چاته یاد دے غوره خبره دا ده چه واجب تعالیٰ دَ کلي او جزئي لاندې داخل نه دے (لان الکلي والجزئی قسمین من المفهوم وهو ما حصل فی الع والله تعالیٰ لا یُحدُّ ولا یُتصور ولا یتعقل ولأن کل ما خطر ببالك فالله وراء ذلك ولان کلّ واحدٍ من الجزئی والکلی محتاج الی الأخر اما الکلی ففی تشخصه ووجوده فی الخارج محتاج الی الجزئی والجزئی محتاج الی الکلی فی تحققه والله تعالیٰ منزه من الاحتیاج فالألیق بذاته الجلالة أنها فوق من الکلی والجزئی وَ هذه اصطلاحات للمکن)۔ ❁ احقر حسین حفظہ اللہ ❁

(٥): پنځم قسم دَ کلي چه دَ هغه ډېر افراد موجود وي لېکن په شمار کښې راځی لکه کواکب سبعه شو دا مفهوم دَ کلي دے افراد یې ډېر دي لېکن په شمار کښې راځي چه مشهور اووه ستوري دي. (١)شمس، (٢)قمر،(٣) مریخ، (٤) زهره، (٥) زحل، (٦) عطارد، (٧) مشتری.

(٦): شپږم قسم کلي افراد غېر متناهي موجود وي لکه افراد دَ انسان فرس، بقر، غنم شو.

فائده: افراد دَ انسان فرس بقره غنم ته غېر متناهي وئېل معنیٰ دا ده چه دَ دې شمار مشکل دے اګر که تخمینًا شمار مشکل نه دي او که غېر متناهي دا معنیٰ چه ابتداء او انتهاء ورلره نه وي نو بیا دا مثال بناء دے په مذهب دَ فلاسفۆ باندې چه هغوی عالَم ته قدیم وایي او دَ مسلمانانو په نزد دَ هغه کلي دَ پاره مثال چه افراد یې غېر متناهي وي لکه معلومات د الله شو.

وقد اورد علیٰ تعریف الکلي والجزئي سؤال....الخ

غرض دَ مصنف رحمه الله دَ دې عبارة نه جواب دے دَ سوال نه چه واردېږي په تعریف دَ کلي او جزئي باندې حاصل دَ سوال دا دے چه تعریف دَ جزئي جامع نه شو خپل افرادو لره او تعریف دَ کلي مانع نه شو دخول دَ غېر ته داخل شو پکښې جزئي. دا سوال یو دے لېکن صورتونه یې درې دي.

(۱):اول صورة دا دے چه یو هګۍ (هاء ) (egg) یعنې اندړه دَه تایو کس ته اوخودله چه دې ته اوګوره دا دَ چرګې انډه ده نو ده هغه په ذهن کښې دَ هغې صورة حاصل شو. تابیا هغه انډه لرې کړه. او د بوکرۍ نه بله انډه دې واخستله او هغه ته دې اوخودله هغه دا ګمان کوي چه دا هم هغه انډه ده.، هغه بخواني صورة وربانديې صادق کوي تا بیا غلې غوندې یو دریمه انډه واخسته او هغه ته دې اوښودله هغه بیا هم په دې دَ هغه صورة سابقه ګمان کوي نو ګوره کوم صورة چه د اخذ کړے وه دَ هغه معین انډې نه هغه جزئي وه او په کثیرینو صادق شو.

(۲): دوېم صورت دا دے چه تا یو شکل اولیدو دَ لرې نه تا په هغه ګمان اوکړو چه دا مثلًا شکل دَ فرس دے چه لګ ورنزدې شوې بیا دې پرې ګمان وکړو چه نا دا فرس نه دے بلکه دا حمار دے چه خه ورنزدې شوې بیا دې پرې ګمان وکړو چه نا دا خو زېد دے. ګوره شکل چه معین وو په کثیرینو صادق شو دا جزئي وو او کلي وګرځېدو.

(۳):درېم صورت دَ سوال دا دے چه په ابتدائي حالت کښې یو ماشوم چه فاطمه او ویني ګمان پرې کوي چه دا مې مور ده چه بیا زینب اووینې په هغې ګمان کوي چه دا مې مور ده دغسې چه بیا کلثوم اووینې وایې دا مې مور ده ګوره صورة دَ مور جزئي وه او په کثیرین صادق شو.

والجواب حاصل دَ جواب دا دے: چه زمونګ مراد په تعریف دَ کلي کښې دا دے چه صدق به یې کېږي په کثیرین لٰکن علیٰ سبیل الاجتماع، او جزئی دېته وایې چه صدق به یې نه کېږي په کثیرین علیٰ سبیل الاجتماع یعنې دَ کلي صدق په کثیرین باندې په یو ځل به کېږي او په درې واړو صورتونو کښې صدق په کثیرین علیٰ سبیل الاجتماع نشته بلکه علیٰ سبیل البدلیت دي ګوره کنه مور په کثیرین صادقه شوه لیکن په یو ځل نه بلکه جدا جدا ځل باندې دغه رنګه په بقایا دواړو صورتونو کښې هم دغه چل دے.

فان الوحده ماخوذة فی هٰذه الصورة: په دې عبارت سره غرض دَ مصنف رح دلیل ذکر کوي دَ دې قول دَ پاره چه په دې صورتونو کښې صدق په کثیرین علیٰ سبیل البدلیة دے حاصل دَ دلیل دا دے چه په دې درې واړو صورتونو کښې وحدة او یو والے

ماخوذ او اخستلے شوے دے دَ يو معين شي نه او چه يو والے دَ يو معين شي نه واخستلے شو يا مثال ده چه هغه شيئ كلي شي . ځکه کلي کښې وحدة نه وي. ها دلته په كثيرين صدق په سبيل البدليت دے. مثلاً ماشوم نه چه فاطمه آخوا شي او كلثوم راشي نو هله وايې چه كلثوم مې مور ده . دغسې چل زينب کښې هم دے .
او داسې نشي کېدے چه يو مور هم په فاطمه صادقه شی او هم په كلثوم او هم په زينب باندې.

## فصل في النسبة بين الكليين........الخ

... كله چه فارغ شو مصنف رح دَ تعريف دَ جزئي او كلي نه نو اوس بيان دَ نسبت ...ي په مابين دَ دؤو كليين كښې حاصل دَ فصل دا دے چه دوه كلينو كښې به ده څلور نسبتونو نه يو نسبت خامخا وي څلور نسبتونه دا دي. (١)نسبت دَ مساوات، (٢)تباين، (٣) عموم خصوص مطلقا، (٤) عموم خصوص من وجه.

(١): نسبت دَ مساوات دا مطلب چه يو کلي دَ بل کلي په ټولو افرادو صادق وي او دويم کلي هم دَ اول کلي په ټولو افرادو صادق وي لكه انسان او ناطق شو. انسان او ناطق دواړه كليين دي. او دَ دوي په مېنځ کښې نسبت دَ مساوات دے ځکه انسان دَ ناطق په ټولو افرادو صادقېږي او ناطق دَ انسان په ټولو افرادو صادقېږي ځکه وئيلے شي كل انسان ناطق وكل ناطق انسان.

(٢): دويم نمبر نسبت دَ عموم خصوص مطلق دے هغه دېته وايې چه يو کلي دَ بل کلي په ټولو افرادود صادقېږي او بل كلي دَ اول کلي په ټولو افرادو نه صادقېږي لكه حيوان او انسان شو حيوان دَ انسان په ټولو افرادو صادقېږي لٰكن انسان دَ حيوان په ټولو افرادو نه صادقېږي ځکه دَ حيوان په افرادو کښې حمار او فرس هم دي او په هغوی انسان نه صادقېږي بلكه انسان دَ حيوان په بعض افرادو صادقېږي.

(٣): دريم نمبر نسبت دَ تباين دے چه يو کلي دَ بل کلی او بل کلی دَ اول کلي په هېڅ فرد نه صادقېږي لكه انسان او فرس شو انسان دَ فرس په هېڅ فرد نه صادقېږي او فرس دَ انسان په هېڅ فرد نه صدقېږي.

(٤): څلورم نمبر نسبت دَ عموم خصوص من وجه دے هغه دېته وايې چه اول کلي دَ

دوېم کلي په بعض افرادو صادقېږي او دوېم کلي هم دَ اول کلي په بعض افرادو صادقېږي. لکه حېوان او ابيض شو حېوان دَ ابيض په بعض افرادو صادقېږي او ابيض دَ حېوان په بعض افرادو.

عموم خصوص من وجه کښې همېشه دَ پاره درې مادې وي يو ماده اجتماعي او دوه مادې افتراقي وي ماده اجتماعي چه حېوان هم وي او ابيض هم وي لکه بطه شوه. چه حېوان هم دے او ابيض هم دے (فتقول کل حيوان ابيض وکل ابيض حيوان) او چه حېوان وي لېکن ابيض نه وي لکه هاتي شو دا يو ماده افتراقي شوه( فتقول بعض الحيوان ليس بابيض )او ابيض وي لٰکن حېوان نه وي لکه ثلج او عاج شو يعني (واوره) او دَ (هاتي غاښ) چه دا ابيض دي لېکن حېوان نه دی دا دوېمه ماده افتراقي شوه .(فتقول بعض الابيض ليس بحيوان )

دا خبره ياد ساتل پکار دي: چه کوم کلينو کښې نسبت د. مساوات وي نو هلته دَ هر کلي دَ جانب نه موجبه کليه صادق کېږي لکه کل انسان ناطق وکل ناطق انسان او په نسبت دَ مساوات کښې يو ماده وي چه ماده اجتماعيه ده او کوم کلينو کښې چه نسبت دَ عموم خصوص مطلق وي هلته کوم کلي چه خاص دے هغه دَ طرف نه موجبه کليه صادقېږي او کوم کلي چه عام دے هغه دَ طرف نه سالبه جزئيه صادقېږي لکه کل انسان حېوان و بعض الحېوان ليس بانسان او په دې نسبت کښې دوه مادي دي يو ماده دَ اجتماع چه موجبه کليه ده او يو ماده افتراق چه هغه سالبه جزئيه ده او کوم کلينو کښې چه نسبت د عموم خصوص من وجه وي هلته دَ رې قضيې صادقېږي يو موجبه جزئيه او دوه سالبې جزئی دي نسبت کښې درې مادې وي يو اجتماعي او دوه افتراقي ماده ده اجتماع موجبه جزئيه ده او مادي دَ افتراق سالبې جزي دي مثالونه مخکښې واضح ليکلے شوي دي او کوم کلينو کښې چه نسبت دَ تبأين وي هلته دَ هر کلي دَ جانب نه سالبه کليه صادقېږي لکهٗ لاشي من الانسان بفرس ولا شي من الفرس بانسان. دې نسبت دَ پاره هم يو ماده وه چه ماده دَ افتراق ده.

فائده: څلور نسبتونه په دوو کلينو کښې راځي لېکن په دوو جزئينو يا يو جزئي او بل کلي کښې نه چلېږی.

په دؤو جزئينو کښې څلور نسبتونه ځکه نه چلېږي چه يو جزئي نسبت چه اوکړے شي بل جزئي ته نو هغې کښې همېشه نسبت دَ تباين وي او کلي او جزئي کښې هم څلور نسبتونه نه چلېږي ځکه يا به دا جزئی فرد دَ دې کلي وي يا به دَ بل کلي فرد وي که دَ دې کلي فرد وي نو بيا نسبت دَ عموم خصوص مطلق دے کلي عام مطلق او جزئي خاص مطلق شو او که فرد دَ بل کلي وي نو بيا نسبت دَ تبائن دے نو دَ دې وجې نه مصنفؒ النسبة بين الكليين اوفرمائېل او بين المفهومين او نه وئېل.

## فصل: وقد يقال للجزئی معنیٰ اٰخر.....الخ

غرض دَ مصنفؒ دَ دې فصل نه بيان دَ دوېم قسم دَ جزئي دے حاصل دا دے چه يو قسم جزئي حقيقي دے هغه دېته وايي چه ممتنع وي صدق دَ هغه په کثيرينْ لکه زيد، دَ جزئی حقيقي بيان مخکښې اوشو دلته دوېم قسم دَ جزئي ذکر کوي چه هغه جزئي اضافي دے دَ جزئی اضافي تعريف مصنفؒ په دې عبارت سره کوي چه ماکان اخص تحت للاعم يعني خاص چه دَ عام لاندې وي .هغه ته جزئی اضافی وئيلے شي لکه انسان شو چه دَے د عام لاندې داخل دے چه حيوان دے دغه رنګه حيوان هم جزئی اضافی دے ځکه دَ دې نسبت چه جسم نامي ته اوکړے نو حيوان خاص دے او جسم نامي عام دے او جسم نامي هم جزئی اضافي دے ځکه دے خاص دے په نسبت سره چه جسم مطلق ته او جسم مطلق هم جزئی اضافی دے ځکه دَ ده نسبت چه جوهر ته اوکړې نو جسم مطلق خاص دےاو جوهر عام دے.

## والنسبة بين الجزئی الحقيقي و بين هٰذا الجزئی....الخ

غرض دَ مصنفؒ په دې عبارة نه بيان دَ نسبت کوي په ما بين دَ جزئی حقيقی او جزئی اضافي کښې حاصل دا دے چه جزئي حقيقي او جزئي اضافي کښې نسبت دَ عموم خصوص مطلق دے دوه مادې غواړي يو ماده اجتماعي چه جزئي حقيقي هم وي او جزئي اضافي هم وي لکه زيد شو چه دے جزئي حقيقی هم دے ځکه صدق دَ ده په کثيرين نه کېږي او جزئي اضافي هم دے ځکه چه اخص تحت الاعم دے ځکه دے دَ انسان لاندې داخل دے دوېمه ماده افتراقي چه جزئي اضافي وي لېکن جزئي حقيقي نه وی لکه انسان چه جزئي اضافي دے ځکه اخص تحت الاعم دے چه

حېوان دے لېکن جزئي حقېقي نه دے ځکه دَ انسان صدق په کثيرين کېږي. او د جزی حقيقی صدق په کثيرينو باندی نه کيږي .

وجه تسميه دا ده: چه جزئی حقېقي ته جزئي حقېقي ځکه وايي چه دَ ده جزئيت په اعتبار دَ نفس حقيقت او ذات سره دے چه ذات دَ ده تقاضه نه کوي دَ صدق علیٰ کثيرين او جزئی اضافی ته اضافی ځکه وايي چه جزئيت دَ ده په نسبت سره غېر ته دے مثلاً انسان چه جزئي دے په نسبت سره حېوان ته حېوان چه جزئی دے په نسبت سره جسم نامي ته وغېره وغېره.

فائده: جسم نامی معنیٰ هغه جسم چه هغه غټيږي په دې کښې انسان تمام حېوانات اونې بوټې ټول داخل دي جسم مطلق دَ ده نه عام دے ځکه جسم مطلق کښې دا هم داخل دي او کاڼړی او نور جمادات هم داخل دي.

جوهر: قائم بالذات ته وايي تمام اجسام ته جوهر شامل دے دَ اجسامو نه علامه چه عقل او ملائک وغېره دي ته جسم شامل نه دے لېکن جوهر شامل دے نوجوهر عام شو دَ جسم نه. ليکن جوهر اطلاق په الله تعالی نه کيږي ځکه جوهر او عرض اصطلاحات د ممکن د پاره دی او واجب تعالی او د هغه صفات د جوهر او د عرض لاندی داخل نه دی . فتدبر .

فصل الکليات خمس: غرض دَ مصنفؒ دَ دې نه وروستو بيان دَ تفصيل دَ کليات خمسۀ دے نو فرمايي چه کليات پنځه دي. دليل دَ حصر دا دے چه کلي په پنځه قسمه دے (۱) نوع، (۲) جنس، (۳) فصل، (٤) خاصه، (٥) عرض عام ځکه کلي به يا عين حقيقت وي دَ خپل افرادو يا به جزء وي دَ حقيقت دَ افرادو نه او يا به خارج وي دَ حقيقت دَ افرادو نه که عېن حقيقت وي دَ خپل افراد نو هغه ته نوع وايي لکه انسان چه دَ ده افراد زېد، عمر، بکر دي دَ هغوي حقيقت حيوان ناطق دے او حېوان ناطق او انسان يو شئ دے نو مطلب دا شو که کلي عېن تعريف وه دَ خپل افرادو نو هغه ته نوع وايي او که کلي جزء وي دَ حقيقت دَ افرادو نه نو بيا به خالي نه وي يا به جزء وي دَ ټولو افرادو نه يعنې خپل دَ ټولو افرادوحقيقت نه بغېر دَ څه فرق نه يو شان جزء به وي. او يا به کلي صرف دَ نوع جزء وي. کله که کلي دَ ټولو افرادو دَ

حقيقت نه هم جزء وي نو دېته جنس وايي لکه حېوان شو ځکه حېوان چه څنګه دَ حقيت دَ انسان جزء دے دغسې حقيت دَ حمار، فرس،بقر، غنم وغېره دَ حقيقت نه هم جزء دے لکه انسان حېوان ناطق دے يو جزء پکښې حېوان شو، حمار حېوان ناهق دے يو جزء پکښي حېوان شو، فرس حېوان صاهل دے يو جزء پکښې حېوان شو، بقر حېوان ذُو خُوار دے يو جزء پکښي حېوان دے او دَ غنم حقيقت حېوان ذُو رُغاءِ دے يو جزء پکښي حېوان دے،

او که کلي جزء وي صرف دَ نوع نو هغه ته فصل وايي لکه ناطق شو. چه دے صرف دَ انسان جز دے دَ بقر، غنم، فرس وغېره دَ حقيقت نه جزء نه دے او که کلي دَ حقيقت دَ خپل افرادو نه خارج وه يعني دَ افراد وجود کښې دا کلي داخل نه وه نو بيا به يا صرف نوع پورې خاص وي نو هغه ته خاصه وايي لکه ضاحك چه دا صرف انسان پورې خاص دے او که هغه کلي يو نوع پورې خاص نه وي نو هغه ته عرض عام وايي لکه ماشي شو ځکه مشي صرف انسان پورې خاص نه دے بلکه ټولو حېواناتو کښې مشي موجوده ده.

الاول: الجنس وهو كلي مقول على كثيرين مختلفين بالحقائق في جواب ما هو: په کليات خمسؤ کښې اول جنس دے دَ جنس په تعريف کښې مصنفؒ دوه قېده ذکر کړې دي (۱) مقول على كثيرين مختلفين بالحقائق اول قيد حاصل دادے چه جنس داسې کلي دے چه په کثيرينو صادقېږي لېکن دَ هغه کثيرينو حقيقت به جدا جدا وي لکه حېوان شو دا په انسان ،فرس، غنم ټولو باندې صادقېږي او دَ دوې حقيقت جُدا جُدا دے ځکه دَ انسان حقيقت حېوان ناطق دے اوفرس حقيقت حېوان صاهل دے او دَ غنم حقيقت حېوان ذو رغاء دے او د کَلب حقيقت حيوان نُباح دے او ده هِرَّه (پيشو ) حقيقت حيوان مَوَاء دے او د بَقَرى حقيقت حيوان خُوار دے او د دجاج، حقيقت حيوان نقيق دے او د دِيك، حقيقت حيوان صياح دے كما يقولون صاح الديك ) دوېم قيد په تعريف دَ جنس کښې.

اذا سُئل عنها بما هي: يعني حېوان په جواب دَ ما هو کښې راځي مرادَ ما هو نه باب دَ ماهو مراد دے چه هغه ما هو وي که ما هى وي که ما هُما وى او که ما هُم وي مثلًا

زيد ما هو ،الانسان والفرس ما هما ، الانسان والفرس والبقر والغنم ما هم. ؟

فائده: حضرات منطقيه چه دَ کوم شي نه سوال کوي نو هغه دَ پاره دوي دوه لفظونه مقرر کړي دي.

(۱): ماهو، (۲) ايُّ شي : که سوال په ما هو سره وي نو بيا به خالي نه وي يا به دَ امر واحد نه وي او يا به دَ امور متعدده نه وي که سوال دَامر واحد نه وه نو بيا به خالي نه وي يا به دَ امر واحد جزئي وي يا به کلي که سوال دَ امر واحد جزئي نه وه نو په جواب کښې نوع راځي لکه زيد ما هو نو په جواب کښې به انسان راځي او که سوال دَامر واحد کلي نه وه نو په جواب کښې به حد تام راځي لکه الانسان ما هو جواب کښې حيوان ناطق راځي او که په ما هو سره سوال دَ امور متعدده نه وه نو بيا به خالي نه وي يا به دَ امور متعدده حقيقت يو وي يا به مختلف وي که حقيقت يو وي نو جواب کښې بيا نوع راځي لکه زيد، عمر، بکر ما هُم؟ جواب کښې انسان راځي اوکه امور متعدده مختلف الحقيقت وي نو په جواب کښې جنس راځي لکه الانسان والبقر والغنم ما هم؟ جواب کښې حيوان راځي او که سوال په اَيُّ شيٍ سره شوې وه نو بيا به خالي نه وي يا به سوال په اَيُّ شي هُو فی ذاتهِ سره شوے وي نو په جواب کښې به فصل راځي لکه الانسان ايُ شي هو فی ذاتهِ؟ جواب کښې ناطق راځي او که سوال په اَيُّ شيءٍ هو فی عرضه سره شوے وي نو په جواب کښې به خاصه واقع کيږي لکه الانسانُ ايُ شئ هو فی عرضه؟ نو جواب کښې ضاحک راځي.

دا خبره هم ياد ساتلِ پکار دي:چه جنس په دوه قسمه دے (۱) جنس قريب، (۲) جنس بعيد.

(۱)جنس قريب: دېته وايې چه هغه دَ نوع دَ پاره بلا فاصله جنس وي لکه حيوان دا دَ انسان دَ پاره بلا فاصله جنس دے ځکه دَ انسان چه نوع ده او حيوان چه جنس دے په مينځ کښې يې هيڅ بل جنس نشته.

(۲) جنس بعيد: دېته وايې چه هغه دَ نوع دَ پاره بالفاصله جنس وي لکه جسم نامي شو انسان دَ پاره بالفاصله جنس دے ځکه دَ انسان او جسم نامي په مينځ کښې حيوان جنس شته دے.

فصل الثاني النوع: په دې فصل کښې مصنفؒ درې خبرې ذکر کوي (۱) تعريف د نوع چه هغه ته نوع حقيقي وايې، (۲) بيان د قسم ثاني د نوع چه نوع اضافي ده، (۳) بيان دَ نسبت په مابين دَ نوع حقيقي او نوع اضافي کښې.

دَ اولې خبرې حاصل دا دے چه نوع تعريف دا دے چه دا يو کلي دے چه صادقيږي په جواب دَ "ماهو" کښې په داسې افرادو چه دَ هغې حقيقت يو وي لکه انسان چه دا صادقيږي په "زيد" عمر، بکر، خالد وغيره باندې او دَ ټولو حقيقت يو دے چه حيوان ناطق دے.

وللنوع معنیٰ أخر ويقال له النوع الاضافي: غرض دَ مصنفؒ دَ دې عبارة نه بيان دَ قسمِ ثاني دَ نوع دے چه هغه نوع اضافي ده. حاصل دا دے چه نوع اضافي دېته وايې چه يو ماهيت سره بل ماهية ټل کړي او په ما هو سره سوال اوکړي. که په جواب کښې جنس راتلو. نو دا نوع اضافي ده لکه ماهية دَ انسان سره ماهية دَ فرس ټل کړي او په "ما هُما" سره سوال وکړه. چه الانسان والفرس ما هما نو جواب کښې جنس چه حيوان دے واقع کيږي نو انسان نوع اضافي هم شوه په دغه رنګه "الفرس والشجر ما هما" نو په جواب کښې جنس راځي چه "جسم نامي" نو فرس هم نوع اضافي شوه.

وبين النوع الحقيقي والنوع الاضافي عموم خصوص من وجه

غرض دَ مصنفؒ دَ دې عبارت نه بيان دَ نسبت دے په ما بين د نوع حقيقي او نوع اضافي کښې حاصل دا دے چه په ما بين دَ نوع حقيقي اونوع اضافي کښې نسبت دَ عموم خصوص من وجه دے او عموم خصوص من وجه کښې درې مادې وي يو ماده اجتماعي او دوه مادې افتراقي دلته ماده اجتماعي چه نوع حقيقي هم وي او نوع اضافي هم وي لکه انسان شو دا نوع حقيقي هم دے لانه مقول علیٰ کثيرين متفقين بالحقائق او نوع اضافي هم دے ځکه انسان سره يو بل ماهية مثلاً ماهية دَ فرس يو ځايې کړې او تپوس اوکړې په ما هو سره چه الانسان والفرس ما هما نوجواب کښې جنس چه حيوان دے راځي او دغه ته نوع اضافي وايې يو ماده افتراقي چه نوع حقيقي وي اضافي نه وي لکه نقطه شوه دا نوع حقيقي ده لیکن نوع اضافي نه ده. نقطه ونيلے شيئ آخر د خط ته چه تقسيم نه قبلوي.

دَ نقطې تعريف دا دے: هي عرض قائم بالخط لا يقبل القسمة دَ نقطې ډېر افراد دي ټول متفقتة الحقيقة دي يعنې دَ ټولو تعريف يو دے چه عرض قائم بالخط لا يقبل القسمة او داسې بل څه ماهيت مونګ سره نشته چه مونګ يې نقطې سره ټل کړو. او په ما هو سره سوال اوکړو نو په جواب کښې جنس راشي نو نقطه نوع اضافي نه شوه صرف نوع حقيقي ده.

خبردار: نوع حقيقي اونوع اضافي کښې نسبت دَعموم خصوص من وجه دے دا مذهب دَ متاخرينو دے لکه څنګه چه بيان شو او مذهب دَ متقدمين دا دے چه دې دواړو کښې نسبت دَ عموم خصوص مطلق دے نوع حقيقي خاص مطلق دے او نوع اضافي عام مطلق دے يعنې چه چرته هم نوع حقيقي وي نو نوع اضافي به هم وي لکه انسان شو چه ده کښې دواړه قسم نوع موجود وي او چه کوم ځايې کښې نوع اضافي وي حقيقي موجود کېدل ضرور نه دي لکه حيوان شو دا نوع اضافي ده لېکن نوع حقيقي نه ده. دَ متقدمين په نزد مطلق بسيط صرف ذات دَ واجب تعالیٰ دے او نقطه صرف په وجود خارجي کښې بسيطه ده ذهنًا نقطه هم مرکبه ده دويمه ماده افتراقي چه نوع اضافي وي حقيقي نه وي لکه حيوان شو دا نوع اضافي ده کما عرفت لېکن نوع حقيقي نه ده خکه دے په کثيرين مختلفة الحقيقة باندې صادقيږي او نوع حقيقي په کثيرين متفقة الحقيقة باندې صادقيږي. خُذ هٰذا وتشکر.

## فصل فی ترتيب الاجناس:

غرض دَ مصنف رح دَ دې فصل نه بيان دَ مراتبو ده جنس دے حاصل دَ هغې دا دے چه جنس په درې قسمه دے (۱) جنس سافل، (۲) جنس متوسط، (۳)جنس عالي.

(۱) جنس سافل:هغه جنس دے چه هغه نه لاندې جنس نه وي بلکه نوع وي لکه حيوان شو.

(۲) جنس متوسط: هغه جنس دے چه لاندې ترېنه هم جنس وي او باندې ترېنه هم جنس وي لکه جسم نامي ده لاندې جنس حيوان دے او دَ پاسه جنس جسم مطلق دے.

(۳) جنس عالي: دېته وايي چه لاندې ترېنه جنس وي لېکن دَ پاسه دَ ده جنس نه

وي لکه جوهر شو ځکه دَ جوهر نه لاندې جنس شته چه جسم مطلق دے لېکن د جوهر نه پاسه جنس نشته جوهر ته جنس عالی وايې يا جنس الاجناس وئيلے شي.

خبردار: دَ عام منطقيانو په نزد جنس عالی جوهر دے د ده نه پاسه جنس نشته لېکن صحيح خبره دا ده چه جوهر نه ده پاسه جنس شته چه وجود دے هغه دَ جوهر نه عام دے لهٰذا وجود "جنس عالی او جنس الاجناس" دے،نه جوهر، فقط. خُذ هٰذا وتشکر.

فصل الاجناس العالية عشرة: غرض دَ مصنف رح دَ دې فصل نه بيان دَ اجناس عاليۀ دے چه ديته مقولات عشره هم وئيلے کېږي. دنيا کښې يو شان شئ هم دَ دې نه خارج نه دے په دې مقولات عشره کښې يو مقوله ده جوهر دَه باقي نهه (۹) مقولات دَ عرض دي.

## تعريف دَ جوهر او عرض

جوهر: وئيلے شي قائم بالذات ته يعنې خپل وجود کښې غېر ته محتاجه نه وي لکه تمام اجسام شو.

عرض: وئيلے شي قائم بالغير ته يعنې خپل وجود کښې غېر ته محتاجه وي لکه سواد، بياض، علم، خوږوالے او تريخ والے، وغېره عرض چه کوم نهه مقولات دي دَ هر يو تعريف دا دے.

(۱)کم: هغه عرض ته وايې چه طولاً عرضًا عمقاً تقسيم قبلوي. که تقسيم شوي اجزاء يو ځايې جمع کېدے شي نو دېته مقدار وايې او که يوځايې نشي جمع کيدے نو دېته زمانه وايې. دا کم بيا په دوه قسمه دے (۱) کم متصل (۲) کم منفصل .

کم متصل دے ته وائي چه په مابين دا اجزاؤ ده د کښ حد مشترك وی، او حد مشترك دی ته وائی چه يو طرف سره ضم کولو نه په دغه طرف کښ زياتی نه راځی او نه په بل طرف کښ کمے راځی لکه خط شو چه د ده په درميان کښ نقطه فرض کړے شي نو که دا نقطه د يو طرف سره ضم کړی نو دغه طرف کښ زياتے او په بل طرف کښ کمے نه راځی، او کم منفصل دے ته وائی چه د ده د اجزاؤ مفروضؤ درميان کښ قدر مشترك (يا حد مشترك) نه وی مثلاً اعداد شو لکه پنځه (۵) دی

کښې (۳) عدد مشترك دے که یو طرف سره ضم کړی نو هغه به دری(۳) شی او بل طرف به دوه (۲) شی هکذا بالعکس یعنی یو طرف سره ضم کولو نه زیاتے او بل طرف کښې کمے راځی.

(۲) کیف: دا هغه عرض دے چه دا بالذات تقسیم نه قبلوي. البته دَ غېر دَ وجې نه تقسیم قبلوي لکه حرارت دَ نار شو یا لکه خوږوالے دَ عسل شو یا لکه ښائسته والے دَ خزې شو، یا لکه علم دَ زید شو، نو دا ټول کیفیات تقسیم نه قبلوي هاں که جسم تقسیم کړي نو بیا به پکښې تقسیم راځي.

(۳) اضافة: هغه نسبت ته وئیلے شي چه دوه شیان کښې وي معرفة دَ احدهما موقوف وي معرفت دَ اٰخر پورې لکه فوقیت تحتیّت یا لکه ملاقات، یا لکه محبت، عداوت، اخوة وغېره تر څو چه دوه شیانو تصور نه وي کړے نو دَ دې نسبتونو تصور نه کېږي.

(٤) این : هغه حالت ته وئیلے شي چه حاصل وي شئ ته دَ کېدو دَ ده نه په مکان کښې لکه کېدل دَ زېد په کمره کښې.

(٥) متیٰ: هغه حالت دے چه حاصل وي شئ ته بوجه دَ کېدو دَ ده نه په زمانه کښې لکه قیام دَ زید په ورځ دَ جمعې یا مثلًا متیٰ یقدم زید، زید به کله راځي جواب یقدم زید یوم الجمعة نو دا دَ قبیلئ دَ متیٰ نه شوه.

(٦) وضع: هغه حالت ته وایې چه حاصل شي شئ ته په وخت د نسبت کولو زمونږ نه بعض اجزاء لره خارج ( زمکی ) ته یا دَ بعض اجزاء نورو اجزاؤ ته لکه قعود دَ زید شو چه دَ اجزاء نسبت زمکې ته اوکړي یو قسم هېئت حاصل دے او په وخت دَ قیام د زید کښې بل قسم هېئت حاصل وي دغه رنګه قعود په حالت کښې دَ اجزاء نسبت چه بعضې اجزاء ته اوکړي نو یو قسم هیئت حاصل دے چه پتون مثلاً پنډئ ته نزدې دے او دَ قیام په وخت کښې بل هیئت حاصل شي.چه اجزاء یو بل نه بعید شی .

(۷) فعل: وئیلے شي اثر کولو ته په غېر کښې لکه ګاجر کټ کول دا فعل دے.

(۸) انفعال: قبول دَ اثر دَ غېر ته وایې لکه قبول دَ ګاجرو شو کټ کولو لره.

(۹) ملك: هغه حالت ته وایې چه شئ ته حاصل شي په وقت دَ اتصال دَ شئ اٰخر

کښې لکه زيد دَ توپۍ په سر کولو وقت کښې زيد ته يو قسم هيئت حاصل وي او چه پټکے په سر کړي بيا ورته بل هيئت حاصل شي او چه کراکُري په سر کړی بيا ورته بل قسم هيئت حاصل شي. دا مقولات عشره په دې شعر کښې جمع دی.

مردے دراز نيکو ديدم بشهر امروز باخواسته نشسته از کرده خويش فيروز

ترجمه: يو اوګد سړے ما په ښار کښې اوليدو نن ورځ چه خپل محبوب سره ناست وو او خپل دَ کار نه خوشحاله وو.

(١)مرد جوهر دے، (٢) دراز کم دے، (٣) نيکو کيف دے، (٤)ديدیم انفعال دے، (٥) شهر اين دے، (٦) امروز متی دے، (٧) خواسته اضافة دے، (٨) نشسته وضع دے، (٩)کرد فعل دے، (١٠) خويش مقوله د مِلك ده .

فائده : مقولات عشرۆ د فهم د پاره يو خارجی مثال :

مثلا : ✿ استادِ محترم شيخ الاسلام حضرت مولانا مفتی محمد تقی عثمانی صاحب حفظه الله ، ذات گرامی دا د مقولی جوهر نه دے . دهغه درميانه قد دا دمقولی د ،کم ، نه دے او د هغه خوش اخلاق ، تواضع ، محدثانه انداز د مقولی د کيف نه دے . او د هغه په يو خاص صفت سره موصوف کيدل چه عثمانی دی ، دا د مقولی د اضافت نه دے او د هغه په يو خاص ځائ کښی چه دارالعلوم کراچئ ده پاتی کيدل دا د مقولی د اين نه دے . او د هغه د اتوار په ورځ اصلاحی بيان کول د مقولی د متٰی نه دے او د هغه د بيان په وخت په کرسئ کيناستل د مقولی د وضع نه دے او د هغه پټکے په سر کول يا شيروانی اغوستل دا د مقولی د مِلك نه دے او د هغه د طالبانو سره مصافحه يا مشابکه کول په وخت د اجازت ورکولو د حديث کښی دا د مقولی د فعل نه دے . او طالبان چه د هغه وعظ نصيحت قبول کړی ، دا د مقولی د انفعال نه دے .

✿ احقر حسين علی حفظ الله ✿

فصل فی ترتيب الانواع: دې فصل کښې مصنفؒ دَ انواع ترتيب ذکر کوي لېکن په انواعو کښې دا ترتيب دَ پاسه نه په ښکته دے او دَ اجناس ترتيب لاندې نه پورته دے او دَ دې وجه نه مصنفؒ دلته متنازلةً ووئېل ځکه دَ اجناس ترتيب دَ خاص نه عام طرفته ځي او دَ انواعو ترتيب دَعام نه خاص طرفته ځي.حاصل دَ مراتب دَ نوع دا

دے چه نوع به یا دَ تمام انواعو نه عامه وه یا به تمام انواعو نه خاص وي. یا به دَ بعض انواعو نه خاص وي او بعض نه به عام وي که نوع دَ تمام انواع نه عاموه دېته نوع عالی وئیلے کېږي لکه جسم مطلق شو ځکه دا جسم مطلق دَ انسان حېوان جسم نامی ټولو نه عام دے او که نوع دَ ټولو نه خاص وه هغې ته نوع سافل وئیلے کېږي لکه انسان چه دے دَ حېوان، جسم نامي او جسم مطلق ټولو نه خاص دے او که نوع بعض نه خاص او بعض نه عام وي. هغې ته نوع متوسط وئیلے کېږي لکه حېوان شو چه دا دَ انسان نه عام دے او جسم نامي نه خاص دے.

خبردار: دا مذکوره ترتیب په نوع اضافي کښې کېږي. په نوع حتېقي کښې دا مذکوره ترتیب نه چلېږي ځکه چه نوع حقېقي نه لا ندی او باندې که نوع موجود شي نو بیا هغه نوع نوع حقېقي نه پاتې کېږي بلکه جنس به ورنه جوړ شي.

فائده: دَ نوع اضافی دا درې اقسام په کتاب کښې موجود دي. یو قسم بل دے چه هغه په کتاب کښې موجود نه دے هغه ته نوع مفرد وایې هغه دېته وایې چه هغه نه لاندې هم نوع نه وي او هغه نه باندې هم نوع نه وي لکه عقل شو. دَ ده لاندې نوع نشته عقول عشره دی او هغه اشخاص دی او دَ پاسه جوهر جنس دے نو عقل نوع مفرد شو.

## فصل الثالث الفصل

`غرض دَ مصنفؒ دَ انعقاد دَ دې فصل نه بیان او تعریف دَ درېم کلي دے چه هغه فصل دے فصل تعریف مصنفؒ په دې عبارت سره کوي "هو کلی مقول علی الشئ فی جواب ایّ شئ هو فی ذاته" حاصل دَ تعریف دا دے چه فصل داسې کلي دے چه دا دَ ایُ شئ هو فی ذاته په جواب کښې راځی مطلب دا دے چه دَ یو شي حقیقت او ذات معلومول غواړې نو ایُ شئ هو فی ذاته سره به سوال اوکړې دَ دې په جواب کښې چه کوم شئ راځي. هغه ته فصل وایې مثلاً ته دَ انسان حقیقت معلومول غواړې نو داسې سوال به اوکړې الانسان ای شئ هو فی ذاته یعني دَ انسان حقیقت څه شیئ دے. جواب کښې به ناطق راځي یعني دَ انسان حقیقت دا دے چه ناطق دے.

وهو قسمان قریب وبعید: غرض دَ مصنفؒ دَ دې عبارة نه بیان دَ تقسیم دَ فصل

فصل قريب تعريف مصنف رح په دے فصل په دوه قسمه دے (۱) قريب، (۲) بعيد. فصل قريب يعنې فصل قريب دې عبارة سره کوي هو المميز عن المشارکات فی الجنس القريب (يعنى مطلوب شيئ ده پاره) جدا کوي هغه فصل ته وايې چه هغه شئ ماهيت دَ پاره (يعنى مطلوب شيئ ده پاره) جدا کوي دَ اغيارو نه په جنس قريب کښې لکه ناطق انسان جدا کوي دَ تمام حيوانات نه چه شريك دي ده سره په حيوان کښې چه هغه جنس قريب دے دَ انسان او فصل بعيد تعريف مصنف رح په دې عبارة سره کوي هو المميز عن المشارکات فی الجنس البعيد. يعنې فصل بعيد هغه فصل دے چه دې خپل ماهيت( يعنى مطلوب شيئ ) جدا کوي دَ اغيارو نه په جنس بعيد کښې مثلًا حساس دَ انسان دَ پاره فصل بعيد دے ځکه دَ انسان جدا کړے دے. دَ اغيارو نه په جنس بعيد کښې چه نامي دے مخکښې په نامي کښې دَ انسان سره. ونې بوټي هم داخل وه ځکه هغه هم غټيږي . او انسان هم غټيږي لېکن کله چه حساس تاده انسان سره اولګولو. نو ونې بوټي خارج شوې ځکه هغه حساس نه دي.

وللفصل نسبة الى النوع: غرض دَ مصنف رح دَ دې عبارة نه تقسيم کوي په فصل کښې په اعتبار دَ نسبت سره حاصل يې دا دے چه فصل چه کله نسبت نوع لکه (انسان) ته اوشي نو دغه ته بيا فصل مقوم وايې. مثلًا ناطق په نسبت اوشي انسان ته نو ناطق ته فصل مقوم وايې. ځکه مقوم دَقوام نه دے قوام معنیٰ حقيقت او دا فصل هم په حقيقت دَ انسان کښې داخل دے ځکه انسان په تعريف کښې يو جزء ناطق دے او بل جزء حيوان دے لکه څنګه چه حيوان سره حقيقت دَ انسان معلوميږي دغسې په ناطق سره هم حقيقت دَ انسان معلوميږي او چه دَ فصل نسبت کله جنس ته اوشي چه حيوان دے نو ده ته بيا فصل مقسم وايې مقسم معنیٰ تقسيم کونکے او دې فصل هم حيوان تقسيم کړو. ناطق او غير ناطق ته حيوان ناطق انسان شو. غير ناطق خر او قچر وغيره شو.

## فصل کل مقوم للعالی مقوم للسافل

غرض دَ دې فصل نه تحقيق المقام دے يعنې يوه مسئله ذکر کوي دَ هغې تحقيق دا دے چه که فصل خواه قريب وي که بعيد وي چه دَ نوع عالی نه جزء وی او دَ

هغې په حقيقت کښې داخل وي نو دَ نوع سافل نه به هم جزء وي او دَ هغې حقيقت کښې به داخل وي مثلاً قابل للابعاد (يعني هغه شئے چه هغې کښې طول، عرض، عمق وی) دا فصل مقوم دے دَ نوع عالی چه جسم دے ځکه هر جسم هغه کښې طول، عرض، عمق وي دَ دې نه بغير جسم نشي موجود کيدلے نو قابل للابعاد دَ جسم دَ پاره چه نوع عالی دے فصل مقوم شو نو دغه قابل للابعاد دَ جسم نامي حيوان ، انسان ، چه نوع سافل دي دَ پاره هم فصل مقوم دے ځکه څنګه چه قابل للابعاد دَ جسم په حقيقت کښې داخل دے دغسې دَ انسان، حيوان او جسم نامي چه نوع سافل او متوسط دے په حقيقت کښې هم داخل دے.

خبردار: په دې فصل کښې دَ نوع سافل اطلاق په نوع متوسط باندې هم شوے دے.

دليل: دغه مذکوره دعوه دَ پاره دليل دا دے چه جسم جزء دے دَ جسم نامي، حيوان، انسان ته، او قابل للابعاد جزء دے دَ جسم دَ پاره نو قابل للابعاد جزء شو دَ جسم نامي حيوان او انسان نه ځکه جزء دَ جزء دَ شي جزء وي دَ پاره دَ دغه شي .دوېم مثال ذکر کوي چه کوم فصل مقوم دَ نوع عالی وي هغه به مقوم دَ نوع سافل وي. لکه نامی شو دا مقوم دے دَ جسم نامي (چه هغه په نسبت سره حيوان ته نوع عالي دے په حقيقت کښې نوع متوسط دے ) نو دغه نامي مقوم دَ حيوان او دَانسان هم شو چه دا انواع سافل دي.

## وايضًا كالحساس والمتحرك بالارادة

غرض دَ مصنفؒ په دې فصل سره درېم مثال پېش کوي دغه دعویٰ دَ پاره خو دا مثال په فصل بعيد سره پېش کوي ګوره کنه حساس او متحرک بالارادة دا دواړه فصل مقوم دي دَ حيوان (ځکه حساس او متحرک بالارادة دَ حيوان په حقيقت کښې داخل دي. او حيوان نوع متوسط ده په حقيقت کښې لېکن انسان په نسبت سره نوع عالی دے نو دغه حساس او متحرک بالارادة دَ انسان دَ پاره هم فصل مقوم دي دغه قاعدې دَ وجې نه چه کل مقوم للعالی مقوم للسافل.

## وليس كل مقوم للسافل مقوم للعالى

په دې عبارت سره مصنفؒ دا مسئله ذکر کوي چه هر هغه فصل چه هغه مقوم

وي دَ نوع سافل دَ پاره نو هغه به مقوم دَ نوع عالی نه وي بلکه دَ نوع عالی د پاره به مقسم وي ځکه که هر مقوم دَ سافل مقوم دَ نوع عالی دَ پاره هم شی نو بیا نوع سافل او نوع عالی یو شئ شی او د ه نوع سافل او نوع عالی به نوع عالی یو کېدل ظاهر البطلان دي.

مثلًا ناطق دَ انسان (چه نوع سافل ده) دَ پاره فصل مقوم دے لیکن دَ نوع عالی چه حیوان دے هغه دَ پاره مقوم نه دے بلکه مقسم دے لکه دا خبره مخکښې تېره شوې هم ده.

## فصل كل فصل مقسم للسافل مقسم للعالی

دا بله قاعده ذکر کوي حاصل دَ دې دا دے چه کوم فصل دَ جنس سافل دَ پاره مقسم وی نو هغه به دَ جنس عالی دَ پاره هم مقسم وي مثلًا ناطق دَ جنس سافل چه حیوان دے دَ هغه دَ پاره مقسم دے چه یو حیوان ناطق دے او بل غیر ناطق دے نو دغه ناطق دَ جسم نامي جسم مطلق او جوهر دَ پاره هم مقسم دے مثلًا که دغه ناطق دَ جسم نامي سره اولګوي نو جسم نامي کښې هم تقسیم راولی یو جسم نامي ناطق او بل جسم نامي غیر ناطق دغه رنګ که دا ناطق دَ ده جسم مطلق سره اولګوي نو جسم مطلق کښې هم تقسیم راولي جسم مطلق ناطق او جسم مطلق غیر ناطق دغسې که دَ جوهر سره یې اولګوې نو جوهر کې هم تقسیم راولي چه یو جوهر ناطق او جوهر غیر ناطق دغه رنګ حساس تقسیم په جسم نامي کښې راولي جسم نامي حساس او جسم نامي غیر حساس نو په جسم مطلق او جوهر کښې هم تقسیم راولي چه حساس دَ جسم مطلق سره اولګوي نو جسم مطلق حساس او غیر حساس دغه رنګ جوهر حساس او غیر حساس. دغه رنګه نامي تقسیم راولي په جسم کښې چه جسم نامي او جسم غیر نامي خو په جوهر کښې هم راولي چه جوهر نامي او غیر نامي.

دَ دې دعوه دَ پاره دلیل دا دے: چه جنس سافل قسم وي دَ جنس عالی نه او فصل قسم دَ سافل شو او قسم دَ قسم دَ شي قسم وي دَ دغه شي نو فصل هم قسم شو دَ عالي نه.

## و لیس کل فصل مقسم للعالی مقسم للسافله

دَ دې عبارت حاصل دا دے چه کوم فصل مقسم وي دَ جنس عالی نو دا ضروري نه ده چه هغه دې مقسم شي دَ جنس سافل ځکه عالی قسم نه وي دَسافل مثلاً حساس مقسم دے دَ جسم نامي نو جسم نامی حساس دے بل جسم نامي غیر حساس دا حساس په حیوان کښې چه جنس سافل دے تقسیم نه راولي ځکه داسې نشي کیدلے چه حیوان په دوه قسمه شي. یو حیوان حساس او بل حیوان غیر حساس ځکه حیوان همیشه حساس وي غیر حساس تر اوسه نه دے موجود شوے.

## فصل الکلی الرابع الخاصة

غرض دَ مصنف رح بیان دَ کلي رابع دے چه هغه خاصه ده خاصه تعریف حاصل دا دے چه خاصه داسې کلي دے چه خپل دَ افرادو دَ حقیقت نه خارج وي لیکن دَ دې حمل په داسې افرادو کیږي چه دَ هغوی حقیقت یووي لکه ضاحك شو ګوره کنه ضاحك دَ انسان دَ حقیقت نه خارج دے ځکه دَ انسان حقیقت حیوان ناطق دے لیکن ضاحك انسان سره خاص دے یعنې ضاحك په داسې افرادو حمل کیږي چه هغوی حقیقت یو دے چه زید ، بکر، خالد وغیره دي دَ ټولو حقیقت یو دے یا لکه کاتب شو کاتب هم دَ انسان خاصه ده او په یو حقیقت افرادو باندې صادقیږي. پوهه شه چه خاصه په دوه قسمه ده یو خاصه شامله او بل خاصه غیر شامله خاصه شامله دېته وایې چه دَ یو حقیقت ټولو افرادو کښې موجوده وي لکه ضحک بالقوة شو یا کتابة بالقوة شو او خاصه غیر شامله دېته وایې چه یو حقیقت والا ټولو افرادو کښې موجوده نه وي بلکه بعضې افرادو کښې موجوده وي او بعض کښې نه وي لکه ضحك بالفعل او کتابة بالفعل شو.ځکه ضحك بالفعل دَ انسان په بعض افرادو کښې موجودکیږي ټول خلق په یو ځائے نه خاندي دغه رنګ کتابة بالفعل هم دَ انسان په بعض افرادو کښې موجود ده. دَ انسان بعض افرادو کښې کتابة بالفعل نشته ځکه څه خلق اَن پړه وی لیکل ورلره نه ورځي.

## فائده: واذا قد علمت ما ذکرنا ان الکلیات خمس

غرض دَ مصنف رح دَ دې عبارت نه اجمال بعد التفصیل دے او اجمال بعد التفصیل

خلاصه دَ تفصيل وي نو يو غرض دَ مصنف رح بيان دَ خلاصې دَ دې فصل شو دوېم غرض دَ مصنف رح تقسيم دَ كلي دے. ذاتي او عرضي ته او دَ دې په ضمن كښې يوه اختلافي مسئله هم ذكر كوي. حاصل يې دا دے چه دَ ذاتي دوه تعريفو نه علماء منطق كړي دي. بعضو دَ ذاتي تعريف دا كړے دے چه كلي ذاتي دېته وايې چه هغه داخل وي په حقيقت دَ افرادو كښې لكه ناطق شو په نسبت سره خپل افرادو ته چه زيد، عمر، بكر دي دا ناطق دَ هغوئ په حقيقت كښې داخل دے بنا په دې تعريف باندې نوع دا كلي ذاتي نه شوه ځكه نوع جزء نه ده دَ حقيقت دافرادو نه بلكه نوع عين حقيقت دَ افرادو ده. لكه انسان شو دَانسان حقيقت حيوان ناطق دے او دا عين حقيقت دَ افرادو دَ ده هم دے چه زيد، عمر، بكر دي ځكه حقيقت دَزيد وغيره هم حيوان ناطق دے لېكن مع التشخص ،نو نوع كلي ذاتي نه شو كلي ذاتي صرف جنس او فصل دے لېكن دا خبره ياد ساتل پكار دي چه دَ اول مذهب مطابق نوع كلي ذاتي نه شو عارضي ورته نشو وئيلے ځكه عارض خارج وي دَ حقيقت دَ افرادو نه او نوع خارج نه ده دَ حقيقت دَ افرادو نه نو كلي غير ذاتي كله په عين حقيقت دَ افرادو وي لكه نوع او كله به خارج وي دَ حقيقت دَ افرادو نه لكه خاصه او عرض عام دوېم قول دا دے چه كلي ذاتي دېته وايې چه هغه خارج نه وي دَ حقيقت دَ افرادو نه بناء په دې تعريف باندې نوع هم كلي ذاتي شوه ځكه نوع هم خارج نه ده حقيقت دَ افرادو نه.

## فصل العرض اعني الخاصة والعرض العام

غرض دَ مصنف رح تقسيم دَ كلي عرض دے دوه قسمين ته يو عرض لازم دوېم عرض مفارق دا خبره ياد ساتل پكار دي چه كلي عرضي خاصه وي كه عرض عام وي هر يو په دوه قسمه دے (۱) خاصه لازم و مفارق (۲) عرض عام لازم ومفارق.

عرض لازم: هغه كلي عرض دے چه دَ ده جدا كېدل دَ معروض نه ممتنع وي دا بيا په درې قسمه دے (۱) لازم الماهية، (۲) لازم وجود خارجي، (۳) لازم وجود ذهني.

(۱) لازم الماهية: دېته وايې چه دَعرض جدا كېدل دَ ماهية دَ معروض نه ممتنع وي لكه زوجيت دَ اربعو نه او فرديت دَ ثلاثو نه جدا كېدل ممتنع دي دا زوجيت او فرديت دَ ماهية دَ اربعو او ماهية دَ ثلاثو سره لازم دي.

(۲) لازم وجود خارجي: لکه سواد لازم دے دَ وجود دَ حبشي سره معنیٰ ده سوډان (ایتھوپیا) ملك اوسېدونکے وي (اوچه تور[۱] وي) نو هغه سره سواد لازم دے دَ ماهیة دَ حبشي سره سواد لازم نه دے ځکه حبشي ماهیت حیوان ناطق دے که سوا دَ ماهیة دَ حبشي سره لازم شي بیا به هر انسان تور وو حالانکه مونګ خو سپین یو.

(۳) لازم وجود ذهني: مثال لکه کلیة لازم دے دَ انسان سره په ذهن کښې لېکن دا درېم قسم مصنف رح نه دے ذکر کړے او عرض مفارق هغه کلي عرضی دے چه دَ هغه جدا کېدل دَ معروض نه ممتنع نه وي لکه بالفعل کتابة او بالفعل مشئ شو دَانسان د پاره، دَ دې دواړو جدا کېدل دَ انسان نه جائز دي.

## فصل العرض اللازم قسمان

غرض دَ مصنف رح دَ دې عبارة نه دوېم تقسیم کوي په عرض لازم کښې اول تقسیم کښې عرض لازم په درې قسمه دے (۱) لازم الماهیة، (۲) لازم وجود خارجي، (۳) لازم وجود ذهني، دوېم تقسیم دا دے چه عرض لازم په دوه قسمه دے (۱) لازم بیّن بالمعنیٰ الاخص، (۲) لازم بیّن بالمعنیٰ الاعم.

(۱) لازم بیّن بالمعنیٰ الاخص: دېته وایې چه تصور دَ ملزوم سره تصور دَ لازم راځي لکه تصور دَ عمي سره تصور دَ بصر هم راځي یا لکه تصور دَ غلام اوکړې ورسره ورسره تصور دَ خدمت دَ هغه هم ذهن ته راځي.

(۲) لازم بیّن بالمعنیٰ الاعم دېته وایې چه دَ ملزوم او لازم دواړو تصور سره یقین په لزوم راځي یواځې دَ ملزوم تصور سره یقین په لزوم نه راځي لکه ته دَاربعۀ او دَ زوجیت دواړو تصور اوکړې نو یقین راځي چه اربعه او زوجیت کښې لزوم دے.

دا خبره یاد ساتل پکاردي: چه دَ لازم دوه قسمونه نور هم دي چه هغه دَ دې دواړو مقابل دي (۱) لازم غېر بیّن بالمعنیٰ الاخص، (۲) لازم غېر بیّن بالمعنیٰ الاعم.

(۱) لازم غېر بیّن بالمعنیٰ الاخص: دېته وایې چه دَ ملزوم تصور سره دَ لازم تصور ذهن

---

[۱]: خبردار: نن صبا بعض حبشیان تک سپین دی لهذا دا قاعده کلیه نه ده چی هر حبشی به تور وی (کما یُراهم فی موسم الحج) د دے وجه نه مونږ ورسره (چی تو ر وی) قید لګولے دے ✿ احقر حسین علی حفظہ اللہ ✿

ته نه راځي. لکه دَ انسان تصور سره دَ کتابة بالقوة تصور نه راځي. اګر که لزوم يې ښکاره نه دے.

(۲) لازم غير بيّن بالمعنى الاعم دېته وايي چه دَ ملزوم او لازم دواړو تصور سره يقين په لزوم نه راځي تر څو چه دليل خارجي نه وی ذکر کړے دَ لزوم دَ پاره مثلا حدوث لازم دے. دَ عالم سره لېکن دَ عالم او حدوث دواړو تصور سره يقين په لزوم نه راځي تر څو چه دليل نه وي ذکر کړے چه "لانه متغير وکل متغير حادث فالعالم حادث" په دې خبره هم ځان پوهه کړه چه دَ لازم دااخري دوه قسمونه مصنفؒ نه دي ذکر کړي.

## فصل العرض المفارق

غرض دَ مصنفؒ دَ دې فصل نه بيان دَ تقسيم دَ عرض مفارق کوي درېو اقسامو ته.

(۱): يو هغه عرض مفارق چه جدا کېدل يې دَ معروض نه ممکن وي لېکن جدا کېږي نه.

(۲): دَ معروض نه جدا کېږي په جلدي سره.

(۳): معروض نه جدا کېږي په ارام ارام سره دَ اول دَ پاره مثال لکه حرکة دَ فلك، حرکة دَ فلك نه جدا کېدل ممکن دي لېکن حرکت دَ فلك نه منقطع کېږي نه، ځکه بيا به ټوله زمانه بريک(Stop) شي ځکه زمانه عبارة ده ده حرکت دَ فلك نه (عندهم) دَ دوېم دَ پاره مثال کحمرة الخجل،وصفرة الوجل،لکه سور والے دَ شرمندګۍشو. او زېړوالے دَيرې شو. چه دا دواړه په جلدئ سره کله چه يره او شرم ختم شي نو دا سوروالے او دا زېړ والے هم ختم شي.

او مثال دَ درېم دَ پاره لکه کالشيب والشباب لکه ځواني اوپوخ عمر شول ځوانئ په آرام آرام سره ختمېږي او سرے بيا په پوخ عمر کښې داخل شي. چه دا تقريبًا دَ ۶۰ کالو نه وروسته شروع کېږي نو دغه پوخ عمر هم په آرام آرام ختمېږي او انسان بيا په بوډاوالي کښې داخل شي

خبردار دَ شيب عمر نه مراد پوخ عمر دے بوډاوالے مراد نه دے ځکه بوډاوالے په مرګ سره نه ختمېږی بلکه مرګ سره محل معدوم کيږی او کله چه محل معدوم شو

نو معروض پاتی نه شو یا مراد د شیب نه شیب غیر طبعی دے " دا په ادویاتو او علاج سره زائل کیږی یا لکه عشق شو چه دا هم انسان نه ختمیږي نو په آرام آرام سره (خُذ هٰذا).

## فصل فی التعریفات

معرف الشئ ما یحمل علیه لافادة تصوره:هر کله چه مصنفؒ فارغ شو دَ موقوف علیه نه چه مباحث دَ کلی او جزئي او دَ کلیات خمسؤ وو نو شروع یې اوکړه په مقصود کښې چه معرَّف دے پس زده کړه داخبره چه په دی مقام کښں دری مباحث دی اول بحث په بیان ده تعریف ده معرِف کښں دے دویم بحث په بیان ده شرائطو د معرِف کښں دے دریم بحث په بیان د اقسامو د معرِف کښں دے، معرِف تعریف مصنفؒ په دې الفاظو سره کړے دے ما یحمل علیه لافادة تصوره دَ معرف په تعریف کښې دوه قیدونه دي (۱) چه معرِّف به په معرَّف حمل کیږي (۲) لافادة تصوره یعني معرِّف سره به معرفت دَ معرَّف حاصلیږي مثلاً الانسان حیوان ناطق دلته حیوان ناطق دا په انسان حمل کیږي هم ځکه الانسان موضوع ده او حیوان ناطق محمول دے او دا رنګه حیوان ناطق معرفت دَ انسان هم فائده کړے دے چه دَانسان حقیقت حیوان ناطق دے.

یعنی د انسان ذاتیات هم معلوم شو او انسان د اغیارو نه جدا شو او که تعریف د انسان په حیوان ضاحك سره اوشی، نو دی معرِف صرف امتیاز د معرَف راویستلو د اغیارو نه.

### او مختصر شرائط د معرف دا دی:

چه معرِف او معرَف به مساوی وی په صدق کښں یعنی په کوم شئ چه معرَف صادقیږی په هغه به معرِف هم صادقیږی لکه حیوان ناطق او انسان شو، دویم شرط دا دے چه معرِف به معرَف نه عام نه وی مثلاً تعریف د انسان اوشی په حیوان سره دا جائز نه دے ځکه مقصود ده تعریف نه هغه اطلاع علی ذاتیات المعرَف وی او یا امتیاز د هغه وی د اغیارو نه او چه معرِف کله عام شی هغه دا یو کار هم نه شی کولے ځکه حیوان ټول ذاتیات د انسان نه دی ټول ذاتیات دا انسان هغه حیوان سره د

ناطق نه دی او دغه رنګ حیوان، انسان د اغیارو نه هم نه جدا کوی ځکه حیوان خو خر هم دے دریم شرط دا دے چه معرِف به د معرَف نه خاص هم نه وی مثلا تعریف د حیوان اوشی په ناطق سره یا په ضاحك سره دا هم جائز نه دے ځکه خاص په نسبت سره عام ته وجود کښې کم وی او کوم شی چه وجود کښې کم وی هغه اخفیٰ وی او تعریف په اخفیٰ سره جائز نه دے ځکه تعریف وضاحت د معرَف د پاره وی او اخفیٰ سره وضاحت نه حاصلیږی. څلورم شرط دا دے چه تعریف په مبائن سره هم جائز نه دے لکه تعریف د انسان شو په حجر سره ځکه معرِف حمل کیګی په معرَف، او مبائن په مبائن نه حمل کیګی . پنځم شرط دا دے چه معرِف به اجلیٰ وی د معرَف نه ځکه مقصود د تعریف نه وضاحت د معرَف وی او دا هله حاصلیږی چه معرِف اجلیٰ وی د معرَف نه نو په هغه معرِف سره تعریف صحیح نه دےچه هغه مساوی وی د معرَف سره په معرفت او جهالت کښې مثلاً تعریف د حرکت اوکړے شی په مالیس بسکونٍ، سره او د سکون تعریف اوکړے شی مالیس بحرکة، سره .

<u>وهو علیٰ اربعة اقسام</u>: غرض دَ مصنف رح دَ دې عبارة نه تقسیم دَ معرِّف کوي اقسام اربعو ته حاصل دا دے چه معرف په څلور قسمه دے (١) حد تام، (٢) حد ناقص، (٣)رسم تام، (٤) رسم ناقص دې څلور واړو حدُودو دَ پاره کلیه دا ده چه کوم تعریف کښې فصل وي هغه به حد وي او کوم تعریف کښي چه خاصه وي هغه به رسم وي نو بناء په دے کلیه بانډِ.

(١): دَ یو شي تعریف په جنسِ قریب او فصلِ قریب سره اوشي هغه به حد تام وي حد ځکه چه فصل پکښې شته تام ځکه چه جنس قریب موجود دے لکه تعریف دَانسان په حیوان ناطق سره.

(٢): او که تعریف دَ شئ په جنسِ بعید او فصلِ قریب سره یا یواځې فصلِ قریب سره اُوشي، هغه ته حد ناقص وائیې. حد ځکه وایې چه فصل موجود دے او ناقص ځکه وایې چه جنس قریب نشته لکه تعریف دَانسان په جسمِ ناطق یا صرف ناطق سره.

(٣): او که تعریف دَ شئ په جنس قریب او خاصه سره اوشي هغه ته رسم تام وایې رسم ځکه چه خاصه موجود ده، تام ځکه چه جنس موجود دے لکه تعریف دَ انسان په حیوان ناطق سره.

(٤): او کہ تعریف دَ شي او شيئ په جنس بعید او خاصه سره یا یواځې خاصه سره هغه ته رسمِ ناقص وايې رسم ځکه وايې چه مشتمل دے په خاصه باندې او ناقص ځکه وايې چه جنس قریب نشته لکه تعریف دَ انسان شو په جسم ضاحك سره یا صرف په ضاحك سره.

**سوال:** دَ عرض عام څه ګناه کړې ده چه دے په تعریف کښې نه واقع کیږي؟

مصنف رح جواب اوکړو په دې عبارة سره لانه لا يفيد التميز ځکه دے معرَّف د اغيارو نه نه جدا کوی مثلًا دَ انسان تعریف په ابیض سره اوشي یا ماشي سره اوشي نو دا صفات خو دَ انسان نه علاوه تول اشیاؤ ته شامل دے نو انسان نه جدا کوي دَ اغيارو نه دَدې وجې نه عرض عام په تعریف کښې نه واقع کیږي.

فصل التعريف قد يكون حقيقيًا

غرض دَ مصنف رح دَ دې فصل نه بیان دَ قسم آخر دے د تعریف، یو تعریف حقیقي دے هغه تیر شو چه ما يحمل على الشئ لافادته او هغه بیا په څلور قسمه وه دلته بیان دَ دویم قسم تعریف کوي چه هغه تعریف لفظي دے او تعریف لفظی دیته وايې تفسير دَ غیرمشهور لفظ په مشهور سره اوکړے شي، لکه تعریف دَ سعدانة په نبت سره اوشي یا تعریف دَ غنضفر په اسد سره، په تعریف لفظی کښې تحصیل دَ امر مجهول نه وي هغه شئ مخکښې نه معلوم وي بلکه دَ هغه احضار مقصود وي باشهر الاسمين سره، لکه سعدانة خاص ګیا (واخه) ته وئیلےشي په نوم یې هر څوک نه پیژني نو چه تفسير یې په نَبَت سره اوشو چه دا عام ګیاء ته وايې نو اوپیژندے شوه یا لکه غضنفر نوم دَ زمري دے هر څوک یې په دې نوم نه پیژني چه تفسیر یې په اسد سره اُوشو نو اوس یې هر څوک پیژني،

لآلآیا مثلًا 'الوتکه' هر څوک نه پیژني چه تفسیر یې په 'جهاز' سره اُوشي نو هر څوک یې پیژني یا لکه توغندے ،هر څوك يې نه پیژني چه تفسیر یې په میزائیل (missile) سره اوشي نو هر څوك يې پیژني یا لکه دَ اُور قُوتَئ هر څوك نه پیژني چه تفسیر یې په ماچس سره اوشي نو هر څوك يې پیژني یا لکه (سُوړه یَخ) هر څوك نه پیژني چه تفسیر یې په ایکزاس(Exhaust) سره اوشي نو هر څوك يې پیژني یا لکه

اندرچق هر څوك نه پېژني چه تفسير يې په کښې (Demple) سره اوشي هر څوك يې پېژني. ✿ اختر حسين على حفظه الله ✿

فائده : تعريف لفظي د مطالبو تصوريؤ نه دے او که د مطالبو تصديقيؤ نه دے ؟ دي کښې اختلاف دے ، په نزد د سيّد سند دا د مطالبو تصديقيو نه دے ليکن غوره مذهب دا دي چه دا د مطالبو تصوريؤ نه دې ځکه دے واقع کيګي په جواب د ، ما ، کښې او هر هغه شيء چه په جواب د ، ما ، کښې واقع کيګي هغه د مطالبو تصوريؤ نه وي مثلا . ما اوئيل غضنفر موجود دے تا تپوس اوکړو چه ما الغضنفر؟ ما په جواب کښې او ونيں اسدٌ ، نو دا تصور دې ځکه دلته حکم نشته چه تصديق شي .

خبردار: تعريف حقيقي په دوه قسمه دي تعريف حقيقي بحسب الحقيقة يا تعريف نفس الامرى دويم تعريف حقيقي بحسب شرح الاسم يا تعريف اصطلاحی ..

تعريف اصطلاحی دی ته وائي چه دا په اعتبار ده معتبِر سره وی لکه حيوان ناطق تعريفِ اصطلاحی دے د انسان، ځکه دا مونږ معتبر کړيدے چه دا حد تام دے د انسان يا جسم ناطق شو دا مونږ معتبر کړے دے چه دا حد ناقص دے د انسان دغه سي رسم تام او رسم ناقص دا ټول تعريفات حقيقه او نفس الامريه نه دي . او تعريف نفس الامري (يعني د شئ نفس الامري تعريف )دا د انسان په قدرت کښې نه دے بلکه دا د واجب تعالى په اختيار کښې دے ځکه تعريف نفس الامري موقوف دے په فرق کولو باندي په ما بينْ د ذاتياتو او عرضياتو کښې ، او فرق په ما بين د ذاتياتو او عرضياتو کښې ډير مشکل دے ، ځکه جنس مشابه دي د عرض عام سره په عموم کښې او فصل متشابه دے د خاصه سره په خصوص کښې ، لکه څنګه چه ماشيٌ عام دے شامل دے مختلف حقائقو ته دغه سي حيوان هم عام دي شامل دے مختلف حقيقتونو ته او ضاحك چه خاصه ده لکه څنګه چه خاص دے په حقيقت واحده پوري دغه سي ناطق چه فصل دے هم خاص دے حقيقت واحده پوري . فأين الفرار اذا لم يڪن القرار؟

## الباب الثاني في الحجة وما يتعلق بها

هر کله چه مصنفؒ فارغ شو دَ بحث ده تصوراتو نه نو اوس يې شروع اوکړه په تصديقاتو کښې ليکن بحث کول دَ قضيه نه دا موقوف عليه دې دَ پاره دَ صحت دَ

دې وجه نه اول بحث کوي دَ قضيه نه او بيا به په مقصود کښې شروع کړي دَ قضيه دَ پاره مصنفؒ دوه تعريفونه کړيدي.

(۱):قول يحتمل الصدق والكذب يعني قضيه دا سر مرکب دے چه دا ده صدق او کذب احتمال لري.

(۲): وقيل هو قول يقال لقائله انه صادق او كاذب يعني چه دَ قضيه قائل ته صادق يا كاذب وئيلے شي په دواړه تعريفونو کښې فرق دَ دې چه اول تعريف کښې صدق او کذب دَ قضيه صفت دے او په دوېم تعريف کښې دا دَ متکلم صفت دے.

سوال: دوېم تعريف کښې هُو ضمير قضيې ته راجع دے او قضيه مؤنث ده او هو ضمير دَ مذکر دے راجع او مرجع کښې مطابقت نشته .

جواب:دا دے چه هو ضمير مذکر دَ وجه ده خبر نه راوړے دے چه قول دے (لان الضمير اذا دار بين المرجع والخبر فرعاية الخبر اولىٰ).

وهي قسمان: غرض دَ مصنفؒ دَ دې عبارة نه تقسيم دَ قضيه دے دوه قسمين نه (۱) حمليه وشرطية حمليه تعريف په دې عبارة سره کړے دے ما حكم فيها ثبوت شئ لشئٍ او نفيه عنه چه دَ يو شي دَ ثبوت حکم شوے وي بل شي دَ پاره يا دَ يو شي دَ نفي حکم شوے وي دَ بل نه مراد شئ اول نه محمول دے او شئ ثاني نه موضوع دے يعنې محمول ثابت شوے وي موضوع دَ پاره يا محمول نفي شوے وي موضوع نه كه يو شے بل شي دَ پاره ثابت شوے وي دېته حمليه موجبه وايې او كه يو شے بل نه نفي شوے وي هغې ته حمليه سالبه وايې.

اول دَ پاره مثال لكه زيد قائم دوېم دَ پاره مثال لكه زيد ليس بقائم په اول مثال کښې قيام زيد دَ پاره ثابت شوے دے او په دوېم مثال کښې قيام زيد نه نفي شوې ده.

واما الشرطيه فما لا يكون فيه ذٰلك الحكم

غرض دَ مصنفؒ دَ دې عبارة نه تعريف دَ شرطيه کوي دَ شرطيه دَ پاره مصنفؒ دوه تعريفونه کړي دي.

ما لا يكون فيه ذٰلك الحكم يعني شرطيه دېته وايې چه هغې کښې ثبوت دَ شي دَ شي دَ پاره يا نفي دَ شي دَ شي نه نه وي شوي دوېم تعريف په دې عبارة سره

کوي ، وقيل الشرطيه ما تنحلُ الى قضيين يعني قضيه شرطيه هغې ته وايي چه دغه دوه قضيو ته کولاوېږي څنګه دوه قضيو ته کولاوېږي د هغې تفصيل دا دے چه اول دَ قضيه شرطيه موجبه مثال اوګوره مثلًا انْ کانتِ الشَّمْسُ طالعة فالنهار موجود او دَ شرطيه سالبه مثال لکه ليس البتة ان کانت الشمس طالعة فالليل موجود اوس نه دا مونږ څنګه کولاؤو، دَ هغې مثال مصنفؒ په دې عبارة سر خايي چه ودَ حذف الادوات الخ حاصل دا دے چه ان کانت الشمُس طالعةً فالنهار موجود کسي د ادوات که حذف کړے شي چه ان او فا دي نو الشَّمسُ طالعةٌ او النهار موجودٌ پاتې شو او دا دواړه دَ تحليل نه وروسته هم قضيې دي نو شرطيه هغې ته وايي چه تحليل نه وروسته هم دوه قضيې پاتې کېږي او که تحليل نه وروسته دوه قضيې نه پاتې کېدى بلکه دَ طرفين مفرد وه يا يو مفرد او بله قضيه وه نو هغې ته حمليه وايي مثلا زيد هو قائم ، هو رابط که حذف کړے شي نو طرفين زيد او قائم پاتې شو دا دواړه مفرد دی يا مثلًا زيد ابوه قائم دَ انحلال نه وروسته يعني رابط معنوى (چه هغه په لفظ کښې نشته لېکن نيت کښې باقي دے) حذف کړے شي نو طرفين يو زيد دے هغه مفرد دے دوېم ابوه قائم دے هغه مرکب دے نو چه طرفين مفرد وي يا يو مفرد او بل قضيه وي هغې ته قضيه حمليه وايي.

## فصل الحملية ضربان

غرض دَ مصنفؒ دَ دېنه وروستو تقسيم کوي په قضيه حمليه دوه قسمېنو ته. (۱) موجبه، (۲) سالبه.

موجبه هغه ده چه هغې کښې محمول ثابت شوے وي موضوع ته لکه زيد قائم شو. او سالبه هغه ده چه هغې کښې محمول نفي شوې وي موضوع نه لکه زيد لېس بقائم شو.

## فصل الحملية تلتئم من اجزاء ثلثة

غرض دَ مصنفؒ دَ دې فصل نه بيان دَ اجزاء دَ قضيه حمليه دے حاصل دَ هغې دا دے چه قضيه حمليه درې اجزاء نه جوړه ده (۱) محکوم عليه دېته موضوع هم وايي، (۲) محکوم به او دې ته محمول وايي، (۳) نسبت او دېته رابط وايي. مثلًا زيد هو قائم کښې

زید موضوع قائم محمول، او هُو رابط دے لیکن اکثر رابط په قضیه کښې حذف کولے شي. دَ اختصار دَ پاره او په نیت کښې باقي وي بیا صرف زید قائم وئیلے شي.

فانقیل ، اطلاق د رابط په "هو" صحیح نه دے ځکه رابط ادات وی موقوف وی په طرفینو پوری چه محکوم علیه، او به، دے نو ادات نسبت شو او نسبت معنیٰ حرفی وی او لفظ د "هو" ضمیر دے او ضمیر اسم وی نو معنیٰ حرفی د پاره اسم څنګه وضع شو؟

جواب : هو ، ته رابط وئیل مجازاً او استعارةً دی ځکه په یونانئ لغت کښں رابط په دوه قسمه وو ، زمانی او غیر زمانی ، منطق چه کله نقل شو یونانئ نه عربئ ته ، نو رابطِ زمانی په عربئ کښں افعال ناقصه وو لیکن رابط غیر زمانی په عربئ کښں او نه موندے شو چه د (است ، په فارسئ کښں یا استن ، په یونانئ کښں) په ځاے قائم شی ، نو مناطقو رابط غیر زمانی د پاره لفظ د "هو" چه اسم دے استعارةً استعمالول شروع کړل نو "هو" د معنیٰ اسمي نه نقل شویدے معنیٰ حرفی ته. ' فلا کلام و لا ملام

## فصل للشرطیه ایضاً اجزاء

دَ دې فصل نه غرض دَ مصنف رح بیان دَ اجزء دَ شرطیه دے حاصل یې دا دے چه شرطیه دَ پاره هم درې اجزاء وي اول جزء ته مقدم وایې دوېم جزء ته تالي وایې او دَ مقدم او دَ تالي په درمیان کښې چه کوم حکم وي خواه دَ اتصال وي یا دَ انفصال هغه ته رابط وایې چه قضیه متصله کښې په هغه فاء دلالت کوي او په منفصله کښې اِمَّا یا اَوْ دلالت کوي مثلًا ان کانت الشمس طالعة فالنهار موجود په دې مثال کښې ان کانت الشمس طالعة مقدم دے او فالنهار موجود تالي دے او حکم په اتصال سره چه دال په هغه فا دَه رابط دے او هٰذ الشئ اِمَّا شجرٌ واِمَّا حجرٌ کښې دال په رابط هغه اِمَّا دے ، حاصل داشو چه متصله کښې حکم اتصالي او په منفصله کښې حکم انفصالي نوم رابط دے

فائده متصله کښې فا کله کله حذف کولے شي او دا 'فا' هله حذف کېږي چه دَ مقدم اِن شرطیه په تالي کښې اثر اوکړي. یعنې که تالي ماضي وي نو په معنیٰ دَ مستقبل باندې کړي نو چه ان ماضي په معنیٰ دَ مستقبل سره کړي بیا دَ فا حذف جائز دے لکه ان اکرمتنی اکرمتك دلته په تالی کښې 'فا' حذف ده ځکه اِن دا

ماضي په معنیٰ دَ مستقبل سره کړېده. معنیٰ که تا ځما اکرام اوکړو نو زه به هم ستا اکرام اوکړم. نو هر کله چه ان ماضي په مستقبل بدله کړه. نو ان خپله د رابط قائم مقام شو بل رابط ته ضرورت پاتې نه شو او که ماضي په خپله معنیٰ وي نو بيا فا ذکر لازم دے لکه (ان اکرمتني اليوم فقد اکرمتك) که ته نن زما اکرام اوکړې نو ما پرون ستا اکرام کړے دے. دلته چونکه ماضي په خپله معنیٰ ده نو فاء ذکر لازم دے او که تالی فعل مضارع مثبت يا منفی وي نو بيا دَفاء ذکر کول هم جائز دي او د فاء حذف کول هم جائز دي. چه فاء حذف وي هغې دَ پاره مثال لکه(ان يَكُن مِنكُم اَلفٌ يَّغلِبون اَلفَينِ) دې مثال کښې تالي مضارع مثبت ده او فاء حذف ده او چه ذکر وي لکه (وَمَنْ عَادَ فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ) دلته تالي کښې فاء ذکر ده.

## فصل وقد تقسم القضية

غرض دَ مصنفؒ دَ دې عبارت نه تقسيم دَ قضيه دے په اعتبار دَ موضوع سره چه تفصيل دَ هغې په طريقې دَ حصر سره دا دے چه قضيه موضوع به خالي نه وي يا به جزئ وي (يعني شخص معين) به وي يا به کلي وي که موضوع دَقضيه جزئي وه هغې ته قضيه شخصيه وايې لکه زيد قائم شو او که موضوع ده قضيه کلي وي بيا به خالي نه وي يا به په دې قضيه کښې حکم په نفس حقيقت وي په افرادو به حکم نه وي يا به په افرادود حکم وي اول صورة ته قضيه طبعيه وايې لکه الانسان نوعٌ والحيوان جنسٌ کوره دې مثالونو کښې دَ نوع حکم او دَ جنس حکم په حقيقت دَ انسان باندې شوے دے په افرادو باندې حکم دَ نوع او دَ جنس نه دے شوے او که دَ قضيه موضوع کلي وي او حکم په افرادو شوے وي بيا به خالي نه وي يا به کلاً يا بعضاً دَ افرادو مقدار بيان شوے وي يا به نه وي بيان شوے که دَ افرادو مقدار کلاً بعضاً نه وه بيان شوے دېته مهمله وايې لکه الانسانُ لفی خسرٍ دې مثال کښې دا نه دے بيان شوے چه ټولو انسانان په نقصان کښې دي بعض او که ټول لېکن دا هله چه الف لام استغراقي نشي، او که دَ افرادو مقدار بيان شوے وه هغې ته محصوره وايې لکه کل انسانٍ حيوانٌ يا لکه بعض الحيوان انسان اول مثال کښې حيوان حکم په ټولو افرادو دَ انسان شوے دے او په دوېم مثال کښې دَ انسان حکم په بعض دَ

ماضي په معنیٰ دَ مستقبل سره کړېده. معنیٰ که تا ځما اکرام اوکړو نو زه به هم ستا اکرام اوکړم. نو هر کله چه ان ماضي په مستقبل بدله کړه. نو ان خپله دَ رابط قائم مقام شو بل رابط ته ضرورت پاتې نه شو او که ماضي په خپله معنیٰ وي نو بيا فا ذکر لازم دے لکه (ان اکرمتني اليوم فقد اکرمتك) که ته نن زما اکرام اوکړې نو ما پرون ستا اکرام کړے دے. دلته چونکه ماضي په خپله معنیٰ ده نو فاء ذکر لازم دے او که تالی فعل مضارع مثبت يا منفی وي نو بيا دَفاء ذکر کول هم جائز دي او دَ فاء حذف کول هم جائز دي. چه فاء حذف وي هغې دَ پاره مثال لکه(ان يَكُن مِنكُم اَلفٌ يَّغلِبون اَلفَينِ) دې مثال کښې تالي مضارع مثبت ده او فاء حذف ده او چه ذکر وي لکه (وَمَنْ عَادَ فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ) دلته تالي کښې فاء ذکر ده.

## فصل وقد تقسم القضية

غرض دَ مصنف رح دَ دې عبارت نه تقسيم دَ قضيه دے په اعتبار دَ موضوع سره چه تفصيل دَ هغې په طريقې دَ حصر سره دا دے چه قضيه موضوع به خالي نه وي يا به جزئ وي (يعنې شخص معين) به وي يا به کلي وي که موضوع دَقضيه جزئي وه هغې ته قضيه شخصيه وايې لکه زيد قائم شو او که موضوع ده قضيه کلي وي بيا به خالي نه وي يا به په دې قضيه کښې حکم په نفس حقيقت وي په افرادو به حکم نه وي يا به په افرادود حکم وي اول صورة ته قضيه طبعيه وايې لکه الانسان نوعٌ والحيوان جنسٌ گوره دې مثالونو کښې دَ نوع حکم او دَ جنس حکم په حقيقت دَ انسان باندې شوے دے په افرادو باندې حکم دَ نوع او دَ جنس نه دے شوے او که دَ قضيه موضوع کلي وي او حکم په افرادو شوے وي بيا به خالي نه وي يا به کلًا يا بعضاً دَ افرادو مقدار بيان شوے وي يا به نه وي بيان شوے که دَ افرادو مقدار کلاً بعضاً نه وه بيان شوے دېته مهمله وايې لکه الانسانُ لفی خسرٍ دې مثال کښې دا نه دے بيان شوے چه ټومره انسانان په نقصان کښې دي بعض او که ټول لېکن دا هله چه الف لام استغراقي نشي، او که دَ افرادو مقدار بيان شوے وه هغې ته محصوره وايې لکه کل انسانٍ حیوانٌ يا لکه بعض الحيوان انسان اول مثال کښې حیوان حکم په ټولو افرادو دَ انسان شوے دے او په دوېم مثال کښې دَ انسان حکم په بعض دَ

افراد دَ حیوان شوے دے . منطقیان عام طور باندې د شخصیه ، طبیعة،او مهمله،نه بحث نه کوي صرف دَ محصورې نه بحث کوي. نو راتلونکي فصل کښې دَ محصورې تعریف او اقسام ذکر کوي.

## فائده:

په علومو ، کښې محصورات اربعه معتبر دي ، د محصوراتُ نه علاوه ،شخصیه ، طبعیه ، او مهمله دی د دوی نه بحث نه کیږی ، هر چه شخصیه نه بحث نه کیږی ځکه شخصیه موضوع جزئ او شخص معین وی ، او په معرفت د جزئیاتو کښې د نفس ناطقه کمال نشته ځکه جزئیاتو کښې عدم ثبات وی تغیر راځی نو فائده د علم حاصله نه شوه مثلاً تا ته اوس معرفت حاصل شو چه زید قائم دے نو زید په صفت د قیام همیشه نه دے یو څو منته روستو زید به قائم نه وی نو دا علم لګ روستو جهل جوړ شو هاں شخصیه نه بحث په ضمن د محصوراتو کښې کیږی مثلاً "کل انسانٍ حیوانٌ" دا معرفت د حقیقتِ کلیه دے. لیکن په ضمن د زید ، عمر ، بکر کښې ، او د طبعیه نه هم بحث نه کیږی ځکه طبائع کلیه قطع لحاظ د افرادو نه په خارج کښې موجود نه دی ځکه طبائع کلیه کلی عقلی دی او کلی عقلی وجود خارج کښې نشته نو د طبائع کلیؤ معرفت کښې د نفس ناطقه هم فائده نشته. پاتی شوه مهمله دا داخله ده په جزئیه کښې ځکه مهمله کښې حکم وی په افرادو او په جزئیه کښې حکم وی په بعض افرادو ، او کله چې حکم صادق شو په بعض افرادو نو په افرادو هم صادق شو دا رنګه که حکم صادق شی په افرادو نو په بعض افرادو هم صاوق شو ، نو معلومه شوه چې په علومو کښې معتبر صرف محصوراتِ اربعه دی (فتعین البتك للباز كل).

## فصل المحصورات اربع

دَ محصورې تعریف تاسو ته اوس ذکر شو چه قضیې موضوع کلي وي او حکم په افرادو وي دلته مصنفؒ دَ قضیه محصورې اقسام ذکر کوي محصوره په څلور قسمه ده (۱): موجبه کلیه، (۲) موجبه جزئیه، (۳)سالبه کلیه، (٤) سالبه جزئیه.

(۱)موجبه کليه: هغه محصوره ده چه هغې کښې محمول ثابت وي موضوع ټولو افرادو لره. لکه کل انسان حېوان په دې مثال کښې دَ حېوانيت حکم دَ انسان ټولو افرادو لره ثابت دے.
(۲)موجبه جزئيه: دېته وايې چه هغې کښې محمول ثابت وي دَ موضوع بعض افرادو لره لکه بعض الحيوان اسود دې مثال کښې دَ اسود حکم دَ حېوان په بعض افرادو باندې شوے دے.
(۳)سالبه کليه: دېته وايې چه هغې کښې محمول نفي شوې وي دَ موضوع دَ ټولو افرادو نه لکه لا شئ من الانسان بحجر گوره دې مثال کښې حجريت نفي شوے دے دَ انسان دَ ټولو افرادو نه يا لکه لا شئ من الزنجي بابيض دَ حبشي هېڅ يو فرد ابيض نه دے دې مثال کښې ابيض نفي شوے دے دَ حبشي دَ ټولو افرادو نه.
(٤)سالبه جزئيه:دېته وايې چه محمول نفي شوے وي دَ موضوع دَ بعضې افرادو نه لکه بعض الانسان ليس باسود يا لکه بعض الحيوان ليس بانسان شو .

## فصل الذي يُبَيّنُ بِه كَمِيَّةُ الاَفرَادِ

غرض دَ مصنفؒ په دې فصل کښې بيان دَسور دے حاصل يې دا دے چه کوم لفظ دَ افرادو بيان کلًا يا بعضًا کوي هغې ته سور وايې سور ماخوذ دے دَ سور البلد نه سور البلد دَ ښار چاپېره حصار ته وايې چه هغه په ښار باندې احاطه کړے وي. وجه دَ مناسبت دا ده چه دغه حصار او فصيل دا خاصيت وي چه څوک دَ ده نه بهر وتلے نشي دغه رنګه دَ دروازې نه بغېر بل ځائے نه څوک داخل کېدے هم نشي دغسې دا لفظ دَ سور دَ موضوع افرادو باندې احاطه کړے وي هيڅ يو فرد دَ دې نه وتلے نشي او نه غېر افرادونه داخل کيدے شي.نو اوس دَ هغه اسوارو تفصيل دا دے چه سور دَ موجبه کليه کُلُّ او 'لام استغراق' دے مثال دَ کل لکه کل انسان حېوان او مثال دَ لامِ دَ استغراق لکه ان الانسان لفی خسر.

فائده : کلُّ او لام الاستغراق نه علاوه نور الفاظ هم شته چه عربئ کښې په اسوارو د موجبې کلي کښې استعماليږی مثلاً جميع ، اجمع ، اجمعون ، کافةً ، قاطبةً ، عامةً ، سائرةً .

فائده: کل په درې قسمه دے (۱) کل فردي، (۲) کل کلي، (۳) کل مجموعي. کل انسان حیوان کښې کل فردي دے یعنې که هغه کښې حکم په افرادو باندې وي او کل کلي په قضیه طبیعه داخلېږي لکه کل انسان نوع دَ نوع حکم په انسان کلي باندې دے په افرادو نه دے او کلي مجموعی مدخول کله جزئي وي بیا به هغه قضیه شخصیه وي لکه کل زید حسن او کله به مدخول دَ کل مجموعي کلي وي نو بیا به قضیه مهمله وي لکه کل انسان لا یبیعه هٰذ الدار.

وسور الموجبه الجزئية 'بعض' و'لا واحد' نحو بعض الجسم جماد ولا واحد من الجسم جماد

او سور دَ موجبه جزئیه بعض او واحد دے مثال دَ دواړو ظاهر دے دلته بعض نسخو دَ کتاب کښې کمے دے صحیح عبارة هغه دے کوم چه لیکلے شوے دے.

فائدة: سور د موجبې جزئی د پاره په عربئ کښې نور الفاظ هم شته مثلا بعضٌ. قسمٌ. منهُ. فريقٌ. منهم. من تبعيضه. قليلٌ. قليلةٌ. فئةٌ. طائفةٌ. اكثرُ، وغيره.

وسور السالبة الكلية لا شئ ولا واحد....الخ او سوره دَ سالبه کلیه لا شئ دے لکه لا شئ من الغراب بابیض دې مثال کښې نفي دَ ابیض شوېده هر فرد دَ افرادو کارغه نه. دوېم سور دَ سالبه کلیه لا واحد دے لکه لا واحد من النار بارد دلته نفي دَ برودت شوېده هر فرد دَ افرادو دَ اور نه درېم سور دَ سالبه کلیه ووقوع النكرة تحت النفي نکره تحت النفی واقع کېدل هم سور دَ سالبه کلیه دے لکه ما من ماء الا وهو رطب دلته ماء نکره ده تحت النفي واقع ده چه ماء دے دې مثال کښې هر یو فرد دَ افرادو دماء نه غېر رطب نفي کړے دے وسور السالبة الجزئية دَ سالبه جزئیه سور دَ پاره مصنفؒ دوه لفظونه ذکر کړي دي (۱) لیس بعض، (۲) بعض لیس، اول دَ پاره مثال لکه لیس بعض الحیوان بحمار دَ دوېم دَ پاره مثال لکه بعض الفواکه لیس بحلو.

فائده: لیس بعض او بعض لیس کښې درې ۳ فرقه دي اول فرق دا دے چه کله هم په قضیه کښې بعض لیس استعمالېږي نو لفظ دَ بعض به دَ قضیه په شروع کښې وي او لیس به دَ قضیه په درمیان کښې وي لکه بعض الفواکهِ لیس بحلوٍ، بعض مېوې خوږې نه دي او لېس بعض دواړه یو ځایې استعمالېږي لکه لیس بعض الحیوان بحمار بعض حېوان حمار نه دے.

دوېم فرق دا دے چه ليس بعض کله کله دَ سلب کلي دَ پاره هم راځي يعني سور دَ سالبه کليه هم واقع کېږي او بعض ليس همېشه دَ سلب جزئي ددَ پاره راځي.
درېم فرق دا دے چه بعض ليس کله سور واقع کېږي دَ سالبه جزئيه لېکن کله سور نه واقع کېږي يعنې که مقصود دَ متکلم نفي ده محمول وه دَ بعض افرادو دَ موضوع نه بيا به سور دَ سالبه جزئيه وي او که مقصود دَ متکلم ثبوت دَ محمول مسلوبه وه موضوع نه نو بيا به هغه قضيه سالبه جزئيه نه وي بلکه موجبه معدولة المحمول به وي. لکه بعض الحيوان ليس بانسان چه سالبه جزئيه شي بيا به ترجمه داسې کوي بعض حيوان انسان نه دے او چه موجبه معدولة المحمول شي نو بيا به ترجمه داسې کوي بعض حيوان نه انسان دے او ليس بعض همېشه دَ پاره سور راځي.
<u>اعلم ان فی کل لسان سور:</u> غرض دَ مصنفؒ دَ دې عبارة نه تحقيق المقام کوي چه سور په هر لغت کښې شته عربئ پورې خاص نه دے دَ عربئ اسوار هغه وه چه ذکر شو په فارسی کښې سور دَ موجبه کليه لفظ دَ(ہر) دے لکه دې شعر کښې راغلي دي.

ہر آں کس کہ در بندِ حرص اوفتاد     دہد خرمنِ زندگانی بباد

مطلب دَ شعر دا دے: هر هغه څوک چه هغه حرص غالب شي نو دَ خپله زندګي بخپله تباه کړه او دَ موجبه جزئيه سور په فارسی کښې برخي هست دے.
او په اردو کښې سور دَ موجبه کليه "سب، تمام، ہر" دے مثال دَ (ہر) دَ پاره لکه.

ہر لفظ کو سینے میں بسالو تو بنے بات     طاقوں میں سجانے کو یہ قرآن نہیں ہے

او دَ موجبه جزئيه دَ پاره اردو کښې سور کچھ - يا چند راځي لکه دَ(کچھ) -
دَ پاره مثال :

کچھ لوگ بچھا کر کانٹوں کو گلشن کی توقع رکھتے ہیں

شعلوں کو ہوائیں دے دے کر ساون کی توقع رکھتے ہیں

او په پښتو کښې دَ موجبه کليه سور ټول ،تمام ، دي او دَ موجبه جزئيه څه، ځنې وغېره دی دموجبه جزئيه مثال لکه.

بيا به خندا پورې خندا در درومي     که څه قيصه دې دَ جړا ولوسته
بيا به ګونګټ واجب القتل کنړې     که څه زندګي دي دَ بورا ولوسته

اوپه انګلش کښې سورِدَموجبه کلیه "All" دے اودَموجبه جزئیه "Some"دے.
او دَ سالبه کلیه سور په اردو کښې کچھ نہیں، کوئی نہیں او په پښتو کښې هیڅ نشته، ټول نشته، یو هم نشته ، وغیره الفاظ استعمالیږي او په انګلش کښې "All No" او دَ سالبه جزئیه سور په اردو کښې چند نہیں، بعض نہیں، وغیره راځي او پښتو کښې څه نشته، ځنې نشته وغیره الفاظ راځي او په انګلش کښې "Some No" راځي.

## فصل قد جرت عادة المیزانین

په دې فصل کښې مصنف‌رح یو جدید اصطلاح ذکر کوي حاصل دَ هغې دا دے چه کله کله منطقیان دَ موضوع او محمول نه تعبیر کوي په "ج او ب" سره نو موجبه کلیه نه چه تعبیر کوي نو داسې وایې کُلُ ج ب، او موجبه جزئیه نه چه تعبیر کوي نو داسې وایې بعضُ ج، ب او دَ سالبه کلیه نه چه تعبیر کوي نو داسې وایې لا شئ مِن ج، ب او سالبه جزئیه نه چه تعبیر کوي نو داسې وایې بعضُ ج لَیْسُ ب، دا تعبیرونه دَ موضوع محمول نه په ج، ب سره ولې کوي مصنف‌رح دَ هغې دَ پاره دوه وجې ذکر کړي دي.

(۱): ومقصودهم من ذلك الایجاز: یعني دَ پاره دَ اختصار ځکه کل انسان حیوان دا طویل کلام دے او کل ج، ب دا مختصر (abbreviation)دے او اداکول دَ مختصر کلام آسان وي دَطویل کلام نه دویمه وجه مصنف‌رح په دې عبارت سره ذکر کوي.

(۲) ودفع توهم الانحصار: دَ پاره دفع کولو دَ وهم او دَ انحصار چه واهم به دا وهم کوي چه منطقیانو سره دَ موضوع او محمول نه چه تعبیر کوي نو انسان او حیوان نه علاوه نور الفاظ به نه وي نو مصنف‌رح دا وهم رد کړو. چه نور الفاظ هم شته دَ موضوع محمول نه په ج او ب سره هم تعبیر کولے شي.

سوال:حروف تهجي کښې اول الف دے نو شروع یې دَ الف نه ولې نه کوله؟
جواب: الف همیشه ساکن باشد ، دَ دې وجې نه په الف ابتداء نه کیږي.
سوال: الف له حرکت ورکړه کنه دا کار خو ګران نه دے؟

جواب: حرکت ورکولو سره بیا همزه جوړه شوه او همزه خپل څه خاص شکل نشته کله ده `واو` په شکل لیکلے کېږي لکه یؤمنون کښې یومنون شو کله دَ `یا` په شکل لیکل کېږي لکه اء مان ایمان سره لیکلے شي کله الف په شکل لیکلے شي کله اء منوا، اٰمنو لیکلے شي او کله عین مقطوعه (ء) په شکل لیکلے شي. لهٰذا دَدې نه قلار شه ------!

سوال: په ترتیب کښې اول "ب" ده بیا "جیم " دے پکار دا وه چه "ب" تعبیر وے دَ موضوع نه او "ج" تعبیر وے دَ محمول نه عکس یې ولې وکړو.

جواب: عکس دَ یوه نکته دَ پاره کړے دے هغه نکته دا وه چه کہ مونګ داسې او وایو کل ب ج ، بیا به .... واهم دا وهم کوي چه چرته حروف تهجي شمارنے کېږي دا دَ موضوع محمول نه تعبیر نه دے دَ دې وهم نه بچ کېدو دَ پاره مونګ عکس اوکړو.

دوېم جواب دا دے چه جیم کښې درې حروف دي "ج، ي،م" او موضوع کښې هم درې شیان دي (۱) ذات دَ موضوع انسان ذات، زید عمر وبکر دي، (۲) وصف دَ موضوع چه انسانیت دے، (۳) اتصاف دَ ذات ده موضوع په وصف سره نو جیم کښې درې حروف وه او په موضوع کښې درې شیان وه. نو ج مونګ موضوع ته تعبیر کړو او په ب کښې دوه حروف دي ، ب او الف او په محمول کښې هم دوه شیان دي (۱) وصف محمول، (۲) انصاف دَ موضوع په محمول سره نو "ب" تعبیر شوه دَ محمول نه نو په دې مساوي تقسیم سره بېلنس برابر شو.

سوال: دَ "ب" نه بعد دَ "ت"، ث نمبر وه هغه ترك شو او ج سره تعبیر اوشو ولې؟

جواب:بےت، ث دَ ټولو شکل یو وه صرف دَ نقطو فرق وه .نو بعض ایمرجنسي حالاتو کښې ( مثلاً چه تقلیل یا تکثر په نقطو کښې راشي) په کتونکي التباس راولي چه داکوم حرف دے ت ده او که ث ، دَ دې وجه نه دَ ب نه وروستو ت، او ث، پرېښودے شوې او ج،سره تعبیر اوشو.

فائده: په دې کښې دَ علماؤ اختلاف دے چه کلِ ج ب په دې به تلفظ بسیطًا کېږي لکه کل ج ب او که مرکبًا به تلفظ کېږي ، 'کُلّ جیمٍ بائ' بعض علماء وایې چه تلفظ به مرکبًا کېږي. مثلًا داسې به وایو 'کُلّ جیمٍ باءٌ' او بعض علماء وایې چه نا تلفظ به په دې بسیطا کېږي او دا دوېم مذهب غوره دے ځکه دَ دې کتابت بسیطًا کېږي نو تلفظ به هم بسیطًا کېږي دوېمه وجه داده چه کل ج ب دې تعبیر نه مقصود

اختصار دے او اختصار په ج، ب کښې دے په جيمْ باء کښې اختصار نشته.

## فصل الحمل فی اصطلاحهم

غرض دَ مصنفؒ دَ دې فصل نه بيان دَ حمل دے په قضيه کښې محمول حمل وي په موضوع نو فصل کښې تعريف اوتقسيم دَ حمل کوي حمل په لغت کښې بار کولو ته وايي لکه حملت الخشبة علیٰ الدراجة يا حملت المتاع علی السيارة او په اصطلاح کښې تعريف مصنفؒ په دې عبارة سره کوی اتحاد المتغائرين فی المفهوم بحسب الوجود،يعني دوه شئيونه چه هغوی په اعتبار دَ مفهوم سره جدا جدا وي او ته يو په بل حمل کړې او مصداق يې يو کړې مثلًا زيد کاتب شو، مفهوم دَ زيد جدا دے چه ذات دےاو مفهوم د دی کاتب جدا دے چه وصف دے لېکن کله چه کاتب حمل شو په زيد نو دواړو يو شو زيد نه دے مګر کاتب دے او کاتب نه دے مګر زيد دے دَ حمل دَ پاره مثال لکه زيدٌ کاتبٌ او عمروٌ شاعرٌ چه په اعتبار دَ مفهوم سره زيد او کاتب او عمرو او شاعر دواړه جدا جدا دي لېکن کله چه حمل دَ کاتب اوشو په زيد او دَ شاعر اوشو په عمرو نو دَ زيد او دَ کاتب او دَ عمر او دَ شاعر مصداق يو شو.

## ثم الحمل علیٰ قسمين

غرض دَ د مصنفؒ دَ دې عبارة نه تقسيم دَ حمل کوي دوو قسمينو ته (۱) اول ته حمل باالاشتقاق وايي هغه دا دے چه محمول حمل شي په موضوع په واسطه دَ "ذو" يا لام، يا فی، يا له، سره لکه خالد ذو مالٍ، عمرو فی مطبٍ، بکر له فضل، المال لزيد .دې حمل ته حمل بالاشتقاق ځکه وايي لکه مشتق محتاج وي دَ مشتق منه دغسې دلته هم دا حمل دَ دې واسطو محتاج دے، دوېم قسم حمل بالموطاط دے هغه دېته وايي چه محمول حمل شي په موضوع بغېر دَ واسطه دَ ذُو،لَهٗ وغېره نه لکه عمرو طبيبٌ وبکر فصيحٌ، دې حمل ته حمل بالموطاط ځکه وايي چه مواطاط معنیٰ موافقت او په دې حمل کښې هم موضوع او محمول موافق او متحد دي په اعتبار دَ مصداق سره.

بيا دا خبره ياد ساتل پکار دي چه حمل بالمواطاط په دوه قسمه دے (۱) حمل اوّلی، (۲) حمل الشائع والمتعارف.

(۱) حمل اوّلي: دېته وايي چه محمول بعينهِ موضوع وي لکه الانسان اِنسانٌ يعني موضوع محمول هم مفهومًا او هم مصداقًا متحد وي په دې موضوع محمول کښې

تغائر اعتبار دی او دغه تغائر اعتباري دَ حمل دَ پاره کافي دے او هغه تغاير اعتباري دا دے چه موضوع دَ انسان عقل ته اول راځي او مجهول انسان عقل ته ثانيًا راځي.

(۲) حمل الشائع والمتعارف:دېته وايي چه موضوع محمول په اعتبار دَ مفهوم سره متغائر وی لېکن مصدقاً دواړه يو وي لکه زيد کاتب شو.

دا خبره هم ياد ساتل پکار دي: چه په علوم او فنونو کښې حمل اوّلی اعتبار نشته حمل الشائع والمتعارف استعمالېږي.

حمل شائع والمتعارف په دوه قسمه دے (۱) حمل بالذات چه محمول ذاتي وي لکه الانسان حيوان (۲) حمل شائع والمتعارف بالعرض هغه حمل دے چه محمول عرض وی لکه الانسان کاتب حمل اقسام يادولو دَ پاره لاندې نقشه باندې نظر واچوه.



فائده: موضوع او محمول کښې دَ منطق په اصطلاح کښې دوه شيئان دي (۱) عقدِ وضع، (۲) عقد حمل مثلًا کل انسان حيوان په دې موضوع کښې درې شيان دي (۱) ذات دَ موضوع چه هغه عبارت دے دَ زيد، عمر، بکر نه .(۲) وصف عنواني چه انسانيت دے (۳) ثبوت دَ وصف عنواني ذات دَ موضوع دَ پاره نو ثبوت دَ وصف عنواني ذات دَ موضوع دَ پاره دېته عقد وضع وايي او په محمول کښې دوه شيان دي (۱) وصفِ عنواني چه حيوانيت دے. (۲)ثبوت دَ وصفِ عنوانى ذات دَ موضوع دَ پاره دېته عقد حمل وايي يعنې چالره چه انسانيت ثابت وي نو حيوانيت به هم ورلره ثابت وي دَ دېنه تعبير په حمل سره شوے دے اختصارًا،نو ځکه ووئېل "الحمل".

۞ کتبہ لطیف اللہ دیروی من افادات مولانا حسین علی حفظ اللہ ۞

## فصل تقسيم اُخر للحملية

غرض دَ مصنفؒ دَ دې فصل نه تقسيم دے په حملية کښې په اعتبار دَ موضوع سره حاصل يې دا دے چه موضوع دَ حملية به خالي نه وي يا به په خارج کښې موجوده وي حکم به وربانديې په اعتبار دَ خارج سره شوے وي نودېته قضيه خارجيه وايې لکه زيد کاتب دې مثال کښې زيد چه موضوع ده په خارج کښې موجود دے او کاتب سره حکم په اعتبار دَ خارج سره شوے دے او دَ سالبه دَ پاره مثال لکه زيد ليس بکاتب.

او که موضوع دَ قضيه په ذهن کښې موجوده وي په خارج کښې موجوده نه وي او حکم هم په اعتبار دَ ذهن سره شوے وي نو هغې ته قضيه ذهنيه وايې لکه الانسان کلي په دې مثال کښې انسان چه موضوع دَ قضيه ده په ذهن کښې موجود دے ځکه په خارج کښې افراد دَ انسان موجود دي انسان نشته او حکم هم په اعتبار دَ ذهن سره شوے دے چه کلي او يا به موضوع دَ قضيه حمليه موجوده وي په نفس الامر او واقع کښې قطع لحاظ دَ دې نه چه دا په خارج کښې موجوده ده که په ذهن کښې دېته قضيه حقيقيه وايې لکه اَلاَربَعَةُ زَوجٌ واَلسِتَّةُ ضِعفُ الثَّلَاثَةِ په دې مثال کښې الاربعة باندې حکم شوے دے په زوج سره په اعتبار دَ نفس الامر سره چه په حقيقت کښې اربعه زوج دي دا لحاظ نشته چه اربعه په خارج کښې

موجود دي که په ذهن کښې دغسې لانجه په دوېم مثال چه الستة ضعف الثلاثة دے کښې هم ده.

فائده: په نفس الامر او خارج کښې نسبت دَ عموم خصوص مطلق دے هر نفس الامري شئ خارجي نه وي يعني هر هغه شے چه نفس الامر کښې موجود وي ضرور نه ده چه خارج کښې دې هم موجود وي لکه زوجية دَ اربعة،يا د بلډ پرېشر په بدن دَ انسان کښې کمېدل او زياتېدل يا لکه په بدن دَ انسان کښې فولاد، او نمکيات وغيره موجود کېدل وغيره وغيره دا ټول شئيونه نفس الامرى دى ليکن خارجى نه دى ، او هر هغه شے چه خارج کښې موجود وي نو هغه به په نفس الامر کښې هم موجود وي ولې که نفس الامر کښې موجود نه وي نو خارج کښې دَ کوم ځائے نه راغلو ؟او نفس الامر او ذهن کښې نسبت دَ عموم خصوص من وجه دے يو ماده اجتماعي ده چه يوشے به هم نفس الامري وي او هم به ذهني وي لکه زوجية دَ اربعو او ماده افتراقي چه ذهني وي او نفس الامري نه وي لکه زوجية الخمسة ځکه زوجية دَ خمسه فرض کيدے شي ليکن نفس الامري نه دے او دوېمه ماده افتراقي چه نفس الامري وي او ذهني نه وي لکه تصور بکنهه ده ذات دَ واجب تعالیٰ شو نو ذات دَ واجب تعالیٰ نفس الامري دے لېکن ذهني نه دے لانه لا يُحَدُّ ولا يُتَصَوَّرُ.

فصل القضية الموجبة وكذا السالبة تنقسمان الیٰ معدولة وغير معدولة

غرض دَ مصنفؒ دَ دې فصل نه تقسيم دَ حمليه دے په اعتبار دَ حرف سلب سره چه حقيقت کښې حرف سلب وضع شوي دي لپاره دَ نفي دَ نسبت ايجابي لېکن که کله دا حرف سلب خپل ډېټي پرېږدي دَ موضوع يا دَ محمول يا دَ دواړو نه جزء شي. نو معدولة ورته هم ځکه وايې چه حرف سلب تجاوز کړے وي دَ خپل کار نه نو پوره قضيه ته معدولة وئيل تسمية الكل باسم الجزء شوه.

قضيه معدوله په شپږ قسمه ده ځکه قضيه به ياموجبه وي يا سالبه که موجبه وي نو حرف سلب به يا جزء وي دَ موضوع نه (۲) يا به جزء وي دَ محمول نه، (۳) يا به جزء وي دَ دواړو نه او که سالبه وي، (۱) نو حرف سلب به يا جزء وي دَ موضوع نه، (۲) يا دَ محمول نه، (۳) يا دَ دواړو نه مثال دَ اول چه قضيه موجبه وي او حرف

سلب جُزء وي دَ موضوع نه لکه اللاحي جماد دېته موجبه معدولة الموضوع وايي مثال دَ دوېم چه حرف سلب جزء وي دَ محمول نه لکه زيد لا عالم دېته موجبه معدولة المحمول وايي مثال دَ درېم چه حرف سلب جُزء دَ دواړو نه وي لکه اللاحي لاعالم دېته موجبه معدولة الطرفين وايي او دَ سالبه معدولة الموضوع دَ پاره مثال لکه اللاحي ليس بعالم "نه ژوندے عالم نه دے" او مثال دَ سالبه معدولة المحمول لکه العالم ليس بلاحي (عالم نه ژوندے ندے) او مثال دَ سالبه معدولة الطرفين لکه اللاحي ليس بلا جماد (لاحی لا جماد نه دے بلکه جماد دے).

فائده: چه قضيه ثلاثيه وي او حرف نفي په رابط باندې داخل وي نو هغه قضيه به سالبه وي معدولة به نه وي لکه الانسان ليس هو بفرس او که حرف رابط په حرف نفی داخل وي نو بيا به قضيه موجبه معدولة المحمول وي لکه زيد هو ليس بعالم شو معنيٰ به ئے داسي کوی زيد نه عالم دے او که قضية ثنائية وه نو بيا سياق سباق نه معلومول پکار دي چه دا سالبه ده که موجبه معدولة المحمول،او يا په دغه صورة کښې د معدولی او محصلی مدار په اعتبار د معتبر او په فرض د فارض باندی دے.

قضيه موجبه غير معدوله ته محصله وايي لکه زيد قائم شو ځکه محصله دَ حصول نه ده نو هر کله چه حرف سلب جزء دَ موضوع محمول نه نه شو نوموضوع، محمول حاصل او موجود دي اوسالبه چه حرف سلب جزء دَ موضوع يا محمول نه وي هغه ته بسيطه وايي ځکه بسيطه معنیٰ قليل الاجزاء او سالبه غير معدولة اجزاء هم کم دي دَ سالبه معدوله نه.

## فصل قد يذكر الجهة في القضية

په موجهات کښې د شروع نه مخکښې يو څو خبرې پېژندل ضروري دي(۱) دَ محمول نسبت چه موضوع ته اوشي نو په حقيقت کښې به دانسبت يا ضروري او لازم وي لکه الله موجود او الانسان حيوان ناطق او (۲)يا به ممتنع وي لکه الکافر يدخل الجنة نو دخول دَ جنت نسبت کول کافر ته ممتنع دي. يا لکه شريك الباري موجود دلته هم دَ شريك نسبت کول واجب تعالیٰ ته ممتنع دي (۳)يا به دا نسبت دائمي او هميشه به وي دَ موضوع نه به جدا کېږي نه لکه المؤمن مخلد فی الجنة او الکافر مخلد فی النار

(٤)او يا به دا نسبت بالفعل وي يعني د درېو زمانو نه به په يو زمانه کښې ثابت وي لکه خالد ياكل الطعام، وساجد سائق السيارة، وفاطمة باكيه.

(٥)او يا به دا نسبت ممکن وي يعني محمول ثبوت به موضوع د پاره ضروري نه وي او سلب به هم ضروري نه وي لکه زيد قائم، و عمرو شاعر، نو دغه نفس الامري نسبت باندې چه کوم لفظ دلالت کوي په قضيه کښې هغې ته جهت وايي او قضيه ته بيا موجهه وايې. نو جهات پنځه شو (١) ضرورة، (٢) امتناع، (٣) دوام، (٤) فعليت، (٥) امکان کومه قضيه کښې چه ثبوت دَ محمول موضوع لره ضروري وي هغې سره به يا الضرورة لفظ لګي لکه الله موجود بالضرورة او کومه قضيه کښې چه ثبوت دَ محمول موضوع لرهٔ ممتنع وي هغې سره به بالامتناع لګی لکه شريك الباري موجود بالامتناع دغسې به تولو کښې به خپل لفظ لګي مثلاً المؤمن مخلد فى الجنة بالدوام، فاطمة كاتبة بالامكان، خالد سائق السيارة بالفعل.دوېمه خبره دا زده کول پکار دي چه موجهات په دوه قسمه دي (١) بسائط ، (٢) مرکبا .

بسيطه: هغې ته وايې چه هغه صرف موجبه وي يا سالبه لکه الانسان حيوان بالضرورة ولا شئ من الانسان بحجر بالضرورة.

مرکبه: دېته وايې چه هغه دَ ايجاب او سلب دواړونه جوړه شوي وي بسائط او مرکبات ټول ١٥ دی، ٨ قضئ بسائط دی او ٧ مرکبات دي.

بسائط دا دی: (١) ضرورية مطلقة، (٢) دائمه مطلقة ،(٣)، مشروطه عامة، (٤) عرفيه عامه، (٥) وقتيه مطلقه، (٦) منتشره مطلقه، (٧) مطلقه عامه، (٨) ممكنه عامه.

دا خبره هم ياد ساتل پکار دي چه ضروريه مطلقه او مشروطه عامه، وقتيه، مطلقه، منتشريه مطلقه دا څلور قضيې مکيفي ذي په كيفة دَ ضرورة سره يعنې دا جهات مقيد دي په قيد دَ ضرورة سره خو فرق دا دے چه ضرورية مطلقه کښې ضرورة په اعتبار دَ ذات د موضوع سره دے او په مشروطه عامه کښې ضرورة په اعتبار دَ وصف عنواني دَ موضوع سره دے او په وقتيه مطلقه کښې په اعتبار دَ وقت معين سره دے او په منتشره ملطقه کښې په اعتبار دَ وقت غير معين سره دے.

او عرفيه عامه، مطلقه عامه، ممكنه عامه په دې قضاياء کښې حکم په دوام دَ

محمول سره وي موضوع ته اثباتًا یا نفیًا ځو پورې چه ذات دَ موضوع متَّصف وي په وصف عنواني سره او په مطلقه عامه کښې حکم بالفعل وي او په ممکنه عامه کښې په امکان سره وي.

دریمه خبره دا زده کول پکار دي چه ذات دَ موضوع عبارة دے دَ افرادو دَ موضوع نه مثلًا کل انسان حیوان کښې مراد دَ ذات دَ موضوع نه ما صدق علیه الانسان دے چه زید، عمر ، بکر وغیره دي. دویم دے وصف عنواني چه دا عبارة دے دَ هغه تعبیر نه چه شوے دے دَ موضوع نه چه هغه انسان دے یا انسانیت دے مثلاً یا لکه موجهات لفظ دَ ټولو موجهاتو دَ پاره وصف عنواني دَے حاصل دا شو دَ کوم شي نه چه تعبیر په کوم لفظ سره شوے وي هغې ته وصف عنواني وایې یعنې Head line ته وصف عنوانی وائي .

څلورمه خبره دا زده کول پکار دي چه کله نسبت دَ محمول اُوشي موضوع ته دا نسبت کله ضروري وي لکه کل انسان حیوان بالضرورة او کله دائمي وي لکه کل فلك متحرك بالدوام او کله امکاني وي لکه زید کاتب بالامکان او کله امتناعي وي لکه اجتماع النقیضین موجود بالامتناع دَ ضروري مطلب دا دے چه محمول دَ موضوع نه نه جدا کېږي او دَ دائمي مطلب دا دے چه محمول دَ موضوع نه نه جدا کېږي لیکن جدا کېدل یې ممکن وي او دَ امکاني مطلب دا دے چه محمول دَ موضوع نه نه جدا کېدل ضروري وي او نه نه جدا کېدل (یعنې جدا کېدل او نه جداکېدل دواړه ممکن وي) او دَ امتناعي مطلب دا دے چه محمول موضوع باندې هیڅ کله هم نه صادقیږي بلکه ضروري العدم وي، او چه نسبت دَ محمول موضوع ته بالفعل وي هغه ظاهر دے چه محمول ثبوت موضوع ته سلب دَ موضوع نه په یو زمانه کښې وي دَ ازمنو ثلاثو نه.

فیسمّي موجهة ورباعیّة: یعنې کوم وقت کښې چه قضیه کښې جهت ذکر شي بیا قضیه ته موجهة او رباعیة وئیلے شي موجهة وئیلو وجه ظاهره ده چه مشتمل ده په جهت باندې او رباعیة ورته ځکه وایې چه دا قضیه مشتمل ده په څلورو اجزاؤ باندې موضوع، محمول، نسبت او جهت.

سوال: كه دَ ځلور اجزاؤ دَ وجه نه قضيه رباعيه جوړېږي، نو بيا محصورې ته هم رباعيه ولې پکار دي ځکه په هغې کښې ځلورم شئ سور دے.

جواب: جهت دَ قضيې سره لازم وي او سور دَ هر قضيه سره لازم نه وي لکه شخصيه، طبعيه، مهمله دَ دې وجې نه سور ځلورم جزء نه حسابېږي او په مطلقه کښې اګر كه سور نه وي لېکن صلاحيت دَ قبلولو دَ سور پکښې شته.

فأحدها الضرورية المطلقة: ضرور يه مطلقه ، ده تعريف حاصل دا دے چه ثبوت دَ محمول موضوع لره يا نفي دَ محمول دَ موضوع نه ضروري وي تر څو پورې چه ذات دَ موضوع موجود وي موجبه دَ پاره مثال لکه الانسان حيوان بالضرورة دلته ثبوت دَ حيونيت انسان دَ پاره ضروري دے څو پورې چه ذات دَ موضوع چه زيد، عمر بکر دي موجود وي او سالبه دَ پاره مثال لکه الانسان ليس بحجر بالضرورة سلب دَ حجريت دَ انسان نه ضروري دے څو پورې چه ذات دَ انسان موجود وي.

والثانية الدائمة المطلقة: دَ دې دَ تعريف حاصل دا دے چه ثبوت دَ محمول موضوع لپاره هېشه وي دا موجبه شوه. او دائمه سالبه دېته وېي چه سلب دَ محمول دَ موضوع نه همېشه وي دَ موجبه دَ پاره مثال لکه كل فلك متحرك بالدوام دلته ثبوت دَ متحرك دَ فلك دَ پاره همېشه دَ پاره ثابت دے يعني فلك همېشه ګول حركت كوي دا حركت دَ فلك نه جدا کېږي نه اګر كه جدا کېدل ممکن دي او جدا کېږي ځکه نه، چه زمانه نوم دے دَ حركت دَ فلك نه نو كچرته فلك بريك (stop)شو نو ټوله زمانه به بريك شي. نظام به ټول دَرْهم بَرْهم شي (كذا قالوا).

او دَ سالبه دَ پاره مثال لکه لا شئ من الفلك بساكن بالدوام دلته سكون نفي شوے دے دَ فلك نه همېشه دَ پاره.

والثالثة المشروطة العامة: دَ دې تعريف حاصل دا دے چه مشروطه عامه دېته وايي چه ثبوت دَ محمول دَ موضوع دَ پاره يا نفي دَ محمول دَ موضوع نه ضروري وی تر څو پورې چه ذات دَ موضوع موصوف وي په وصف عنواني سره او كه ذات دَ موضوع نه وصف عنواني ختم شوْ نو بيا به ثبوت يا نفي دَ محمول هم ختمېږي دَ موجبه دَ پاره مثال لکه كل كاتب متحرك الاصابع بالضرورة ما دام كاتبًا (دَ هر كاتب ګوتې حركت

کوي خامخا تر څو چه کاتب وي). مطلب دا دے چه تحرك دَ اصابع (چه محمول دے) کاتب دَ پاره (چه موضوع ده) هغه وخته پورې ثابت دے چه څو پورې ذات دَ موضوع چه زيد، عمر، بکر دي په وصف عنواني يعنې کتابت سره موصوف وي. او چه کله دَ کاتب افراد (چه زيد،عمر، بکر دي) کاتب نه وي (يعنې وصف عنواني ورلره ثابت نه وي) بلکه اُوده وي. يا مرۀ وي يا هسې ناست وي کتابت نه کوي، نو دَ تحرك الاصابع والا حکم به ولره ثابت نه وي' او دَسالبه دَ پاره مثال لکه لا شئ من الکاتب بساکن الاصابع بالضرورة ما دام کاتبًا (هيڅ يو کاتب ګوتې ساکن نه وي خامخا څو پورې چه هغه کاتب وي) يعنې دَ سکون الاصابع نفی کاتب نه ده چه کتابت والا وصف په ذات دَ موضوع کښې نه وي نو بيا به سکون دَ اصابع نفي هم نه وي( يعنی چه اصابع کتابت نه کوی نو بيا به ساکنې وي ).

والوصف العنواني عندهم: په دې عبارة سره مصنفؒ تعريف دَ وصف عنواني کوي لېکن مونګ تاسو ته دَ وصف عنواني تعريف په ايډوانس کښې کړے دے. يو ځل پرې نظر بيا واچوه.

والرابعة العرفية العامة: دَ دې دَ تعريف حاصل دا دے چه عرفيه عامه هغه موجهه ده چه دې کښې ثبوت دَ محمول موضوع لپاره يا نفي دَ محمول موضوع نه دائمي وي څو پورې چه ذات دَ موضوع موصوف وي په وصف عنواني سره.

دَ موجبه دَ پاره مثال لکه بالدوام کل کاتب متحرك الاصابع ما دام کاتبًا. په دې مثال کښې تحريك دَ اصابع دَ کاتب دَ پاره دائمي طور باندې ثابت دے لېکن څو پورې چه کاتب کاتب وي او چه کله کاتب کاتب نه وي نو تحرك الاصابع حکم به هم نه وي او دَسالبه دَ پاره مثال لکه لا شئ من الدائم بمستقيظ ما دام کاتبا په دې مثال کښې دا ويخ والے هميشه دَ پاره نفي شوے دے. دَ نائم نه لېکن چه څو پورې هغه نائم وي او کله چه دَ نائم صفت ختم شي نو دَ ويخ والي نفي به هم ختمه شي.

والخامسة الوقتية المطلقة: دَ دې دَ تعريف حاصل دا دے چه په دې کښې محمول ثبوت موضوع دَ پاره يا نفي دَ محمول موضوع نه ضروري وي لېکن په يو وقت معين کښې دَ ذات دَ موضوع نه موجبه دَ پاره مثال لکه: کل قمر منخفسف بالضرورة وقت

حيلو'ة الارض بينه وبين الشمس، په دې مثال کښې د قمر د پاره انخساف خامخ ثابت کړے دے. په يو خاص وقت کښې چه دَ قمر او شمس په مېنځ کښې زمکه حائله شي ځکه چه قمر دَ شمس نه چارج(charg) کېږي نو چه کله زمکه د داوړو په مېنځ کښې پرده شي او کنکشن کټ شي نو قمر بيا منخسف شي (کذا قالوا) او سالبه دَ پاره مثال لکه لا شئ من القمر منخسف بالضرورة وقت التربيع. يعني دَ تربيع په وقت کښې هيڅ يو قمر منخسف بالکل نه ده. په دې مثال کښې دَ قمر نه انخساف سلب شوے دے په يو خاص وقت کښې چه وقت دَ تربيع دے تربيع هغه وقت دے چه قمر دَ دولس برجونو نه په څلورم برج ته راشي. چه په هغه کښې شمس هم وي نو بيا دَ قمر کنکشن نه کټ کېږي. نو مکمل چارج د شمس نه کوي نو انخساف په قمر نه راځي.

<u>والسادسة المنتشرة المطلقة</u>: دَ منتشرې مطلقې دَ تعريف حاصل دا دے چه ثبوت دَ محمول موضوع لره يا نفي دَ محمول موضوع لره ضروري وي په وقت غير معين کښې لکه کل حيوان متنفس بالضرورة وقتاً مّا. په دې قضيه کښې دَ حيوان دَ پاره تنفس (ساه اخستل) ثابت کړي دي په وقت غير معين کښې ځکه دَ انسان ساه اخستل په يو وقت معين پورې خاص نه ده. بلکه بلا تعين هر وخت ساه اخلي.

او دَسالبه دَ پاره مثال لکه لا شئ من الحجر بِمُتَنَفِّس وقتًا مَّا په دې مثال کښې منتشره ورته هم ځکه وايي چه محمول ثبوت يا نفي موضوع نه هر وقت کيدے شي.

<u>والسابعة المطلقة العامة</u>: دَ مطلقه عامه تعريف حاصل دا دے چه په دې کښې محمول موضوع لپاره ثابت شوے وي يا نفي شوي وي دَ دريو زمانو نه په يوه زمانه کښې.

دَ موجبه دَ پاره مثال لکه کل انسان ضاحك بالفعل يعني دريو زمانو نه په يو زمانه کښې ثبوت دَ ضحك انسان دَ پاره ضروري دے سالبه دَ پاره مثال لا شئ من الانسان بضاحك بالفعل سلب دَ ضحك دَ انسان نه په دريو زمانو نه په يوه زمانه کښې ضروري دے.

<u>والثامنة الممکنة العامة</u>: ممکنه عامه تعريف دا دے چه ممکنه عامه دېته وايي چه په هغې کښې جانب مخالف نه ضرورة سلب شوے وي يعني که قضيه موجبه وي نو

جانب مخالف یعنې سالبه به ضرور نه وي او که قضیه سالبه وي نو جانب مخالف موجبه به ضرور نه وي.

دَ موجبه دَ پاره مثال لکه کل نار حارة باالامکان العام دَ حار جانب مخالف چه عدم حار یعنې یخ والے دے نار د پاره ضروري نه دے.

او دَ سالبه دَ پاره مثال لکه لا شئ من النار ببارد بالامکان العام دَ عدم برودت جانب مخالف چه برودت د ے دَ نار دَ پاره ضروري نه دے.

## فصل فی المرکبات

په موجهاتِ مرکبو کښې شروع کولو نه مخکښې یو څو خبرې ضروري وي.

اوله خبره: مرکبه هم هغه بسیطه ده لېکن آخر کښې لفظ دَ 'لا دوام' یا دَ 'لا ضرورة' به راغلے وي. دَ لا دوام یا لا ضرورة نه وروستو به بله قضیه مونږ اوباسو (ذکر کړو به) نو مرکبه کښې یو قضیه ظاهرًا شوه چه بسیطه ده دوېمه قضیه کنایةً او اشارةً ده.

دوېمه خبره: دَ لا دوام او لا ضرورة نه مخکښې کومه بسیطه چه ذکر ده هغه که موجبه وه. نو دَ لا دوام یا لا ضرورة نه وروسته به کومه قضیه چه مونږ ذکر کړو هغه به سالبه وي او که مخکښې سالبه وه نو وروسته به موجبه ذکر کوو نو مرکبه هغې ته وایې چه هغه جوړه شوي وي دَ ایجاب او سلب دواړو نه.

سوال: دا خو اجتماع دَ نقیضونو ده ځکه ایجاب او سلب خو نه جمع کېږي.

جواب: هغه اجتماع دَ نقیضېنو منع ده چه دواړه صراحةً وي دلته دواړه صراحةً نه دي که یو قضیه صراحةً وي بله به اشارةً وي.

درېمه خبره: دَ لا دوام به دا مطلب وي چه دې مخکښې بسیطه کښې چه کوم نسبت ذکر شوے دے دغه نسبت په اعتبار دَ ذات دَ موضوع سره دائمي نه دے او لا ضرورة دا معنیٰ چه مخکښې قضیه کښی دغه نسبت ضروري نه دے.

څلورمه خبره: دَ لا ضرورة نه وروستو به ممکنه عامّه ذکر کړو (اُباسو به) او دَ لا دوام نه وروستو به مطلقه عامه اُباسو. البته په دواړو قضیو کښې به کلیّت او جزئیت کښې فرق نه وي که لا دوام او لا ضرورة نه مخکښې قضیه کلیه وه نو روسته چه

مونږ کومه قضیه اُوباسو هغه به هم کلیه وي او که جزئیه وه نو مونږ چه کومه قضیه اوباسو هغه به هم جزئیه وي.

فائده: کښې اوله خبره دا زده کړه چه مرکبه دَ ایجاب او سلب نه جوړه شوه نو دېته به موجبه نوم وایو او که سالبه نو مصنف ؒ په دې عبارة سره جواب اوکړو.

والاعتبار فی تسمیتها: حاصل یې دا دے چه اول جزء چه هغه بسیطه ده اعتبار هغې لره د که هغه موجبه وه نو ټوله به موجبه وي او که هغه سالبه وي نو ټوله مرکبه به سالبه وي ځکه هغه مقدّمه ده.

"والتقدیم من اسباب الترجیح" بله وجه دا ده چه هغه صراحةً ذکر دے. دوېمه خبره دا زده کړه چه ټول موجهات مرکبه دَ دؤو قضیو نه جوړې دي یوه قضیه صراحةً ده دوېمه اشارةً ده لېکن ممکنه خاصه دَ الفاظ په اعتبار سره دا یوه قضیه ده ظاهراً دوه قضیې نه دي لکه کل انسان ضاحك بالامکان الخاص دا مرکبه ده او یوه قضیه ده لېکن حقیقت کښې دا هم دوه قضیو نه مرکبه ده نو دا مذکوره مثال به داسې ادا کوي کل انسان ضاحك بالامکان العام ولا شئ من الانسان بضاحك بالامکان العام نو ممکنه خاصه ده دوه ممکنه عامو نه جوړېږي.

ومن المرکبات المشروطة الخاصة: مرکبات کښې اوله قضیه مشروطة خاصه ده وهي المشروطة العامة دا دَ بسائطوهغه مشروطه عامه ده چه اخر کښې قید دَ لا دوام داخل شوے دے او لا دوام نه وروستو به مطلقه عامه به ذکر کړو. نو داسې به وایو بالضرورة کل کاتب متحرك الاصابع ما دام کاتبا لا دائمًا ای لا شئ من الکاتب بمتحرك الاصابع بالفعل دا موجبه شوه او سالبه دَ پاره مثال لکه لا شئ من الکاتب بساکن الاصابع ما دام کاتبًا لا دائما اي کل کاتب ساکن الاصابع بالفعل.

ومنها العرفیة الخامسة: دا هغه عرفیه عامه ده کومه چه بسائطو کښې ذکر شوه لېکن قید دَ لا دوام داخل شوے دے نو لا دوام نه وروستو به مطلقه عامه ذکر کؤو. دَ دې مثال بعینه دَ مشروطه خاصه پشان دے صرف اول کښې دَ بالضرورة په ځائے بالدوام کېده.

ومنها الوجودیة الا ضروریة: دا هم مطلقه عامه ده لېکن لا ضرورة قید ورباندې داخل

شوے وي او لا ضرورة نه وروسته به ممکنه عامه ذکر کړو مثال کل انسان ضاحك بالفعل لا بالضرورة اي لا شئ من الانسان بضاحك بالامكان العام او دَسالبه مثال لا شئ من الانسان بضاحك بالفعل لا بالضرورة اي کل انسان ضاحك بالامكان العام.

ومنها الوجودية دائمة: دا مطلقه عامه ده لا دوام قيد ورباندې داخل شوے دے د ده دؤو مطلقو عامو نه جوړيږي دَ دې مثال بعينه دَ وجوديه لا ضروريه دے صرف دَ بالضرورة په ځائ بالدوام کېده.

ومنها الوقتيه: دا هغه وقتيه مطلقه ده کومه چه بسائطو کښې ذکر شوه. په آخر کښې قيد دَ لا دوام داخل شوے دے دا جوړيږي دَ وقتيه مطلقه نه او مطلقه عامه نه لکه کل قمر منخسف وقت حيلولة الارض بينه وبين الشمس لا دائما اي لا شئ من القمر بمنخسف بالفعل او سالبه دَپاره مثال لکه لا شئ من القمر بمنخسف وقت التربيع لا دائمًا اي کل قمر منخسف بالفعل.

ومنها المنتشرة: دا هغه منتشره مطلقه عامه ده چه په هغې لا دوام داخل شوے وي دا دَ منتشره مطلقه او مطلقه عامه نه جوړيږي مثال کل انسان متنفس في وقت مّا لا دائمًا اي لا شئ من الانسان بمتنفّس بالفعل او دَ سالبه دَ پاره مثال لکه لا شئ من الانسان بمتنفّس فی وقت مَّالا دائما اي کل انسان متنفس بالفعل.

ومنها الممكنة الخاصة: دا هغه قضيه ده چه دَ نفي دَ ضرورة شوے وي جانب دَ وجود او عدم دواړو نه يعني دې کښې نه ايجاب ضروري وي او نه سلب دا ده دوه ممکنه عامه نه جوړيږي لکه کل انسان کاتب بالامكان الخاص يعني انسان دَ پاره نه کتابت ثبوت ضروري وي او نه کتابت عدم ضروري دے او سالبه دَ پاره مثال لکه لا شئ من الانسان بکاتب بالامكان الخاص په حقيقت کښې دا ممکنه خاصه هم دوه ممکنه عامه نه جوړه ده چه کل انسان کاتب بالامكان العام ولا شئ من الانسان بکاتب بالامكان العام.

فصل الدوام اشارة الى مطلقة عامة: مصنفؒ غرض دَ دې فصل نه هم هغه دے کوم چه مونږ تاسو ته په ايډوانس کښې بيان کړے وه چه دَ لا دوام نه وروسته به مطلقه عامه راوستلے کېږي. او دَ لا ضرورة نه به وروستو ممکنه عامه.مثالونه هم

ټول مخکښې تېر شوي وي. مصنفؒ هم دواړو دَ پاره مثالونه ذکر کړی دي اول دَ پاره كل انسان متعجب بالفعل لا دائمًا. الخ سره او دوېم دَ پاره كل حيوان ماش بالفعل لا بالضرورة الخ سره.

## باب الشرطيات

هر كله چه مصنفؒ فارغ شو دَ حمليات او دَ هغې دَ احكام نه نو شروع يې وکړه په شرطيات کښې نو اوس مصنفؒ فرمايي چه دَ شرطيه او دَ متصله او دَ منفصله اجمالي تعريف تاسو ته مخکښې ذکر شوے دے اوس تاسو ته بيا ذکر کوم يعني شرطيه هغه قضيه ده چه هغه مرکبه وي دَ دوو قضيو نه څکه انحلال دَ ترکيب نه وروسته راځي مثال لکه ان كانت الشمس طالعة فالنهار موجود.

دَ شرطيه دَ تعريف نه وروستو مصنفؒ تقسيم دَ شرطيه کوي دَؤو قسمينو ته متَّصله او منفصله. او بيا دَ متَّصلي تقسيم کوي موجبي او سالبي ته لېکن د شرطياتو بحث زده کولو او يادولو د پاره مصنفؒ طالبانو او طالباتو ته دا مدحيه کلام پيش کوي. چه 'اعلم ايُّها الفطين اللَّبيب والذَّكى الاريب' فطين او ذکي دواړه الفاظ مترادفه دي او للبيب او اريب هم قريب المعنىٰ دي نوترجمه يې دا ده چه اے هغه طالبه (او اے هغه طالبي) چه ته ذهين او (ذهينه) او عقلمند ( او عقلمنده) يې او سمجهدار (او سمجهداره) يې نو شرطيه اولاً په دوه قسمه ده متصله او منفصله ، متصله موجبه تعريف مصنفؒ په دې الفاظو سره کوي.

فهى اللتي حكم فيها بثبوت نسبة علىٰ تقدير ثبوت نسبة اخرىٰ فى الايجاب،، متصله موجبه دېته وايې چه حکم کړے شوے وي په ثبوت دَ يو نسبت سره په فرض کولو دَ ثبوت دَ بل نسبت او شاتې کتې تعريف يې دا دے چه که تا يو قضيه اومنله نو بله به هم منې. لکه ان كان زيد انساناً كان حيوانًا نو حيوانيت زيد لپاره هله ثابتېږي چه انسانيت ورلره ثابت شي نو چه ان كا ن زيد انسانا قضيه اومنله نو كان حيوانًا به هم منې او دَ متصله سالبه تعريف مصنفؒ په دې عبارت سره کوي وبنفى نسبة علىٰ تقدير نسبة اخرى فى السلب.

خبردار: کتاب نسخه کښې غلطي ده : صحيح عبارت داسې پکار دے وبنفي نسبةٍ

علیٰ تقدیرِ ثبوت نسبةٍ اخریٰ،، مطلب دا شو چه سالبه دېته وايي چه حکم شوے وي په هغې کښې په نفي دَ يو نسبت په فرض کولو دَ ثبوت دَ بل نسبت سره لکه ليس البتة اذا کان زيدا انسانا کان فرسا يعنې که دا خبره او دا قضيه که ته منې چه زيد انسان دے ،نو بيا به خامخا دا قضيه هم منې چه زيد خَرْ نه دے يا اَسْ نه دے نو دَ شرطيه متصله سالبه تعريف حاصل دا شو چه دا هغه قضيه ده چه په هغې کښې يو نسبت ثبوت فرض کولو باندې دَ بل نسبت نفي شوے وي.

فائده: دا خبره ازده کول پکار دي چه که په قضيه کښې دَ دؤو نسبتونو دَ اتصال حکم شوے وه هغه ته متصله موجبه وايي برابره خبره ده چه اطراف دَ قضيه وجودي وي او که عدمي او که په قضيه کښې حکم شوے وي په نفي دَ اتصال باندې هغې ته متصله سالبه وئيلے کېږي برابره خبره ده چه اطراف يې وجودي وي او که عدمي په دې اعتبار سره دَ موجبه څلور صورتونه جوړېږي.

(۱): چه دَ قضيه دواړه طرفونه وجودي وي لکه دغه مثال مذکور شو.

(۲): چه دَ قضيه دواړه طرفونه عدمی وي لکه اِنْ لَّمْ يَکُنِ الشَّمْسُ طَالِعَةً لَمْ يَکُنِ النَّهَارُ مَوْجُوْدًا په دې مثال کښې اطراف دواړه عدمی دي لېکن اتصال شته دے ځکه په تقدير دَ عدم طلوع شمس سره عدم وجود نهار حکم شوے دے مطلب يې دا دے که شمس طلوع او نه شوه نو وجود دَ نهار به هم نه وي.

(۳): مقدم عدمي وي او تالي وجودي وي او په قضيه کښې اتصال وي لکه ان لم تکن الشمس طالعة کان الليل موجوداً دا هم موجبه ده.

(٤): مقدم وجودي وي او تالي عدمي وي لکه ان کانت الشمس طالعة لم يکن الليل موجودًا په دې مثال کښې هم اتصال شته دے دا هم موجبه ده.

دغه قاعده مذکوره په رڼا کښې څلور صورتونه په متصله سالبه کښې هم جوړېږي.

(۱): چه مقدم تالي دواړه وجودي وي لېکن اتصال نفي شوے وي لکه ليس البتة اذا کان زيد انسانًا کان فرساً.

(۲): مقدم تالي دواړه عدمی وي او اتصال سلب شوے وي لکه ليس البتة اذا لم يکن الشمس طالعة لم يکن الليل موجودًا.

(۳): مقدم عدمي او تالي وجودي وي او اتصال نفى شوے وي لكه ليس البتة كلما لم تكن الشمس طالعة كان الليل موجودًا.

(۴): مقدم وجودي وي او تالي عدمي وي او اتصال نه وي لكه ليس البتة اذا كانت الشمس طالعة لم يكن النهار موجوداً (دا اته واړه قِسمونه ښه ياد كړه ، تذكّر وتفكّر وتشكّر).

ثم المتصلة صنفن: غرض دَ مصنفؒ دَ دې عبارة نه تقسيم دَ متصله كوي دوه قِسمين ته يوه لزوميه دويمه اتفاقيه لزوميه دېته وايي چه مقدم او تالي منځ كښې علاقه وي يعني اتصال دَ څه علاقې دَ وجه نه راغلے او اتفاقيه دېته وايي چه مقدم و تالي دواړه اتفاقًا جمع شوي وي څه علاقه نه وي بيا علاقه په دوه قسمه ده (۱) علاقه دَ عليت، (۲) علاقه دَ تضائف.

كه مقدم او تالي مينځ كښې علاقه دَ عليت وه نو دا علاقه بيا په درې قسمه ده (۱) چه مقدم علت وي تالي دَ پاره لكه ان كانت الشمس طالعة فالنهار موجود دے مثال كښې مقدم علت دَ تالي دَ پاره څكه كه شمس طلوع او نشي بيا وجود دَ نهار نه راځي.

(۲): تالي علت وي مقدم دَ پاره لكه ان كان النهار موجودا فالشمس طالعة دے مثال كښې طلوع الشمس چه دا تالي دَه، علت دے دَ مقدم چه وجود النهار دے.

(۳): مقدم تالي دواړه دَ پاره شئ ثالث علت وي لكه ان كان النهار موجودًا فالعالم مضئ دې مقدم او تالي دواړو دَ پاره الشمس طالعة علت دے او يا به مقدم او تالي مينځ كښې علاقه دَ تضائف وي دَ تضائف تعريف مصنفؒ په دې عبارت سره كړے دے ،،هو ان يكون تعقل احدهما موقوفًا على تعقل الأخر،،.

يعني تضائف دېته وايي چه فهم دَ احدهما موقوف وي فهم دَ اٰخر پورې لكه ابوة، او بنوة، شو يا لكه فوق ، او تحت ، شو يا لكه يمين، شمال شو يا لكه عام، او خاص شو او چه مقدم ، او تالي كښې علاقه دَ تضائف وي لكه ان كان زيد ابا لعمر وكان عمراً ابنه دا ټول مثالونه دَ متصله لزوميه شو او چه مقدم او تالي اتفاقي جمع شوے وي څه علاقه دَ لزوم يا دَ تضائف پكښې نه وي لكه ان كان الانسان ناطقاً فالحمار ناهق.

نو دَ ناطقيت دَ انسان او ناهيقت دَ حمار مينځ كښې دا اتصال اتفاقي دے څه علاقې دَ

وجې نه نه دے بل مثال لکه که زيد ډاکټر وي نو بکر به موچي وي يا لکه که د غواړې ښکري وي نو د خر به ښکري نه وي ، دا اتصال هم اتفاقي دے .

واما المنفصلة: دې عبارت سره غرض دَ مصنف رح تعريف دَ دويم قسم دَ شرطيه کوي چه هغه منفصله ده دَ منفصله تعريف حاصل دا دے چه منفصله هغه شرطيه ده چه په هغې کښې حکم شوے وي په جدائی سره په ما بين دَ دوو قضيو کښې لکه هٰذا العدد اما زوج او فرد دا مثال د منفصلې موجبې شو او منفصله سالبه ديته وائي چه په هغې کښې حکم شوے وي په نفي دَ جدائی سره لکه ليس البتة اما ان يکون هٰذا اسودًا او کاتبا بل مثال لکه دا خبره داسې نه ده چه زيد به يا ډاکټر وي او يا به انجنئير وي يعنې دا جدائي کول په ما بين دَ ډاکټر او انجنيئر کښې صحيح نده بلکه زيد دواړه کيدے شي.

## فصل الشرطية المنفصله علیٰ ثلٰثة اضرب

غرض دَ مصنف رح تقسيم دَ شرطيه منفصله کوي دوه اقسامو ته: (۱) حقيقيه، (۲) مانعة الخلوه، (۳) ما نعة الجمع ، که په قضيه منفصله کښې تنافي او او جدائي په صدق او کذب دواړو کښې وه يعنې مقدم تالي دواړه نه جمع کيدے شو او نه دواړه پورته کيدے شو دېته حقيقيه وايي لکه هٰذا العدد اما زوج او فرد دې مثال کښې مقدم او تالي دواړه جمع کيدے هم نشي چه يو عدد مثلا (څلور) هم زوج شي او هم فرد شي. او دواړه پورته کيدے هم نشي چه يو عدد نه زوج شي او نه فرد بلکه يو به خامخا وي دا مثال دَ منفصله حقيقيه موجبه شو او مثال دَ منفصله حقيقيه سالبه لکه ليس البتة اما ان يکون هٰذا العدد زوجًا او منقسمًا بمتساويين دلته تنافي په صدق او کذب کښې سلب شوېده يعنې داسې کيدے شي چه عدد دې زوج هم نه وي او منقسم بمتساويين دې هم نه وي بلکه فرد دې وي يا لکه ليس البتة اما ان يکون هٰذا الحيوان اسداً او فرسًا نو داسې کيدے شي چه حېوان نه اسد شي او نه فرس بلکه حمار شي او که تنافي او جدائي صرف په صدق کښې وي يعنې مقدم او تالي دواړه جمع کيدے نشي پورته کيدے شي هغې ته بيا منفصله موجبه مانع الجمع وايي لکه هٰذا الشئ اما شجر او حجر دې مثال کښې مقدم او تالي دواړه پورته

کیدے شي چه یو شئ نه شجر شي او نه حجر بلکه قلم شي لېکن دواړه جمع کیدے نه شي چه یو شئ هم شجر شي او هم حجر (ځکه طرفین د دي متنافین دي، د دي نه فرق هم معلوم شو موږ نه نه مابین د متنافینْ او نقیضینْ کښ، چه نقیضین په یو محل کښ جمع کیږي هم نه لکه انسان او لا انسان شو، او متنافیین، په یو محل کښ نه جمع کیږي لیکن د یو محل نه دواړه پورته کیدے شي لکه حجر، او شجر شو") او که په صدق کښې تنافي نفي کړے شي هغې ته بیا منفصله سالبه مانعة الجمع وایې لکه لیس البتة اما ان یکون هٰذا الانسان حیوانا او اسودًا. دې متال کښې حیوان او اسود مینځ کښې جدائي نفي شوېده یعنې یو شے هم حیوان کېدے شي او هم اسود لکه حبشي شو.

او منفصله مانعة الخلو دېته وایې چه مقدم او تالي مېنځ کښې منافات په کذب کښې وي یعنې دواړه پورته کیدے نشي جمع کیدے شي دېته منفصله مانعة الخلوه وایې لکه اما ان یکون زید في البحر او لا یغرق دې مقدم او تالي دواړو ارتفاع نشي کیدے چه زید فی البحر نشي بلکه فی البَر شي او یَغرِق شي ځکه په بَر کښې غرق محال دے. البته مقدم او تالي جمع کیدے شي چه زېد هم فی البحر شي او لا یغرق شي ځکه ہوسکتا ہے زید دې لامبو وهي، یا په کشتئ کې دي وي یا بل څه ټیکنالوجي(Technology) په ذریعه سره فی البحر دی وي او غرق دي هم نه وي او دَ سالبه دَ پاره مثال لکه لیس البتة اما ان یکون هٰذا الشئ شجراً او حجراً یعنې داسې کیدے شي چه یو شي نه شجر شي او نه حجر بلکه ګاډے شي.

<u>فصل المنفصله بأقسامها الثلٰثة قسمان</u>: په دې فصل کښې مصنفرح دَ منفصله درې واړه اقسام چه حقیقیه دَ مانعة الجمع ده او مانعة الخلوده تقسیم یې کوي نورو دوو اقسام ته نو حقیقه هم په دوه قسمه شوه. (۱) عنادیة، (۲) اتفاقیه او مانعة الجمع هم په دوه قسمه شوه عنادیة (۲)اتفاقیه او مانعة الخلوه هم په دوه قسمه شوه (۱) عنایة، (۲) اتفاقیه. نو دا ټول شپږ اقسام شو. عنادیة دېته وایې: چه مقدم او تالي کښې منافات ذاتًا وي لکه هٰذا الشئ اما شجر و اما حجر.

اتفاقیه دېته وایې: چه مقدم او تالي کښې منافات ذاتًا نه وي لکه زېد به یا ډاکټر وي

او يا به مولانا وي دا منافات اتفاقي دے زيد دواړه کيدے شي چه هم ډاکټر وي او هم دې مولانا وي يا لکه فاطمه به ياستاذه وي او يا به ښځه وي نو دا جدائي اتفاقي ده فاطمه دواړه کيدے شي.

فصلِ اعلم انه كما ينقسم الحملية: مصنفؒ په دې فصل کښې دا خبره ذکر کوي چه قضيه حمليه کښې حکم په افرادو باندې وي کلًا يا بعضًا نو دغه حمليه ته بيا شخصيه محصوره مهمله ويلے شي ، او په قضيه شرطيه کښې حکم په تقاديرو باندې وي افراد باندې نه وي. دَ تقاديرو معنیٰ احوال او اوضاع چه حاصل وي مقدم ته هغه حال فرضي ولې نه وي مثلًا كلما كان زيد فرسًا كان صاهلاً. يعني زيد چه په کوم حال يا په کومه زمانه يا په کوم مکان کښې فرس وي نو صاهل به هم وي دلته اګر چه دَ زيد فرس کيدل محال دي او فرضي دي لېکن په تقدير دَ فرسيّت سره صاهليّت به ورلره ثابت وي. نو دَ دې فصل نه دَ مصنفؒ غرض دا دے چه څنګه شخصيه، مهمله، محصوره په حمليه کښې دا اقسام جاري کېدل نو په شرطيه کښې هم جاري کېږي. لېکن په شرطيات کښې قضيه طبعيه نشته ځکه په طبعيه کښې حکم په طبعيت باندې وي او په شرطيه کښې په تقادير حکم وي نو شرطيه کښې صرف درې اقسام جاري کېږي. (۱) شخصيه، (۲) محصوره، (۳) مهمله.

بيان د دغه اقسامو دا دے: چه که شرطيه متصله وي او که منفصله اتصال يا دَ انفصال حکم به په يو خاص زمانه يا خاص مکان يا خاص حالت کښې شوے وه هغه به شرطيه شخصيه وي. مثال دَ شخصيه متصله لکه ان جئتنى اليوم اكرمك دلته اکرام په يو خاص زمانه کښې دے چه اليوم دے نو داشخصيه متصله شو شخصيه خو دَ اليوم دَ وجې نه شوه او متصله ځکه ده چه اتصال دَ اکرام دَ متکلم حالِ مشخص د مخاطب پورې راغلے دے او دَ شخصيه منفصله مثال لکه اما ان تَظْهَرَ اليوم الشمس و اما ان لا تكون مضيئةً دلته حکم دَ انفصال هم په تقدير دَ اليوم سره دے او که حکم اتصالي ياانفصالي په ټولو احوالو او ازمانو کښې وي. نو هغې ته به شرطيه محصوره کليه وئيلے شي لکه كلما كانت الشمس طالعة فالنهار موجود دا مثال دَ شرطيه محصوره موجبه کليه متصله دے مطلب ئې دا دے چه په

کومه زمانه او په کوم حال کښې چه شمس طالع وي نو نهار به موجود وي او دَ منفصله دَ پاره مثال لکه دائما اما ان يکون الشمس طالعة و اما الليل موجود او مثال دَشرطيه محصورې جزئيه متصله لکه قديکون اذا کان الشئ حيوانًا کان انسانا دشرطيه موجبې جزئيه دپاره شعر کښ مثال لکه

قـد يُدرك المـتأنِّي بعضَ حاجـتهٖ وقد يكـون مع المستعجِل الـزلل

او دَ جزئيه منفصله،مثال لکه قد يکون اما ان يکون الشئ حيوانًا واما ان يکون شجراً او شرطيه مهمله هغه شرطيه ده چه هغې کښې بيان دَ تقادير نه وي شوے لکه ان کان زيد مسلما کان مصليا دې قضيه کښې حکم اتصال دَ پاره څه خاص زمانه يا مکان يا حالت نه دے ذکر شوے دوېم مثال دَ شرطيه مهمله په کتاب کښې چه کوم ذکر دےلکه ان کان زيد انسانا کان حيوانًا او منفصلې مهملې د پاره مثال لکه اِمَّا اَنْ يَكُونَ هٰذالعدد زوجًا وَاِمَّا اَنْ يَّكُوْنَ فَرْدًا په دې قضيه کې د حکم انفصالى د پاره څه حال يا زمانه ذکر نه ده نو دا مهمله شوه .

فصل فى ذکر اسوار الشرطيات الخ: په دې فصل کښې مصنف رح ذکر دَ اسوار دَ شرطيات کوې حاصل دَ هغې دا دے موجبه کليه متصله سور متیٰ، مهما، کلّما دے لکه متیٰ مهما کلما کانت الشمس طالعة کان النهار موجودا او دَ منفصله دَ پاره لفظ دَ دائمًا يا ابدًا، لا محاله قديمًا وغيره راځي لکه دائمًا ابداً اما ان يکون هٰذا العدد زوجًا واما ان يکون العدد فردًا.

او سالبه کليه سور متصله او منفصله دواړو کښې ليس البتتة دے متصله مثال ليس البتتة اذا کانت الشمس طالعة کان الليل موجودًا او دَ منفصله مثال لکه ليس البتة اما ان يکون الشمس طالعة واما ان يکون النهار موجود او موجبه جزئيه سورپه متصله او منفصله دواړو کښې قد يکون دے.

مثال دَ متصله لکه قد يکون اذا کانت الشمس طالعة کان النهار موجود. او مثال دَ منفصله لکه قد يکون اما ان يکون الشمس طالعة او يکون الليل موجودًا.

او دَ سالبه جزئيه سور په متصله او منفصله دواړو کښې قد لا يکون راځي مثال د متصله لکه قد لا يکون اذا کانت الشمس طالعة کان الليل موجودًا او مثال دَ منفصله

لکه قد لا یکون اما ان یکون الشمس طالعة واما ان یکون النهار موجوداً.
او دَ سالبه جزئیه دَ پاره یو سور بل هم شته چه هغه دا دے چه دَ موجبه کلیه په سور حرف سلب داخل شي لکه لیس کلماکانت الشمس طالعة کان النهار موجودا دا دَ متصله مثال دے او دَ منفصله دَ پاره مثال لکه لیس دائمًا اما ان یکون الشمس طالعة او لا یکون النهار موجودًا.
او که په شرطیه باندې لَوْ، اِنْ او اِذا داخل شي نو هغه به شرطیه متصله مهمله به وي لکه اذا کان الشئ انسانًا کان حیوانًا او که په قُضیه شرطیه اما یا اَو داخل شي نو هغه به شرطیه منفصله مهمله به وي لکه اما ان یکون هٰذا الشئ حیوانًا او حجرًا.

## فصل طرفا الشرطیه...الخ

په دې فصل کښې مصنفؒ دوه خبرې ذکر کوي.

اوله خبره: دا ده چه قضیه شرطیه چونکه مرکبه ده دَ دؤو قضیو نه بعد الترکیب پکښې حکم نشته او چه کهولاؤ شي دوو قضیو ته بیا به پکښې حکم وي یعنې قضیه شرطیه متصله وي او که منفصله ترکیب نه مخکښې پکښې هم حکم وه او ترکیب نه وروستو چه انحلال یې اوشي دوو قضیو ته بیا پکښې هم حکم راځي لیکن په کوم وقت کښې چه حرف اتصال یا حرف انفصال داخل شي او مرکبه شي بیا پکښې حکم نه وي.

فائده :دا مسئله اصل کښې اختلافی ده یو مذهب د سید زاهد دے دویم مذهب د صاحبِ سلّم (محب الله بهاریؒ) دے مذهب د سید زاهد دا دےچه د شرطي په دواړه طرفینُ کښې حکم دے ځکه هر یو د طرفینو نه مرکب تام دے او مرکب تام مشتمل وي په حکم او مذهب د صاحب سلّم دا دے چه په طرفین د قضیه شرطیه کښې حکم نشته ځو پوری چه دا طرفین وي د شرطئي، ځکه که دي کښې حکم وے نو دی کښې به احتمال د صدق او کذب وو او سکوت به ورباندی هم صحیح وه ،والامر لیس کذالك، ځکه الشمس طالعة مرکب تام دے، احتمال د صدق او کذب هم لري سکوت ورباندی هم صحیح دے لیکن کله چه په دي حرف شرط داخل شو مثلاً ان کانتِ الشمس طالعة ، نو اوس احتمال د صدق او کذب هم نه لري او سکوت

وربانِدی هم صحیح نه دے، نو دا مرکب تام هم نه شو ، **البتّه** په مجموعه قضیه شرطیه کښ حکم شته یا دا اتصال یا دا انفصال یا د سلب د دواړو، مصنف په نیز مختار مذهب د صاحبِ سلّم وو، نو ځکه ئي اوئیل چه لا حکم فیهما،، .

دوېمه خبره:دا ذکر کوي چه قضیه شرطیه طرفین چه مقدم تالي وي په دې کښې شپږ صورتونه جوړېږي.

(۱): مقدم تالی دواړه حملیه وي، (۲) چه قضیه شرطیه مقدم تالی دواړه متصله وی. (۳) قضیه شرطیه مقدم تالی دواړه منفصله وي (٤) مقدم حملیه تالی متصله، (٥) قضیه شرطیه مقدم حملیه وي تالی منفصله وي، (٦) یا مقدم متصله او تالي منفصله

اول احتمال چه قضیه شرطیه مرکبه شوے وي دَ حملیو نه لکه کلما ان کان الشئ انسانا کان حیوانًا دے قضیه کښې مقدم چه کلما کان الشئ انسانًا هم حملیه ده. کان حیوانا تالي هم حملیه ده دوېم احتمال چه مرکبه شوې وي دَ دؤو متصلو نه لکه کلما ان کان الشئ انسانا فهو حیوان فکلما لم یکن الشئ حیوانا لم یکن انسانا دا قضیه شرطیه مرکبه ده دَ دؤو متصلو نه ځکه مقدم چه کلما ان کان الشئ انسانا فهو حیوان، دے او تالي فکلما لم یکن الشئ حیوانا لم یکن انسانا،دے.

او دریم احتمال چه شرطیه مرکبه شوې وي دَ دؤو قضیو منفصلو نه مثال لکه کلما کان دائمًا ان یکون العدد زوجا او فردا فدائمًا اما ان یکون منقسمًا بمتساویین او غیر منقسم نو دا قضیه شرطیه ده دوو منفصلو نه مرکبه ده چه اوله کلما کان دائمًا ان یکون العدد زوجا او فردا ده' او دوېمه منفصله فدائمًا ان یکون منقسما بمتساویین او غیر منقسم ده' او څلورم احتمال چه قضیه شرطیه مرکبه شوې وي دَ یوې حملیې نه او دَ یوې متصلې نه لکه ان کان طلوع الشمس علة لوجود النهار فکلما کانت الشمس طالعة فالنهار موجود نو دا قضیه شرطیه دَ یوې حملیې نه مرکبه شوې ده چه هغه ان کان طلوع الشمس علة لوجود النهار دے او دَ یوې متصله نه چه هغه فکلما کانت الشمس طالعة فالنهار موجود دے او پینځم احتمال چه قضیه شرطیه مرکبه وي دَ یو حملیه نه او دَ یوې منفصله نه مثال لکه ان کان هٰذا عددًا فهو دائمااما زوج او فرد' نو په دې کښې اوله قضیه چه ان کان هٰذا عدداً دا حملیه ده او

دوېمه قضیه چه فهو زوج او فرد منفصله ده. او شپږم احتمال چه قضیه شرطیه مرکبه شوې وي دَ یوې متصله او دَ یوې منفصله نه لکه ان کان کلما کانت الشمس طالعة فالنهار موجود فدائمًا اما ان یکون الشمس طالعة فالنهار موجود.

نو په دې شرطیه کښې اوله قضیه چه کلما کانت الشمس طالعة ذکر دے فالنهار موجود ده متصله ده او دوېمه قضیه چه اما ان یکون الشمس طالعة واما ان یکون النهار موجودًادا قضیه منفصله ده او دَ دې دواړو قضیو نه یوه قضیه شرطیه مرکبه شوېده. او نور دَ منفصلات مثالونه په حاشیه کښې ذکر دي نو بیا دَ ذکر کولو تکلیف نشو کولے.

فصل و اذا قد فرغنا: په دې فصل کښې مصنفؒ دا خبره ذکر کوي چه دَ قضیې اقسام اوّلیه چه حملیه' او شرطیه دی او اقسام ثانویه چه متصله' منفصله وغېره وه هغې نه مونږ فارغ شو. نو اوس وخت راغلے دے چه مونږ په بعض احکام دَقضیو کښې شروع کړو او بحث دَ قضایاو نه دا موقوف علیه وه دَ پاره د دغه احکامو او دَ قضایا بعض احکام هغه بحث دے دَ تناقض نه او دَ عکس نه مراد دَ عکوس نه عکس مستوي او عکس نقیض دے.

سوال: عکوس صیغه ده جمع دَ اطلاق یې په درېو یا ما فوق دَ درېو نه کېږي حالانکه مصنفؒ عکسونه صرف دوه ذکر کړي دي؟

جواب: مراد دَ جمع نه جمع لغوي ده چه ما فوق الواحد جمع اصطلاحي مراد نه ده.

فصل التناقض هو اختلاف القضیتین بالایجاب والسلب

تناقض صیغه دَ مصدر ده دَ باب تفاعل نه معنیٰ لغوي "یو بل ماتول" او په اصطلاح کښې تناقض تعریف مصنفؒ په دې عبارت سره کړے دے چه هو اختلاف القضیتین بالایجاب والسلب الخ دَ دې تعریف مطلب دا دے چه تناقض دېته وایې چه دوو قضیو کښې اختلاف راشي په دې شان سره که یو موجبه وي نو بله به سالبه وي او که یو صادقه وي نو بله به کاذبه وي او که اوله قضیه کاذبه وي نو دوېمه به صادقه وي لکه زید قائم او زید لیس بقائمٍ دا تعریف مشتمل دے په یو څو قېدونو باندې اول قېد پکښې اختلاف دے دا په منزله دَ جنس دے اختلاف دَ قضیتین ته هم شامل دے او اختلاف دَ مفردین ته هم شامل دے.

قضيتين دا فصل دے نور دَ اختلاف ټول صورتونه يې خارج کړل. صرف اختلاف دَ قضيتين ته شامل دے يعني تناقض هغه ته وايې چه اختلاف به په قضيتين کښې وي که قضيتين کښې اختلاف نه وو بلکې مفردينو کې وو نو ديته تناقض نشي وئيلے. ځکه په قياس کښې چه کوم پکار راځي هغه تناقض دے. چه دَ قضيتين وي دَ مفردين تناقض پکار نه راځي.

بالايجاب او السلب دا بل فصل دے ، دی قيد ذکر کولو سره يې احتراز وکړو دَ هغه اختلاف دَ قضيو نه چه يو حمليه وي بله شرطيه وي يا يو متصله وي بله منفصله وي هغې ته تناقض نشي وئيلے.

لـذاتـه: دا بل فصل دے دې سره يې احتراز اوکړو دَ هغه اختلاف نه چه هغه په واسطه دَ امر مساوي سره وي يا دَ خصوصيت دَ مادې دَ وجې نه اختلاف راغلے وي لکه زيد انسان چه صادق وي نو زيد ليس بناطق به کاذب وي لېکن دا اوله قضيه ده دوېمې قضيئ کذب لپاره لذاته مقتضى نه ده. ځکه انسان او ناطق کښې مساوات دے دَ دې وجې نه دَناطق نفي کولو سره انسان هم نفي کېږي. بيا هم دا خبره ازده کړه چه مذکوره شرائطو دَ وجې نه تناقض نه راځي څو پورې چه اته(۸) شرائط نور دَ تناقض موجود شوي نه وي.

اول شرط: وحدة موضوع دے يعنې دواړو قضيو موضوع به يو وي که موضوع کښې اختلاف وه نو تناقض به نه وي لکه زيد قائم وعمرو ليس بقائم دے مثال کښې تناقض نشته ځکه موضوع جدا جدا ده.

دوېم شرط: وحدة محمول دے يعنې دَ دواړو قضيو محمول به يو وي که محمول جدا وه نو تناقض به نه وي لکه زيد قائم وزيد ليس بقائم.

درېم شرط: وحدة مکان دے يعنې دواړو قضيو مکان به يو وي که مکان بدل شو تناقض به نه وي لکه زيد موجود فى الدار وزيد ليس بموجود فى السوق دلته مکان بدل دے ځکه يو قضيه کښې وايې چه زيد کور کښې دے او په دوېمه قضيه کښې نفي ده زيد ده په سوق کښې.

څلورم شرط: دواړو قضيو زمانه به يوه وي که زمانه يو نه وه نو تناقض به نه وي لکه زيد

نائم فی اللیل وزید لیس بنائم فی النهار دلته زمانه جدا جدا ده اوله قضیه کښې زمانه اللیل دے دَ نوم دَ پاره دوېمه قضیه کښې نفي ده نوم ده زید نه په نهار کښې شوېده.

پینځم شرط: اتحاد دَ شرط دے شرط دَ دواړو قضیو به یو وي که شرط جدا جدا راشي بیا به تناقض نه وي لکه زید متحرك الاصابع بشرط کونه کاتب وزید لیس بمتحرك الاصابع بشرط کونه غیر کاتب نو په اوله قضیه کښې زید دَ پاره تحرك دَ اصابع ثابت دے لېکن په شرط دَ کتابت سره او په دوېمه قضیه کښې نفي دَ تحرك دَ اصابع زید دَ پاره ثابت دے لېکن په شرط دَ عدم کتابت سره.

شپږم شرط: اتحاد به وي په قوة او فعل کښې که قوة او فعل کښې اتحاد نه وه بیا به تناقض نه وي لکه الخمر في الدن مسکر بالقوة او الخمر فی الدَّن[1] لیس بمسکر بالفعل اوله قضیه کښې وايې چه متکئ شراب کښې دَ نشې استعداد شته. دوېمه قضیه کښې وايې چه دَ متکئ شراب کښې بالفعل نشه نشته. نو دې دواړو قضیو کښې تناقض نشته.

اووم شرط: وحدة دَ جزء کل دے که په جزء او کل کښې وحدة نه وه بیا به تناقض نه وي لکه الزنجي اسود کله الزنجي لیس باسود جزئه.

اتم شرط: وحدة دَ نسبت دے دواړو قضیو کښې نسبت به یو وي که نسبت بدل شو تناقض به نه وي مثلا زید اب لبکر، وزید لیس باب لخالدٍ دلته اوله قضیه کښې وايې زید پلار دَ بکر دے دوېمه قضیه کښې وايې زید دَ خالد پلار نه دے نو نسبت بدل شو نو تناقض نشته دا اته شرائط په شعر کښې هم ذکر دي چه دَ یادولو دَ پاره آسان دي. شعر دا دے.

در تناقض هشت وحدة شرط دان وحدة موضوع و محمول مکان
وحدة شرط و اضافت جزء کل قوت و فعل است در آخر زمان

## وبعضهم اکتفوا بوحدتین

په دې عبارة سره مصنف اشاره کوي یو اختلاف ته چه بعض منطقیان په نزد شرائط دَ تناقض صرف دوه دي (۱) وحدت موضوع، (۲) وحدت محمول او دا باقي شرائط

[1] ... غلط ... والصحیح الدَّن بفتح الدال) ✿ احقر حسین علی ✿

داخل دي په دې دواړو کښې.

وبعضهم قنعوا بوحدة النسبة په دې عبارة سره مصنف اشاره کوي يو بل مذهب ته دَ منطقيانو چه دَ هغوي په نزد دَ تناقض دَ پاره صرف يو شرط دے چه وحدة النسبت دے او دا باقي شرائط داخل دي په دې کښې ځکه چه نسبت يو وي نو تونو کښې به اتحاد وي او که نسبت بدل شي نو هر يو شرط بدل شو.

## ولا بد في التناقض في المحصورتين

غرض دَ مصنف رحمه الله دَ دې عبارة نه بيان دَشرط دَ تناقض دے په ما بين دَ محصورتين کښې مخکښې کوم اته (۸)شرائط چه ذکر شو دا شرائط د قضيه شرطي د پاره وو.او چه دواړه قضيې محصورې وي بيا دَ تناقض دَ پاره شرط دا دے چه اختلاف به وي په کَم کښې يعني کلّيت او جزئيّت کښې. که يوه محصوره کليه وي نو بله به جزئيه وي او که يوه جزئيه وي نو بله به کليه وي. او دا ځکه چه تناقض کښې دا شرط دے چه يوه قضيه صادقه وي نو بله به کاذبه وي او چه دواړه کليه شي نو دواړه کاذبه کيدے شي لان الکليتين قد تکذبان. مثلاً کل حيوان انسان ولا شئ من الحيوان بانسان دا دواړه کليه دي او دواړه کاذبه دي والجزئتين قد تصدقن او چه دواړه جزئيه شي نو دواړه صادقه کيدے هم شي لکه بعض الحيوان انسان و بعض الحيوان ليس بانسان دا دواړه جزئيه دي او دواړه صادق دي او دَ دواړو قضيو کاذب کيدل يا صادق کيدل دا په هر هغه مثال کښې کيدے شي چه موضوع عامه وي دَ محمول نه لکه په دې امثلو مذکوره کښې هم دغسې ده چه موضوع عامه ده دَ محمول نه ځکه حيوان عام دے دَ انسان نه.

ولا بد في تناقض القضايا الموجهة: غرض دَ مصنف رحمه الله دَ دې عبارة نه بيان دَ شرط دے لپاره دَ تناقض دَ موجهات حاصل يې دا دے چه په دوه موجهو کښې دَ تناقض دَ پاره لسم شئ شرط دے چه هغه من الاختلاف في الجهة چه جهت کښې به اختلاف وي که يو قضيه کښې دَ جهة ضرورت وي نو په بله کښې به جهة امکان وي او که يو قضيه کښې جهة دوام وي نو په بله کښې جهة دَ فعليت وي نو نقيض دَضرورية

مطلقه به ممکنه عامه وي مثلا لکه کل انسان حیوان بالضرورة دا ضروریة مطلقه ده دَ دې نقیض به ممکنه عامه وي چه بعض الانسان لیس بحیوان بالامکان العام نو په اوله قضیه کښې ضروریة مطلقه دَ حکم شوے دے په ضرورة دَ ثبوت دَ محمول چه حیوان دے دَ پاره دَ موضوع چه انسان دے او په دوېمه قضیه کښې چه ممکنه عامه ده حکم شوے دے په جانب مخالف سره ې ثبوت دَ حیوان انسان دَ پاره ضروري نه دے (او جانب موافق چه سلب دَ حیوان دے دَ انسان نه عام دے که ضروي وي او که غیر ضروري وي) او په ما بین دَ ضرورت او سلب ضرورة کښې تناقض دے ځکه ضرورت په ضروریه مطلقه کښې وه او سلب ضرورة په ممکنه عامه کښې دے . او نقیض دَ دائمه مطلقه مطلقه عامه ده مثال دَ دائمه مطلقه کل فلك متحرك بالدوام دَ دې نقیض به بعض الفلك لیس بمتحرك بالفعل راځي نو اوله قضیه چه دائمه مطلقه ده پکښې حکم شوے دے په دوام دَ ثبوت دَ محمول سره دَ پاره دَ موضوع او دوېمه قضیه چه مطلقه عامه په هغې کښې حکم شوے دے په سلب دَ محمول چه متحرك دے دَفلك نه بالفعل او په ما بین دَ دوام دَ ثبوت دَ محمول کښې او په ما بین دَسلب ده ده محمول دَ موضوع نه بالفعل کښې تناقض دے.

ونقيض المشروطة العامة الحينية الممكنة ونقيض العرفية العامة الحينية المطلقة

او نقیض دَ مشروطه عامه حینیه ممکنه ده او نقیض دَعرفیه عامه حینیه مطلقه ده.

يوه اهمه خبره: دوه قضيئ دَ بسائطو نه داسې دي چه هغه صرف دَ تناقض په وقت کښې ذکر کولے شي او په عامو حالاتو کښې په بسائطو کښې دَ هغې ذکر نه کېږي. يو حينيه ممكنه دَه ، دوېمه حينيه مطلقه ده .

حينيه ممكنه: هغه قضيه ده چه هغې کښې حکم شوے وي په ثبوت دَ محمول موضوع لره يا نفي دَ محمول موضوع نه ممکن وي څو پورې چه ذات دَ موضوع موصوف وي په وصف عنواني سره.

حينيه مطلقه: هغې ته وايې چه محمول ثبوت موضوع دَ پاره يا نفي دَ محمول دَ موضوع نه دَ درېو (۳)زمانو نه يو زمانه کښې وي لېکن څو پورې چه ذات دَ موضوع موصوف وي په وصف عنواني دَ موضوع سره نو نقيض دَ مشروطه عامه حينيه ممكنه

ده لکه کل کاتب متحرك الاصابع بالضرورة ما دام کاتبًا دا مشروطه عامه ده دَ دې نقیض به حینیة ممکنه وي چه هغه دا ده بعض الکاتب لیس بمتحرك الاصابع بالامکان العام حین هو کاتب نو اوله قضیه مشروطه عامه ده حکم پکښې شوے دے چه ثبوت دَ محمول چه متحرك الاصابع دے ضروري دے دَ پاره دَ کاتب تر څو پورې چه ذات دَ موضوع چه افراد دَ کاتب وي متصف دي په وصف عنواني سره چه کتابت دے او دوېمه قضیه حینیه ممکنه ده چه دې کښې حکم شوے دے په ثبوت دَ محمول چه متحرك الاصابع دے ضروري نه دے دَ پاره دَ موضوع چه کاتب دے تر څو پورې چه ذات دَ موضوع موصوف وي په وصف عنواني سره یعنې افراد دَ کاتب موصوف وي په کتابت سره او شك هم نشته چه په ما بین دَ ضرورت دَ ثبوت دَ محمول کښې په اعتبار دَ وصف عنواني سره او په ما بین دَ سلب ضرورت کښې تناقض دے. او نقیض دَ عرفیه عامه حینیة مطلقه دَه . مثال لکه بالداوم کل کاتب متحرك الاصابع ما دام کاتبًا دا عرفیه عامه ده دَ دې نقیض حینیة مطلقه ده چه هغه بعض الکاتب لیس بمتحرك الاصابع بالفعل حین هو کاتب ، نو اوله قضیه عرفیه عامه ده حکم پکښې شوے دے په ثبوت دَ محمول چه متحرك الاصابع دے دَ پاره دَ موضوع چه کاتب دے تر څو پورې چه ذات دَ موضوع چه افراد دَ کاتب دی موصوف وي په وصف عنواني سره او دوېمه قضیه حینیه مطلقه ده چه دی کښی محمول چه متحرک الاصابع بالفعل دے ، سلب دے د موضوع نه چه کاتب دے . تر څو پورې ذات دَ موضوع چه افراد دَ کاتب دي متصف وي په وصف عنواني سره او شك نشته چه په ما بین دَ دوام دَ ثبوت دَ محمول کښې لپاره دَ موضوع په اعتبار دَوصف عنواني سره او په ما بین دَ سلب دَ محمول بالفعل دَ موضوع نه په اعتبار دَ وصف عنواني کښې تناقض دے.

فائده: بسائطو کښې چه دَ کلیت او دَ جزئیت اعتبار وکړے شي نو مجموعه ٢٤ صورتونه جوړېږي چه هغه په لاندینی نقشه کښی ملاحظه کړی.

| نوم دَ قضیه | نقیضِ قضیه | مثال اصل قضیه | مثال نقیض قضیه |
|---|---|---|---|
| ۱:ضروریه مطلقه موجبه کلیه | ممکنه عامه سالبه جزئیه | کل انسان حیوان بالضرورة | بعض الانسان لیس بحیوان بالامکان العام |
| ۲:ضروریه مطلقه موجبه جزئیه | ممکنه عامه سالبه کلیه | بعض الانسان حیوان بالضرورة | لا شی من الانسان بحیوان بالامکان العام |
| ۳:ضروریه مطلقه سالبه کلیه | ممکنه عامه موجبه جزئیه | لا شئ من الانسان بحجر بالضرورة | بعض الانسان حجر بالامکان العام |
| ٤:ضروریه مطلقه سالبه جزئیه | ممکنه عامه موجبه کلیه | بعض الانسان لیس بحجر بالضرورة | کل انسان حجر بالامکان العام |
| ٥:مشروطه عامه موجبه کلیه | حینیه ممکنه سالبه جزئیه | کل کاتب متحرك الاصابع بالضرورة ما دام کاتبًا | بعض الکاتب لیس بمتحرك الاصابع بالامکان العام حین هو کاتب |
| ٦:مشروط عامه موجبه جزئیه | حینیه ممکنه سالبه کلیه | بعض الکاتب متحرك الاصابع بالضرورة ما دام کاتباً | لا شئ من الکاتب بمتحرك الاصابع بالامکان العام حین هو کاتب |
| ۷:مشروط عامه سالبه کلیه | حینیه ممکنه موجبه جزئیه | لا شی من الکاتب ساکن الاصابع بالضرورة ما دام کاتباً | بعض الکاتب ساکن الاصابع بالامکان العام حین هو کاتب |
| ۸:مشروط عامه سالبه جزئیه | حینیه ممکنه موجبه کلیه | بعض الکاتب لیس بساکن الاصابع بالضرورة ما دام کاتباً | کل کاتب ساکن الاصابع بالامکان العام حین هو کاتب |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۹:دائمه مطلقه موجبه کلیه | مطلقه عامه سالبه جزئیه | کل فلك متحرك بالداوم | بعض الفلك لیس بمتحرك بالفعل |
| ۱۰:دائمه مطلقه موجبه جزئیه | مطلقه عامه سالبه کلیه | بعض الفلك متحرك بالدوام | لا شی من الفلك بمتحرك بالفعل |
| ۱۱:دائمه مطلقه سالبه کلیه | مطلقه عامه موجبه جزئیه | لا شئ من الفلك بساكن بالدوام | بعض الفلك ساكن بالفعل |
| ۱۲:دائمه مطلقه سالبه جزئیه | مطلقه عامه موجبه کلیه | بعض الفلك لیس بساكن بالدوام | كل فلك ساكن بالفعل |
| ۱۳:عرفیه عامه موجبه کلیه | حینیه مطلقه سالبه جزئیه | كل كاتب متحرك الاصابع بالدوام ما دام كاتبًا | بعض الكاتب لیس بمتحرك الاصابع بالفعل حین هو كاتب |
| ۱۴:عرفیه عامه موجبه جزئیه | حینیه مطلقه سالبه کلیه | بعض الكاتب متحرك الاصابع بالدوام ما دام كاتبًا | لا شئ من الكاتب بمتحرك الاصابع بالفعل حین هو كاتب |
| ۱۵:عرفیه عامه سالبه کلیه | حینیه مطلقه موجبه جزئیه | لا شئ من الكاتب بساكن الاصابع بالدوام ما دام كاتبًا | بعض الكاتب ساكن الاصابع بالفعل حین هو كاتب |
| ۱۶:عرفیه عامه سالبه جزئیه | حینیه مطلقه موجبه کلیه | بعض الكاتب لیس بساكن الاصابع بالدوام ما دام كاتبًا | كل كاتب ساكن الاصابع بالفعل حین هو كاتب |
| ۱۷:مطلقه عامه موجبه کلیه | دائمه مطلقه سالبه جزئیه | كل انسان متنفس بالفعل | بعض الانسان لیس بمُتنفس بالدوام |
| ۱۸:مطلقه عامه موجبه جزئیه | دائمه مطلقه سالبه کلیه | بعض الانسان متنفس بالفعل | لا شئ من الانسان بمتنفس بالدوام |
| ۱۹:مطلقه عامه | دائمه مطلقه | لا شئ من الانسان | بعض الانسان ضاحك |

| | | | |
|---|---|---|---|
| سالبه کلیه | موجبه جزئیه | بضاحكٍ بالفعل | بالدوام |
| ۲۰:مطلقه عامه سالبه جزئیه | دائمه مطلقه موجبه کلیه | بعض الانسان لیس بضاحك بالفعل | کل انسان ضاحك بالدوام |
| ۲۱:ممکنه عامه موجبه کلیه | ضروریه مطلقه سالبه جزئیه | کل انسان کاتب بالامکان العام | بعض الانسان لیس بکاتب بالضرورة |
| ۲۲:ممکنه عامه موجبه جزئیه | ضرویه مطلقه سالبه کلیه | بعض الانسان کاتب بالامکان العام | لا شئ من الانسان بکاتب بالضرورة |
| ۲۳:ممکنه عامه سالبه کلیه | ضروریه مطلقه موجبه جزئیه | لا شئ من الانسان لکاتب بالامکان العام | بعض الانسان کاتب بالضرورة |
| ۲٤:ممکنه عامه سالبه جزئیه | ضروریه مطلقه موجبه کلیه | بعض الانسان لیس بکاتب بالامکان العام | کل انسان کاتب بالضرورة |

ونقیض المرکبات منها مفهوم مردودٌ بین نقیضی بسائطها: په دې عبارة سره مصنف رح دَ مرکبات موجهات نقیض طرفته اشاره کوي دَ قضایا موجهه مرکبات نقیض ویستلو طریقه دا ده چه دَ مرکبه موجهه ده دواړو جزئین نقیض به اُباسي او بیا دغه دواړه نقیضینو نه قضیه شرطیه مانعة الخلوه جوړه کړی په دې شان سره چه په اَول کښې به اِمّا ذکر کړي او په درمیان کښې به (اَوْ) ذکر کړي هم دغه مطلب دے دَ دې عبارة چه مفهوم مردد بین نقیضی بسائطها.

مثلاً په موجهه مرکبات کښې مونږ دَ مشروطه خاصه نقیض اُباسو مثلا مشروطه خاصه دا ده بالضرورة کل کاتب متحرك الاصابع ما دام کاتبا لا دائمًا دا مشروطه عامه ده اولا دائمًا نه روسته به مطلقه عامه سالبه کلیه اوباسو. چه لاشئ من الکاتب بمتحرك الاصابع بالفعل (دا دواړه قضیې مشروطه خاصه شوه) دې

مشروطه خاصه نقیض طریقه دا ده چه اول به دَ دواړو جزئین نقیض اُوباسو دا اول جزء نقیض حینیة ممکنه سالبه جزئیه ده چه بعض الکاتب لیس بمتحرك الاصابع بالامکان العام حین هو کاتب او دَ دوېم جزء نقیض دائمه مطلقه موجبه جزئیه ده چه بعض الکاتب متحرك الاصابع دائمًا اوس دَ دغه دواړو قضیو نه به شرطیه منفصله مانعة الخلوة جوړه کړه. په اول کښې به اِمَّا ذکر کړو. او په درمیان کښې به 'اَوْ' ذکر کړو. هغه دا ده.

اما بعض الکاتب لیس بمتحرك الاصابع بالامکان العام حین هو کاتب او بعض الکاتب متحرك الاصابع دائما. دا دَ مشروطه خاصه موجبه کلیه چه بالضرورة کل کاتب متحرك الاصابع لا دائمًا نقیض شو.

سوال: دا خو دَ یو موجهه مرکبه مثال شو دَ نورو مرکبات مثالونه هم ذکر کول پکار دي کنه؟.

جواب: مصنفؒ جواب اوکړو په دې عبارة سره والتفصیل یطلب من مطوّلات الفنّ. چه دَ مزید تفصیل دَ پاره غټو کتابونو دَ منطق ته لاس واچوه. دلته په دې صبر اوکړه.

فصل ویشترط فی اخذ نقائض الشرطیات: هر کله چه مصنفؒ فارغ شو دَ نقیض دَ حملیات نه نو شروع یې کړه په بیان دَ نقیض دَ شرطیاتو کښې. دَ شرطیه دَ نقیض دَ پاره دري شرائط دی.

(۱): اتحاد فی الجنس یعني دواړو قضیو جنس به یو وي دَ مراد دَ جنس نه متصله او منفصله دي. یعني که اصل قضیه متصله وه نو نقیض به هم متصله وي او که اصل قضیه منفصله وه نو نقیض به هم منفصله وي.

(۲): دوېم شرط اتحاد فی النوع (اتحاد فی النوع نه مراد اتفاق دے په عناد، اتفاق او لزوم کښې) یعني که اصل قضیه عنادیه یا اتفاقیه یا لزومیه وه نو نقیض به هم عنادیه اتفاقیه یا لزومیه وي.

(۳): درېم شرط دا دے اختلاف فی الکیف یعني که اصل قضیه موجبه وه نو نقیض به سالبه وي که اصل قضیه سالبه وه نو نقیض به یې موجبه وي نو نقیض دَ متصله لزومیه موجبه سالبه متصله لزومیه ده.

مثال: لکه دائما کلما کان اَ، ب -فج-د نو دا قضيه متصله لزوميه موجبه ده معنیٰ يې دا ده دائما کلما کانت الشمس طالعة فالنهار موجود نو دا دواړه قضيې متفق دي په جنس او نوع کښې او مختلف دي په کېف کښې.

او مثال دَ منفصله عنادية موجبه لکه دائمًا اما ان يكون العددُ زوجاً او فردًا نو نقيض دَدې سالبه منفصله عنادية ده چه ليس دائما اما ان يكون هٰذا العدد زوجاً او فردًا او شك هم نشته چه دا دواړه قضيې متفق دي په جنس او نوع کښې او مختلف دي په کېف کښې.

## فصل العكس المستوي

هر کله چه فارغ شو مصنفؒ دَ بحث دَ تناقض نه نو شروع يې اوکړه په بيان دَ عکس کښې نو اول عکس مستوي ذکر کوي بيا عکس نقيض ذکر کوي. او عکس مستوي مقدم کړو په عکس نقيض ځکه عکس مستوي په نسبت دَ عکس نقيض آسان دے ځکه عکس مستوي کښې صرف دَ قضيه طرفين بدلول وي او په عکس نقيض کښې دَ طرفين نقيض کښې تبديلي وي دوېم نوم دَ ده عکس مستقيم دے ځکه دې په نسبت دَ عکس نقيض سيدها ساده دے لغوی معنیٰ ده عکس بدلول او په اصطلاح کښې عکس مستوي دېته وايي چه دَ قضيئ طرفين يعنې موضوع محمول داسې بدل شي چه موضوع دَ محمول ځايے ته يوسي او محمول دَ موضوع ځايې لهٔ سره دَ بقاء دَ صدق او کېف نهٔ يعنې که اصل قضيه صادقه وه نو عکس به هم صادق وي او که اصل قضيه موجبه وي نو عکس به هم موجبه وي او که اصل قضيه سالبه وي نو عکس به هم سالبه وي.

سوال: داسې وئېل هم پکار دي کنه که اصل قضيه کاذبه وي نو عکس به هم کاذب وي لکه بعض شارحينو دغسې ليکل دي.

جواب: دا خبره صحيح نه ده چه که اصل قضيه کاذبه وي نو عکس به هم کاذب وي دَ دې وجې نه مصنفؒ دا قيد ذکر نه کړو ګوره کنه مثلًا كل حيوان انسان قضيه کاذبه ده لېکن دَ دې عکس صحيح دے چه بعض الانسان حيوان دَ دې وجه دا ده چه قضيه ملزوم ده او عکس ورسره لازم دے او صدق دَ ملزوم مستلزم دے صدق

دَ لازم لره لېکن انتفاء دَ ملزوم مستلزم نه ده انتفا دَ لازم لره ځکه لازم کله ده ملزوم نه بغیر هم موجود کیدے شي حاصل دَ تعریف دَعکس مستوي دا شو چه جزء اول دَ قضیه ثاني کړې او جزءثاني اول کړې مع بقاء الصدق والکیف.

فالسالبة الکلیة: غرض دَ مصنف رح بیان دَ عکس دَ محصورات دے نو عکس دَ سالبه کلیه سالبه کلیه راځي مثلًا لا شئ من الانسان بحجر دَ دې عکس لا شئ من الحجر بانسان راځی : د عکس مستوی تمام شرائط په دی کښی شته دے بدلیل الخلف یعنې دَ سالبه کلیه عکس سالبه کلیه راځی دا خبره اومنه! که نه منې؟ نو خلافِ مفروض به راشي دلیل خلف وئیلے شي مدعیٰ ثابتول په بطلان دَ نقیض دَ مدعیٰ سره یعنې که ته سالبه کلیه عکس سالبه کلیه نه منئ او خامخا سرزوری کوے نو بیا به ده دې نقیض مني چه موجبه جزئیه ده چه بعض الحجر انسان (لان العکس لازم) اوس به مونګ دا موجبه جزئیه صغری کړو او اصل قضیه به کبریٰ کړو نو نتیجه به محال راځی مثلاً بعض الحجر انسان ولاشئ من الانسان بحجر.

(نو نتیجه چونکه ده اخس ارذل تابع وی نو په موجبه او سالبه کښې اخس سالبه ده او په کلیه او جزئیه کښې اخس جزئیه ده نو سالبه کلیه نه به سلب راواخلو او ده موجبه جزئیه نه به جزئیت راواخلو. نو نتیجه به د سالبې سالبه جزئیه راشي). نو نتیجه به بعض الحجر لیس بحجر راشی او دا محال ده ځکه دې کښې سلب ده شئ ده خپل ځان نه راځی او دا محال لازم شویدے ده نقیض ده عکس نه چه بعض الحجر انسان دے نو چه نقیض ده عکس محال شونو عکس حق شو چه لاشئ من الحجر بانسان. (نو دامحال د خصم د 'سرزورئ' نه راغلو) چه سالبه کلیه عکس سالبه کلیه نه منله پس ده غوئمي نه ئی او منله خو هغه مزه ئې اوس چرته ده؟)

## والسالبة الجزئیة لاتنعکس لزومًا:

ده دې عبارة نه غرض ده مصنف بیان ده عکس ده سالبه جزئیه دے حاصل ئے دادے چه ده سالبه جزئیه عکس نه راځی دلیل ئے دادے.

## لجواز عموم الموضوع فی الحملیة والمقدم فی الشرطیة:

ځکه کیدے شی چه قضیه حملیه کښې موضوع ده محمول نه عام وی او په

قضیه شرطیه کښې مقدم ده تالی نه عام وی او عکس ئې ځکه نه راځی که اصل قضیه صادقه وی نو عکس ئې صادق نه دے مثلاً ګوره بعض الحیوان لیس بانسان داسالبه جزئیه ده صادقه ده او ده دې عکس چه بعض الانسان لیس بحیوان کاذبه ده دغه سی شرطیه قد لایکون اذا کان الشئ حیواناً کان انساناً صادقه ده ځکه ده دې معنیٰ داده چه کله داسی نه کیګی چه یوشی حیوان وی هغه دې انسان وي لیکن ده دې عکس کاذب دے چه هغه قد لایکون اذا کان الشئ انساناً کان حیواناً. او که عکس ئی سالبه کلیه راولی نو هغه هم کاذب ده چه لیس البتته اذا کان الشئ انساناً کان حیوانا .

والموجبه الکلیة تنعکس الیٰ موجبه جزئیة:

غرض د مصنف د دې عبارة نه بیان د عکس د موجبه کلیه دے چه موجبه کلیه عکس موجبه جزئیه راځی مثلاً کل انسان حیوان چه موجبه کلیه ده د دے عکس به بعض الحیوان انسان راځي.

ولا تنعکس موجبة کلیة:

غرض د مصنف د دې عبارة نه دفع د سوال ده حاصل ئې دادے چه موجبه کلیه عکس موجبه کلیه ولې نه راځی مصنف په دے عبارة سره جواب کوی چه حاصل ئې دادے چه د موجبة کلیه عکس موجبه کلیه ځکه نه راځی چه ہو سکتا ہے چه محمول په قضیه حملیه کښې یا تالی به په قضیه شرطیه کښې عام وی د موضوع او د مقدم نه بیا نتیجه کاذبه راځی مثلاً د کل انسان حیوان عکس که موجبه کلیه راشي نو هغه به کل حیوان انسان راځي او په دے خَرْ هم پوهیګي چه دا قضیه کاذبه ده ځکه هر حیوان کښې خَر هم داخل دے او هغه وائی څه خو انسان نه یمه نو کل حیوانٍ انسانٌ څنګه صحیح کیګی؟

وهٰهُنَا شكٌّ: غرض د مصنف دې عبارة نه یو اعتراض نقل کوی په دے مذکوره دعویٰ باندے او بیا به ده دغې نه دوه جوابونه اوکړی حاصل د سوال دا دے چه ته وائی عکس ده موجبه کلیه موجبه جزئیه راځی دا څه نه منم ځکه څه به تا ته یو مثال اوښائم هلته عکس ده موجبه کلیه موجبه جزئیه به کاذبه راځی مثلاً کل شیخ

کان شابا (هر بوډا ځوان وو) دا موجبه کلیه ده او سو (۱۰۰) فیصد صحیح ده لیکن ده دې عکس موجبه جزئیه صحیح نه راځی چه بَعضُ الشَباب کان شیخا (بعض ځوان بوډا وو) دا صحیح نه ده.

واجیب: سره مصنف اول جواب کوی حاصل ئے دادے چه تا محمول صرف (شاباً) نقل کړے دے کَانَ هم د شابا سره نقل کول پکار دی بیا عکس صحیح راځی تقدیر به داسی شی چه بَعضُ مَن کَانَ شَابًّا شَیخٌ (بعض هغه خلق چه ځوانان وو اوس بوډاګان دی) دا عکس بالکل صحیح دے.

وقد یجاب: سره مصنف دویم جواب کوی حاصل ئے دادے مونګ کان په معنیٰ د یکون سره اخلو یعنې نسبت د ماضی په مستقبل باندے بدلوو. ځکه نسبت باقی ساتل په عکس کښې ضروری نه دی نو اوس به عکس داسے شی بعض الشباب یکون شیخًا. معنیٰ ئی بالکل صحیح ده.

بعض علماء دریم جواب هم کړیدے چه حاصل ئے دادے کل الشیخ کان شاباً. وقتیه مطلقه ده (ځکه معنیٰ ئے داده هر بوډا یو معین وقت کښې ځوان وه) ده دې عکس به مطلقه عامه راځی چه بعض الشباب کان شیخا با الفعل، بعض ځوانان دریو (۳) زمانو نه په یو زمانه کښې بوډا ګان دي. اوس معنیٰ صحیح ده.

## والموجبة الجزئية تنعكس الى موجبة جزئية:

غرض ده مصنف ده دې عبارة نه بیان ده عکس مستوی دے موجبه جزئیه دے حاصل ئے دادے چه ده موجبه جزئیه عکس موجبه جزئیه راځی مثلا بعض الحیوان انسان دا موجبه جزئیه ده ده دې عکس بعض الانسان حیوان راځی.

## وقد یورد علیٰ انعکاس الموجبة الجزئية:

غرض ده مصنف ده دې عبارة نه یو اعتراض نقل کوی په عکس ده موجبه جزئیه باندے او بیا به ده هغه جواب اوکړی حاصل ده اعتراض دادے چه ځه دا خبره نه منم چه عکس ده موجبه جزئیه موجبه جزئیه راځی. ځکه ځه به تاته مثال اوښائم چه هلته ده موجبه جزئیه عکس موجبه جزئیه که اوباسی نو معنیٰ نه صحیح کیږي. مثلا (بعض الوتد فی الحائط) دا موجبه جزئیه ده او صحیح ده لیکن د دی

عکس ستا د قاعدي مطابق بعض الحائط فی الوتد(څه دیوال په میخ کښ دے) راځي حالانکه دا صحیح ندے ځکه میخ په دیوال کښ وی لیکن دیوال په میخ کښ مونږ تر اُوسه پوری نه دے لیدلے.

والجواب: سره مصنف ده دغه اعتراض مذکور نه جواب کوی حاصل ده جواب دادے چه معترض صاحبه تاسو نه په عکس ویستلو کښ غلطی راغلے ده ځکه محمول فی الحائط مجموعه دے او تاسو صرف حائطؔ رانقل کړیدے او هغه نه موضوع جوړه کړیده.

براه کرم! تاسو جار او مجرور دواړه رانقل کړئ په ځائے د موضوع نو انشاء الله په عکس کښ به هیڅ پریشاني نه وی او چه ټول فی الحائط موضوع کړی نو تقدیر به داسی شی چه بعض ما فی الحائط وتدٌ او دا عکس بالکل صحیح دے.

وباقی مباحث العکوس: ده دي عبارة نه غرض ده مصنف دادے چه مصنف عذر پیش کوی چه د موجهات او شرطیات عکوس د منطق په اعلیٰ کتابونو کښ اوګوره هلته به ستاسو تشفّی اوشی او ځما دا کتاب چونکه مختصر رساله ده، د دومره تفصیل ګنجائش نه لريَ لهذا تاسو خفه نشئ لیکن څه (حسین علی حفظه الله) دا وائم چه د شرطیات عکوس مختصراً مخکښ تیر شویدی چه په هغے نور هم قیاس کولے شی. او د بعض موجهات مختصراً عکوس دلته ذکر کوم چه د رهنمائی دپاره دا کافی دی په دے زړګے صبر کړه. نو د ضروریه دائمه، مشروطه عامه، عرفیه عامه، وغیره عکس حینیة مطلقه راځی. مثلا کل انسان حیوان بالضرورة او بالدّوام او ما دام انساناً د دې عکس بعض الانسان حیوان با الفعل حین هو حیوان.

دغه رنګه وقتیه، منتشره، وجودیه لا ضروریة، وجودیه لا دائمه، مطلقه عامه وغیره قضایا عکس مطلقه عامه راځی. لکه کل قمر منخسف با الضرورة وقت حیلولة الارض وقتا مّا لا دائما او با الفعل لا با الضرورة او لا دائماً.

د دې عکس بعض المنخسف قمر با الفعل (وقس علیٰ هٰذا) او په سوالبُ کښ د دائمتین عکس دائمه راځی مثلا لا شئ من الانسان بحجر با الضرورة او باالدوام عکس لا شئ من الحجر باانسان باالدوام راځی. دارنګه د مشروطه عامه عرفیه عامه سالبه ، عکس عرفیه عامه راځی مثلا. لا شئ من الکاتب بساکن الاصابع با

الصرورة او باالدوام مادام کاتبا عکس لاشئ من ساکن الاصابع بکاتب دائما مادام کاتبا راحی. والله اعلم وعلمه اتم.

## فصل عکس النقیض

هر کله چه مصنف فارغ شو د بیان د عکس مستوی نه نو اوس ئے شروع وکړه په بیان د عکس نقیض کښې. یاد ساتل پکار دی چه عکس نقیض دوه دی یو عکس نقیض د متقدمینو دے او دویم عکس نقیض د متأخرین دے. د متقدمینو په نزد د عکس نقیض تعریف مصنف په دے عبارة سره کوی.

هو جعل الخ حاصل ئے دادے چه د موضوع نقیض به اُباسے ده محمول په ځائے به ئی کیدے او د محمول نقیض به د موضوع په ځائے کیدے یعنی نقیض د موضوع به محمول کړے او نقیض ده محمول به موضوع کړے سره د بقاء د صدق او کیف نه یعنی که اصل قضیه صادقه وی نو نقیض به هم صادق وی او که اصل قضیه موجبه وی نو نقیض به ئی هم موجبه وی. مثلا کل انسان حیوان د انسان نقیض لا انسان دے او د حیوان نقیض لا حیوان دے او دا قضیه موجبه کلیه ده.

نو دَدی نقیض به کل لا حیوان لا انسان راځی او اصل قضیه صادقه ده نو نقیض ئی هم صادق دے.

او دَ متاخرینُ په نزد عکس نقیض تعریف دادے : چه نقیض د محمول به دَ موضوع په ځائے کیدی او عین موضوع به دَ محمول په ځائے کیدی سره دَ بقاء دَ صدق نه او بغیر دَ اتفاق نه په کیف کښے یعنی که اصل قضیه موجبه وی نو نقیض به سالبه وی.

متاخرینُ په نزد د کل انسان حیوان نقیض به داسی جوړ وو. چه حیوان نه به لا حیوان واخلو او موضوع به ئے کړو. او عین انسان به محمول کړو. او قضیه به سالبه کړو یعنې لا شئ من الاحیوان بانسان اصل هم صادق دے او نقیض هم صادق دے.

چونکه د متأخرینُ په مذهب باندے به عکس نقیض کښ جاخه ډیره ده د دې وجه نه په علومُو او فنونُو کښ شائع او مستعمل نه دے او د متقدمینُ عکس نقیض مارکیټ اووئلیو(value) ډیره ده د دې وجه نه به راتلونکو کرخو کښ بحث د عکس نقیض د متقدمینو نه به کوؤ.

تنعكس الموجبة الكلية.

اصل کښې عکس نقيض ده عکس مستوی عکس دے (ځکه عکس مستوی کښې چه کوم حکم د سوالبو وو عکس نقيض کښې هغه حکم د موجباتو دے) مثلاً هلته د سالبه کليه عکس سالبه کليه راتله او دلته د موجبه کليه عکس موجبه کليه راځي هلته د سالبه جزئيه عکس نه راتلو دلته د موجبه جزءيه عکس نقيض نه راځي هلته د موجبه کليه عکس موجبه جزئيه راتله دلته ده سالبه کليه نقيض سالبه جزئيه راځي هلته د موجبه جزئيه عکس موجبه جزئيه راتله دلته د سالبه جزئيه عکس نقيض سالبه جزئيه راځي. (فَارجِع البَصَرَ كَرَّتَينِ تَجِده هٰكذا) نو د موجبه کليه عکس نقيض موجبه کليه راځي لکه کل انسان حيوان د دې عکس به کل لا حيوان لا انسان وي. (کما مرَّ)

والموجبة الجزئية: د موجبه جزئيه عکس نقيض نه راځي ځکه مثلًا بعض الحيوان لا انسان موجبه جزئيه ده او صادقه ده او د دې عکس نقيض که د قانون مطابق راوباسې نو داسې به راځي. بعض الانسان لا حيوان او دا کاذب دے. ځکه چه داسې انسان چه هغه لا حيوان وی تر اوسه دنيا کښې نه دے موجود شوے.

والسالبه الكلية: د سالبه کليه عکس نقيض سالبه جزئيه راځي مثلا لاشئ من الانسان بفرس سالبه کليه ده صادقه ده د دې عکس نقيض بعض اللا فرس ليس بلا انسان (بعض نه فرس نه انسان نه دے بلکه انسان دے)

ولا نقول: غرض د مصنف د دې عبارة دادے چه د سالبه کليه عکس سالبه کليه نه راځي. چه لاشئ من اللا فرس بلا انسان (يعنی غير فرس غير انسان نه دے) دا سالبه کليه غلطه ده ځکه يو خو په اعتبار د معنی سره ځکه چه د سالبې کلي معنی به داشي چه غير فرس نه غير انسان نشته حالانکه دا غلطه ده ځکه غير فرس نه غير انسان شته چه قلم کتاب وغيره دی ، دويمه وجه دا ده چه د دی نقيض موجبه جزئيه راځي چه بعض اللافرس لا انسان (يعنی بعض نه فرس نه انسان دے) او دا موجبه جزئيه صادقه ده په ديوال باندے او قانون دادے چه نقيض صادق شی نو اصل به کاذب وی دواړه صادق کيدے نشی ځکه بيا اجتماع ده نقضينو راځي نو کوم عکس نقيض چه سالبه کليه وه چه لاشئ من اللافرس بلا انسان دا کاذب شو

او په عکس نقيض کښې خو دا شرط وو. چه عکس او اصل دواړه به متفق وی. په صدق کښې او دلته اصل سالبه کليه چه لا شئ من الانسان بفرس صادقه ده او عکس ئے چه لا شئ من اللا فرس بلا انسان کاذب دے نو ظاهرا معلومه شوه چه لاشئ من اللافرس بلانسان عکس ده لا شئ من الانسان بفرس دپاره نه دے.

والسالبة الجزئية: او د سالبه جزئيه عکس نقيض سالبه جزئيه راځی لکه بعض الحيوان ليس بانسان ده دې عکس نقيض بعض الانسان ليس بلا حيوان (يعنی بعض نه انسان نه حيوان نه دے بلکه حيوان دے) لکه فرس شو.

وعکوس الموجهات: غرض د مصنف د دې عبارة نه عذر پيش کول دی چه د موجهات عکس نقيض مادې رساله کښې بيان نه کړو. ځکه دا مختصر رساله ده خپل حيثيت نه غټ کار ته لاس نشی اچولی لهذا که ستاسو شوق وی نو د منطق غټ کتابونه مطالعه کړئ. انشاء الله تشفی به اوشی.

واذ قد فرغنا: په دے عبارة کښې مصنف دا فرمائی چه هر کله مونګ فارغ شو د بحث د قضايا او د بحث د عکس مستوی نه او عکس نقيض او تناقض نه چه دا موقوف عليه ده دپاره ده حجة وو نو اوس مونګ سره دا خبره لائق ده چه مونګ شروع کړو په مقصد او موقوف کښې چه هغه بحث دے ده حجة.

الحجة علی ثلثة اقسام: حجة په درے قسمه ده.

(۱) قياس (۲) استقراء (۳) تمثيل.

وجه ده حصر داده چه استدلال به خالی نه وی يا به د کلی نه وی په جزئی يا به د جزئی نه وی په کلی يا به د جزئی نه وی په جزئی.

که اول وه نو دا قياس دے او که دويم وه نو دا استقراء ده او که دريم وو نو دا تمثيل دے.

## فصل فی القياس

په دی فصل کښې مصنف تعريف او اقسام د قياس ذکر کوی قياس ئی مقدم کړو په استقراء او تمثيل باندے ځکه قياس يقينی دے او استقراء او تمثيل ظنی دی.

قياس تعريف: وهو قول مؤلف من قضايا الخ.

حاصل د تعريف دادے چه قياس ديته وائی چه هغه ده دوه يا د دريو قضايانه جوړ

شوے وی چه د هغوی منلو سره یو بل قول او قضیه منل هم لازم وی مثلا العالَم متغیرٌ وکل متغیرٍ حادثٌ که دا دوه قضئ اومنلے شی نو دریمه قضیه به هم منی چه فاالعالم حادث.

فائده: د استدلال نه مخکښ فا العالم حادثٌ، ته مطلوب وئیلے شی او د استدلال په وقت کښ دې ته مدعٰی وئیلے شی او استدلال نه بعد ورته نتیجه وئیلے شی. نو مطلوب مدعی او نتیجه دری واړه متحد باالذات او متغائر با الاعتبار دی.

فان کان النتیجة: غرض ده مصنف ده دې عبارة نه تقسیم ده قیاس کوی دوه قسمین ته.

(۱) قیاس اقتراني. (۲) قیاس استثنائي.

قیاس استثنائی هغه ته وائی چه مرکب وی مقدم او تالی نه' او ده مصنف په عبارة سره ده قیاس استثنائی تعریف دادے چه نتیجه یا نقیض ده نتیجه په قیاس کښ مذکور وی. چه نتیجه مذکور وی لکه ان کان زیدٌ انساناً کان حیواناً لکنه انسان فهو حیوان، نو فهو حیوان نتیجه ده او دا په قیاس کښ مذکور ده چه کان حیوانا دے او هو حیوان 'او کان حیوانا یو مطلب دے ځکه هو او کان دواړو کښ ضمیر زید ته راجع دے او چه نقیض د نتیجه مذکور وی لکه ان کان زید حمارًا کان ناهقًا لکنه لیس بنا هقٍ انه لیس بحمار نو انه لیس بحمار نتیجه ده او د دې نتیجه نقیض په قیاس کښ مذکور دے په صغریٰ کښ چه ان کان زیدٌ حمارًا دے.

او قیاس اقترانی دیته وائی چه مرکب وی د موضوع او محمول نه' او د مصنف په نزد قیاس اقترانی دیته وائی چه نتیجه یا نقیض د نتیجه په قیاس کښ مذکور نه وی لکه زید انسان و کل انسان حیوان زید حیوان دلته زیدٌ حیوانٌ دا نتیجه ده او دا په قیاس کښ مذکور نه ده.

## فصل فی القیاس الاقترانی وهو قسمان

غرض د مصنف د دې فصل نه تقسیم د قیاس کوی. دوو قسمینُ ته.

(۱) یو قیاس حملی (۲) او دویم قیاس شرطی.

دویم غرض د مصنف بیان د څه اصطلاحاتو دے ده قیاس اقترانی هغه اصطلاحات دادي.

(۱) قیاس اقترانی چه د کومو قضایاؤ نه جوړ کړے شوے وی هغي ته مقدمات د

قیاس وائی.
(۲) د نتیجه موضوع ته اصغر او د نتیجه محمول ته اکبر وئیلے شي.
(۳) اصغر چه کوم مقدمه کښې موجود وی هغے ته صغریٰ او اکبر چه په کوم مقدمه کښې موجود وی هغے ته کبریٰ وئیلے شی.
(٤) کوم جزء چه صغریٰ او کبریٰ کښې مکرر دے هغه ته حد اوسط وائی.
(۵) حد اوسط کله د صغریٰ خواه کښې وی او کله د کبریٰ خوا کښې وی دې هیئت ته شکل وائی. مثلا خَالِدٌ غَبِیٌّ وَکُلُّ غَبِیٍّ یَرسَبُ فی الاِختِبَارِ، فَخَالِدٌ یَرسَبُ فِی الاِختِبَارِ،، دې مثال کښې خالد غبی او کل غبی یرسب فی الاختبار دا مقدمات د قیاس دی ، او فخالد دا د نتیجې موضوع ده ، ده ته اصغر وئیلے شی او یرسب فی الاختبار دا د نتیجې محمول دے ده ته اکبر وئیلے شی او خالد غبی دا صغریٰ ده ځکه اصغر دې کښې موجود دے او کل غبی یرسب دا کبریٰ ده ځکه اکبر په دې قضیه کښې موجود دے. او غَبِیٌّ دا حد اوسط دے ځکه په صغریٰ او کبریٰ کښې مکرر دے او دا حد اوسط اوله قضیه کښې د اصغر چه خالد دے په خواه کښې دے او په دویمه قضیه کښې چه یرسب دے د اکبر په خواه کښې دے . حد اوسط کله موضوع خواه کښې وی اوکله محمول خواه کښې وی ، دی ناز او انداز ته شکل وائی.
والاشکال اربعة: غرض د مصنف بیان د اشکال اربعه دے. حاصل د هغی دادے چه اشکال څلور دی.

شکل اول دیته وائی چه حد اوسط په صغریٰ کښې محمول او کبریٰ کښې موضوع وی لکه العالم متغیر الخ شو، او شکل ثانی دیته وائی چه حد اوسط په صغریٰ او کبریٰ دواړو کښې محمول وی لکه کل انسان حیوان الخ، او که حد اوسط په صغریٰ او کبریٰ دواړو کښې موضوع وه نو هغی ته شکل ثالث وئیلی شی لکه کل انسان حیوان الخ. او که حد اوسط په صغریٰ کښې موضوع او کبریٰ کښې محمول وو نو هغی ته شکل رابع وئیلی شي. لکه کل انسان حیوان الخ. امثله د ټولو اشکالو په کتاب کښې موجود دي دَ دی وجه نه تفصیل نه طیِّ کشح کیږی.

فصل و اشرف الاشکال

پدی فصل کښې مصنف پنځه خبری ذکر کوي (۱)اوله خبره فضیلت د شکل اول

بيانوى چه شکل اول دپاره بارى تعالىٰ داسى کمال ورکړے چه داسى کمال په بل شکل کښ نشته. چه دَ ده نتيجه بديهى ده ذهن ورته فطرتاً سبقت کوى ، سوچ فکر ته ضرورت نه راځى .

(۲)دويم خبره شرائط د شکل اول بيانوى. چه دَ شکل اول دوه شرطه دى. ايجاب الصغرىٰ وکلية الکبرىٰ.

(۳)دريمه خبره هغه صورتونه ذکر کوى چه هغى کښ شکل اول نتيجه ورکوى چه هغه څلور دى.

(٤) څلورمه خبره احتمالات عقليه په هر شکل کښ بيانوى چه احتمالات عقليه په هر شکل کښ (۱٦) جوړيږى ليکن نتيجه ورکونکى صورتونه صرف څلور دى دولس صورتونه ساقط دى چه د هغى تفصيل په کتاب کښ دے.

(٥) پنځمه خبره نتيجه ورکونکى صورتونو دپاره مثالونه پيش کوى.

نقشه صورِ منتجه او غير منتجه شکل اول.

| | صغرىٰ | کبرىٰ | | مثال صغرىٰ | مثال کبرىٰ | نتيجه |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | موجبه کليه | موجبه کليه | منتج | کل انسان حيوان | وکل حيوان جسم | کل انسان جسم |
| ۲ | // | سالبه کليه | // | // | لا شئ من الحيوان بحجر | لا شئ من الانسان بحجر |
| ۳ | موجبه جزئيه | موجبه کليه | // | بعض الحيوان فرس | وکل فرس صهال | بعض الحيوان صهال |
| ٤ | // | سالبه کليه | // | بعض الحيوان ناطق | ولا شئ من الناطق بنا هق | بعض الحيوان ليس بنا هق |
| ٥ | موجبه کليه | موجبه جزئيه | غير منتج | x | x | x |
| ٦ | // | سالبه | // | x | x | x |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | جزئیه | | | | |
| ۷ | موجبه جزئیه | موجبه جزئیه | // | x | x | x |
| ۸ | // | سالبه جزئیه | // | x | x | x |
| ۹ | سالبه کلیه | موجبه کلیه | // | x | x | x |
| ۱۰ | // | موجبه جزئیه | // | x | x | x |
| ۱۱ | // | سالبه کلیه | // | x | x | x |
| ۱۲ | // | سالبه جزئیه | // | x | x | x |
| ۱۳ | سالبه جزئیه | موجبه کلیه | // | x | x | x |
| ۱٤ | // | موجبه جزئیه | // | x | x | x |
| ۱۵ | // | سالبه کلیه | // | x | x | x |
| ۱٦ | // | سالبه جزئیه | // | x | x | x |

تنبیه: غرض د مصنف د انعقادِ دَ تنبیه نه دوه خبری ذکر کول دی . اوله خبره کښې دوه امتیازات د شکل اول ذکر کوی . اول امتیاز د شکل اول چه نتیجه موجبه کلیه راتلل .
(۲) امتیاز دادے چه څلور واړه محصورات د شکل اول په نتیجه کښ راځی دا کمال بل هیڅ شکل ته حاصل نه دے.

دویمه خبره په تنبیه کښ دا ذکر کوی که د شکل اول صغریٰ موجهه وه نو بیا به جهت ده امکان نه وی یعنی صغریٰ به ممکنه عامه یا ممکنه خاصه نه وی بلکه جهت به ده فعلیت وی.

## ويشترط في انتاج الشكل الثاني:

غرض د مصنف د دی عبارت نه بیان د شکل ثانی دے دا خبره یاد ساتل پکار دی چه احتمالات عقلیه هم په شکل ثانی کښ ۱۶ جوړیږی لیکن صورمنتجه پشان د شکل اول څلور دی.

د شکل ثانی د نتیجه دپاره اول شرط اختلاف فی الکیف دے یعنی که صغریٰ موجبه وی نو کبریٰ به سالبه وی او که صغریٰ سالبه وی نوکبریٰ به موجبه وی. دویم شرط په اعتبار دَ کمیت سره کلیت ده کبریٰ شرط دے دا دواړه شرطه ځکه لازمیٰ دی که دَ دواړو شرطونو لحاظ اونه ساتلے شی نو نتیجه به کله موجبه وی او کله به سالبه.

یعنی په یو قیاس کښ چه هغه به صادق وی او نتیجه به ئی کله موجبه وی او کله سالبه او دا اختلاف د نتیجی د عدم انتاج دلیل دے دی دپاره دا دواړه شرطونه لازمی دی. مثلا که صغریٰ او کبریٰ کښ اختلاف فی الکیف لحاظ اونشی او دواړه موجبه شی نو نتیجه به کله موجبه وی او کله سالبه لکه کل انسان حیوان (صغریٰ موجبه) وکل ناطق حیوان (کبریٰ موجبه) دا قیاس باالکل صحیح دے . د د نتیجه به موجبه راځی چه کل انسان ناطق.

دویم مثال ته کوره چه نتیجه سالبه وی مثلا صغریٰ هم هغه پخوانی ده کبریٰ بدل کړه خو موجبه ذکر کړه.

لکه کل انسان حیوان (صغریٰ موجبه) وکل فرس حیوان (کبریٰ موجبه) دلته نتیجه به سالبه راځی یعنی. لا شئ من الانسان بفرس ځکه که نتیجه موجبه راوړی چه کل انسان فرس نو دا به غلطه وی ځکه انسان فرس نه وی نو معلومه شوه که اختلاف فی الکیف شرط نه وی نو بیا به اختلاف راځی په نتیجه کښ دغه سی که ده دویم شرط چه کلیت د کبریٰ دے که ده هغه لحاظ اونشی نو بیا به هم په نتیجه کښ اختلاف راځی مثلا کل انسان ناطق و بعض الصّهال لیس بناطق. نتیجه بعض الانسان لیس بصاهل سالبه راغله. دویم مثال صغریٰ پخپل ځائے اوساته او کبریٰ بدل کړه. مثلا کل انسان ناطق و بعض الحیوان لیس بناطق نو نتیجه به موجبه راځی

یعنی بعض الانسان حیوانٌ او که نتیجه سالبه اُوباسی چه بعض الانسان لیس بحیوانٍ نو داغلطه ده ځکه چه د باری تعالی قدرت دا دے چه انسان بغیر د حیوان نه نشی موجود کیدلے نو دغه دواړو شرطونو لحاظ چه اوکړے شی نو شکل ثانی صور مُنتجه هم څلور دی.

اول صورت دادے چه صغریٰ موجبه کلیه وی او کبریٰ سالبه کلیه وی نتیجه به سالبه کلیه وی لکه کل ج، ب یعنی کل انسان حیوان (صغریٰ) ولاشی من أب یعنی لا شئ من الحجر بحیوان نو نتیجه ئی داده چه لا شئ من الحجر بحیوان سیدها ساده داسی اُوایه کل انسان حیوان ولا شئ من الحجر بحیوان نو نتیجه داده لا شئ من الانسان بحجر اوس دا نتیجه صحیح ده دلیل په دې باندے مصنف ذکر کوی په دے عبارة سره.

والدلیل علی هذاالانتاج: حاصل دادې چه د شکل اول نتیجه بدیهي د هغی ثابت کولو ضرورت نشته. باقی نورو اشکالو نتیجه ظاهره او بدیهی نه وی د دې ثابت کولو د پاره معیار شکل اول دے یعنی شکل ثانی اول صورة نتیجه صحیح ده او که نه؟ دا به مونږ داسې معلوموو. چه مونږ به د کبریٰ عکس مستوی اوباسو بیا به ئې د صغرٰی سره ټچ (touch) کړو نو دا به شکل اول جوړ شی بیا به نتیجه اوباسو که مذکوره نتیجه یعنی سالبه کلیه راغله نو دا نتیجه بیا صحیح ده او که رانغله نو د شکل ثانی دانتیجه بیا صحیح نه ده نو اوس راځه چي دا پړتال اوکړو 'مثلًا صغریٰ کل ج ب او کبریٰ لاشئ من ا، ب نتیجه لاشئ من ج أ 'دا نتیجه ثابت کولو د پاره د کبریٰ به عکس اوباسو هغه لاشئ من ب أ. اوس دا عکس د صغریٰ سره میلاوُ کړه او نتیجه اُباسه. صغریٰ کل ج. ب کبریٰ لاشئ من أ ب. نو دا شکل اول دے ځکه حد اوسط چه (ب) دے محمول فی الصغریٰ او موضوع فی الکبریٰ دے نو نتیجه لاشئ من ج. أ داده شکل اول هم نتیجه ده او دا نتیجه مذکوره د شکل ثانی هم ده نو پته اولګیده چه نتیجه صحیح ده.

الضرب الثاني: دویم صورة د شکل ثانی د صورِ اربعونه چه هغه نتیجه ورکونکی دی هغه دادے چه صغریٰ سالبه کلیه او کبریٰ موجبه کلیه نتیجه به سالبه کلیه وی

مثال لکه لاشئ من ج، ب (یعنی لا شئ من الحجر بحیوان) (صغری) وکل أ ب (یعنی کل انسان حیوان) نتیجه لاشئ من ج ، أ یعنی لاشئ من الحجر بحیوان.

والدلیل علی الانتاج عکس الصغرٰی : غرض د مصنف د دی عبارت نه دا ثابتول غواړی چه د ضرب ثانی چه کومه نتیجه سالبه کلیه راغلی ده دا صحیح ده که څوک ئي نه منی نو مونږ سره دلیل شته دے چه د هغه دلیل نه هم دا ثابتیږی چه دا نتیجه صحیح ده . دلیل حاصل دا دے چه مونږ به څلور کارونه اوکړو : (۱) د صغری به عکس اوباسو (۲) هغه عکس نه به کبرٰی جوړه کړو . (۳) عین کبری نه به صغرٰی جوړه کړو . (٤) کومه نتیجه چه راشی دهغی به عکس اوباسو نو مطلوبه نتیجه به حاصله شی . مثلا لاشئ من الحجر بحیوان وکل انسان حیوان 'لاشئ من الحجر بانسان' صغری عکس کولو نه بعد لا شئ من الحیوان بحجر دا عکس شده صغری ، کبری جوړه کړه او عین کبری صغری کړه لکه کل انسان حیوان ولاشئ من الحیوان بحجر نتیجه : لاشئ من الانسان بحجر اوس د نتیجه عکس کړه نو لا شئ من الحجر بانسان مطلوبه نتیجه راغله .

فائده : په دلیل کښی د کبری عکس جائز نه دے ځکه چه د موجبې کلیې عکس موجبه جزئیه راځی نو کبری به موجبه جزئیه شی حالانکه شکل اول کښی کلیت د کبری شرط دے .

الضرب الثالث: دریم صورة ده شکل ثانی هغه دادے چه صغریٰ موجبه جزئیه وی او کبریٰ سالبه کلیه وی نتیجه به سالبه جزئیه راځی. ده هغه مثالونه کتاب کښې مذکور دی.

الضرب الرابع: څلورم صورة ده شکل ثانی چه صغری سالبه جزئیه وی او کبریٰ موجبه کلیه وی نو نتیجه سالبه جزئیه وی مثال کتاب کښې مذکور دے.

نقشه شکل ثانی

| | صغریٰ | کبریٰ | منتجه و غیر منتجه | مثال صغریٰ | مثال کبریٰ | نتیجه |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | موجبه کلیه | سالبه کلیه | منتج | کل انسان حیوان | لا شئ من الحجر بحیوان | فلا شئ من الانسان بحجر |
| ۲ | موجبه جزئیه | // | // | بعض الحیوان انسان | لاشئ من الفرس بانسان | فبعض الحیوان لیس بفرس |
| ۳ | سالبه کلیه | موجبه کلیه | // | لاشئ من الحجر بحیوان | وکل انسان حیوان | فلا شئ من الحجر بانسان |
| ٤ | سالبه جزئیه | // | // | بعض الحیوان لیس بانسان | وکل ناطق انسان | فبعض الحیوان لیس بناطق. |
| ٥ | موجبه کلیه | // | غیر منتجه | x | x | x |
| ٦ | // | موجبه جزئیه | // | x | x | x |
| ۷ | // | سالبه جزئیه | // | x | x | x |
| ۸ | موجبه جزئیه | موجبه کلیه | // | x | x | x |
| ۹ | // | موجبه جزئیه | // | x | x | x |
| ۱۰ | // | سالبه | // | x | x | x |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۱ | سالبه کليه | موجبه جزئيه | // | x | x | x |
| ۱۲ | // | سالبه کليه | // | x | x | x |
| ۱۳ | // | سالبه جزئيه | // | x | x | x |
| ۱٤ | سالبه جزئيه | موجبه جزئيه | // | x | x | x |
| ۱۵ | // | سالبه کليه | // | x | x | x |
| ۱٦ | // | سالبه جزئيه | // | x | x | x |

## فصل شرط انتاج الشكل الثالث

دې فصل کښې مصنف ده شکل ثالث شرط ذکر کوی چه شکل ثالث کښې دا شرط دے چه صغریٰ به موجبه وی او صغریٰ کبریٰ کښې یوه مقدمه به کلیه وی ده شکل ثالث نتیجه ورکونکی صورتونه شپږ دي.

مثالونه په نقشه کښې کتلے شي.

## نقشه شکل ثالث

| | صغریٰ | کبریٰ | منتجه و غیر منتجه | مثال صغریٰ | مثال کبریٰ | نتیجه |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | موجبه کلیه | موجبه کلیه | منتج | کل انسان حیوان | وکل انسان ناطق | بعض الحیوان ناطق |
| ۲ | // | موجبه جزئیه | // | // | وبعض الانسان کاتب | بعض الحیوان کاتب |
| ۳ | // | سالبه کلیه | // | // | ولاشئ من الانسان بفرس | بعض الحیوان لیس بفرس |
| ٤ | // | سالبه جزئیه | // | // | بعض الانسان لیس بکاتب | بعض الحیوان لیس بکاتب |
| ۵ | موجبه جزئیه | موجبه کلیه | // | بعض الانسان حیوان | کل انسان ناطق | بعض الحیوان ناطق |
| ٦ | // | سالبه کلیه | // | // | لاشئ من الانسان بحجر | بعض الحیوان لیس بحجر |
| ۷ | // | موجبه | غیر | x | x | x |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | جزئیه | منتج | | | |
| ۸ | // | سالبه جزئیه | // | X | X | X |
| ۹ | سالبه کلیه | موجبه کلیه | // | X | X | X |
| ۱۰ | // | موجبه جزئیه | // | X | X | X |
| ۱۱ | // | سالبه کلیه | // | X | X | X |
| ۱۲ | // | سالبه جزئیه | // | X | X | X |
| ۱۳ | سالبه جزئیه | موجبه کلیه | // | X | X | X |
| ۱٤ | // | موجبه جزئیه | // | X | X | X |
| ۱۵ | // | سالبه کلیه | // | X | X | X |
| ۱٦ | // | سالبه جزئیه | // | X | X | X |

## فصل و شرائط الشکل الرابع مع کثرتها الخ

غرض د مصنف د انعقاد د دې فصل نه هغه معذرت کول دی طالبانو ته چه د شکل رابع شرائط او مثالونه ما ندی ذکر کړي په خپل دې کتاب کښ لهذا تاسو خفه نشئ،......اهغې وجه داده چه څما دا کتاب ورکوټے رساله ده او شکل رابع کښ تفصیل ډیر دے د دې مجبوری د وجے نه دومره تفصیل دا نشي برداشت کولے. لهذا که تاسو تفصیل شوق لرئ نو د منطق اعلیٰ کتابونو مطالعه اوکړئ.

دویمه وجه دا نه ذکر کولو دا د چه د شکل رابع صورتونه په نسبت سره شکل اول ثاني، ثالث ته فائده کمه لري. په یو شئ کښې چه فائده کمه وي او تکلیف ډیر ورکوي نو د هغه نه طيِّ كَشَح(ډډه) کول مستحب دی.

ډارنګه مصنف په دی فصل کښې دا خبره هم ذکر کوی چه اشکال اربعه په موجهاتو کښې جاري کولو مثالونه هم ما ذکر نه کړل. امید دے چه تاسو ته به ځما دا اعذار مقبول وی.

فائدة ولعلك علمت: په دی فائده کښې مصنف یوه اهمه نکته ذکر کوی. هغه دا چه نتیجه تابع د اخس ارزل وی. یعنی صغریٰ کبریٰ کښې چه کومه اخسه ارزله وی نتیجه به د هغی تابع وی او اخس ارزل معلومات به داسی کوی چه موجبه او سالبه کښې سالبه ارزله ده او په کلیه او جزئیه کښې جزئیه ارزله ده.

لهذا قیاس چه مرکب شوے د سالبه او موجبه نه نو نتیجه به سالبه راځی او که قیاس مرکب شی د کلیه او جزئیه نه نو نتیجه به جزئیه راځي.

## فصل في الاقترانيات من الشرطيات

غرض ده مصنف ده دې فصل نه بیان ده جاری کولو ده اشکال اربعؤ دے په قیاس اقترانی شرطی کښې، دا خبره تاته معلومه ده چه قیاس اقترانی په دوه قسمه ده. حملی چه مرکب شوے وی ده حملیات نه یعنی صغریٰ کبریٰ دواړه حملیه وی. دویم قسم د اقترانی هغه شرطی دے چه مرکب شوے وی د حملیه او شرطیه نه. یا ده دواړو شرطیونه یعني صغریٰ کبریٰ دواړه شرطیه وی. نو اشکال اربعه په حملیاتو کښې د جاری کولو مثالونه ذکر شو. اوس اشکال اربعه په شرطیات کښې جاری کولو باره کښې مصنف فرمائی چه دا شرطیات قیاس دی په حملیات باندے یعنی په حملیاتو کښې چه کوم شرائط د اشکال اربعه وو او کوم صورتونه وه بعینه هم هغه په شرطیات کښې جاری کیګی. مثلا هلته په شکل اول کښې دا شرط وه چه ایجاب الصغریٰ و کلیۃ الکبریٰ نو په شرطیات کښې به شکل اول کښې هم دغه شرط دے یا مثلا په حملیاتو کښې شکل اول تعریف داوه چه چه حد اوسط په صغریٰ کښې محمول او په کبریٰ کښې موضوع نو په شرطیات کښې به حد اوسط په صغریٰ کښې تالی او په کبریٰ کښې

مقدم وي، صرف ده موضوع محمول په ځائے به مقدم تالي راځي.

دا خبره ياد ساتل پکار دي: چه اشکال اربعه په قياس شرطي کښې جاري کيګي.
نو د هغي پنځه صورتونه دي.

(۱) صغرى كبرىٰ دواړه متصله وي.

(۲) دواړه منفصله وي.

(۳) يو متصله او يو بله حمليه وي.

(٤) يو منفصله او بله حمليه وي.

(٥) يو متصله او بله منفصله وي.

نو اشكال اربعه چه په دي پنځه صورتونه كښې جاري كوي نو ټول شل مثالونه غواړي. ځكه ٥x٤=٢٠ ليكن مصنف صرف په اول صورة كښې دري اشكال جاري كړيدي. يعني چه صغرىٰ كبرىٰ دواړه متصله وي هغي دپاره اشكال ثلثه جاري كړيدي. ليكن شكل رابع دپاره مثال ئے نه دے ذكر كړے ځكه د هغے فائده كمه ده او لړزان پكښې زيات دے او دويم او دريم صورة (يعني چه دواړه منفصله وي يا يو متصله او بله حمليه وي) هغي كښې صرف شكل اول جاري كړيدے يعني هغي د پاره صرف شكل اول په مثال كښې راوړے دے بقايا اشكال اختصارًا نه دي جاري كړي. او دريم او څلورم صورة د پاره مصنف مثال كښې شكل اول هم نه دے ذكر كړے قياسًا على ما سبق.

د هغي مثال به مونګ پيش كوؤ مذكوره تفصيل په رڼړا كښې به لاندي نقشه كښې مثالونه مذكور دي. سوچ پرے اوكړه.

صغرىٰ كبرىٰ دواړه متصله

شكل اول: كلما كان زيد انسانا كان حيواناً (صغرىٰ) وكلما كان حيوانًا كان جسماً (كبرىٰ) كلما كان زيد انسان كان جسمًا (نتيجه)

په دے مثال كښې كان حيوان حد اوسط دے چه په صغرىٰ كښې تالي اوپه كبرىٰ كښې مقدم واقع دے.

شكل ثاني: كلما كان زيد انسانا كان حيوانا (صغرىٰ) وليس البتة اذا كان حجرًا كان

حیوانا (کبریٰ) لیس البتة اذا کان زید انسانًا کان حجراً (نتیجه) دے مثال کښې کان حیوانا حد اوسط دے چه صغریٰ کبریٰ دواړو کښې تالی کښې واقع دے.

شکل ثالث: کلما کان زید انسانا کان حیوانًا (صغریٰ) وکلما کان زید انسانا کان کاتباً (کبریٰ) قد یکون اذا کان زیدٌ حیوانا کان کاتبا (نتیجه) شکل ثالث نتیجه موجبه جزئیه راځي موجبه کلیه نه راځي. په دے مثال کښې حد اوسط کان زید انسانا دے چه صغریٰ دواړو کښې مقدم کښې واقع دے. مذکوره مثالونه د قیاس شرطی دی اول صورة چه صغریٰ کبریٰ دواړه متصله وی د هغې دی.

دویم صورة مثال:

## صغری کبریٰ دواړه منفصله

دا مثال به مونږ صرف په شکل اول کښې جاری کوؤ باقی اشکالو کښې د قیاس نه کار واخله.

شکل اول: إمّا کلُّ اٰ،بٰ او کل جٰ، دٰ (صغریٰ منفصله)

سیدها ساده مثال (یعنی إما أن یَکون العَدَدُ زوجًا وإمَّا ان یکونَ فردًا ) ودائما کلُّ دٰ ،ہٰ، او کل دٰ، ذٰ (کبریٰ منفصله)

(یعنی دائما اما ان یکون العدد زوج الزوج او یکون زوج الفرد) دائما اما کل اَ، بَ او کل ج. ہ او کل د، ذ (نتیجه)

یعنی دائما اما ان یکون العدد فرداً وإمَّا ان یّکونَ زوجُ الزَّوجِ اَو یکونَ زَوجُ الفَردِ.

حد اوسط په دے کښې ، دَ ، دے او په ساده مثال کښې حد اوسط ، زوج ، دے.

دریم صورة چه قیاس مرکب وی د متصله او حملیه نه.

## متصله حملیه

شکل اول: کلما کان بَ ، جَ فکل ج. اَ (صغریٰ متصله) وکل ءَ . اَ (کبریٰ حملیه) حد اوسط. ءَ. دے چه صغریٰ کښې تالی او کبریٰ کښې موضوع دےٰ. نتیجه کلما کان بَ . جَ فکل جَ . ءَ ساده مثال. کلما کان هذا الشئ انسانا کان حیواناً (صغریٰ متصله) وکل حیوان جسم (کبریٰ حملیه) حد اوسط حیوان دے.

کلما کان هذا الشئ انسانا کان جسما (نتیجه)

اوس به مونګ آخری دواړه صورتونه مثالونه پیش کوؤ.
چه مصنف ندی ذکر کړی نو څلورم صورة دادے.

## چه صغری حملیه او کبری منفصله وی:

لکه هذا عدد (صغریٰ حملیه) دائمًا اما ان یکون العدد زوجا او فردًا (کبریٰ منفصله) حد اوسط عدد دے چه صغری کښې محمول او کبریٰ کښې مقدم واقع دے. نتیجه هذا اما ان یکون زوجا او فردًا.

ده پنځم صورة مثال چه صغری متصله او کبریٰ منفصله وی: لکه کلما کان هذا الشئ عدد فهو اربعة (صغریٰ متصله) ودائما اما ان یکون العدد زوجا او فردًا په دے مثال کښې عدد حد اوسط دے چه صغریٰ کښې تالی او کبریٰ کښې مقدم واقع دے نتیجه داده کلما کان هذا الشئ اربعة فهو اما ان یکون زوجًا او فردًا.

## فصل فی القیاس الاستثنائی

په دے فصل کښې مصنف بیان د قیاس استثنائی کوی حاصل دادی چه اول مصنف تعریف ده قیاس استثنائی کوی د قیاس استثنائی مختصر حاصل دادے چه قیاس استثنائی دیته وائی چه دے مرکب شوے وی د دوو مقدمو نه. اوله مقدمه شرطیه وی دویمه حملیه وی او ده دی دواړو مینځ کښې کلمه د لکنَّ وغیره راغلی وی. که اوله قضیه شرطیه وی نو شرطیه به یا (۱) متصله وی یا به (۲) منفصله وی او که منفصله وی نو یا به (۳) حقیقیه وی یا (٤) مانعة الجمع او یا (٥) مانعة الخلوه.

تحقیق المقام علی ما یلیق بهذا المقام : دادے چه دې مقام کښې څلور صورتونه دی (۱)اول صورة دادے که اوله قضیه شرطیه متصله وه (چه مرکبه ده د مقدم او تالی نه) نو که لکن سره استثناء د عین مقدم شوے وه نو نتیجه به عین تالی وی لکه کلما کانت الشمس طالعة کان النهار موجودًا ( دا شرطیه متصله ده چه مرکب ده د مقدم تالی نه کلما کانت الشمس طالعة مقدم او کان النهار موجود تالی) لکن الشمس طالعة (دا قضیه حملیه ده او شرطیه او حملیه مینځ کښې کلمه د لکنَّ راغلی ده) او کلمه د لکن سره استثناء د عین مقدم شوے ده چه الشمس طالعة دے نو نتیجه به عین تالی وی چه هغه فالنهار موجودٌ دے او دے کښې دویم صورة دادے

که په لکن سره استثناء د نقيض د تالي اوشي نو نتيجه به نقيض د مقدم راځي لکه داسي اووايه لکن النهار ليس بموجود (نو النهار ليس بموجودٍ دا د تالي نقيض دے او دغه استثناء اوشوه په لکن سره) نو نتيجه به نقيض د مقدم راځي چه هغه فا الشمس ليست بطالعةٍ دے.

دويم صورة دادے که اوله قضيه شرطيه منفصله حقيقيه وه او په هغے کلمه د لکن داخل شوے وه نو د دې بيا څلور صورتونه جوړيږي. اول صورة (۱) چه استثناء د عين مقدم اوشي نو نتيجه به نقيض ده تالي راځي. (۲) اوکه استثناء د عين تالي اوشي نو نتيجه به نقيض ده مقدم راځي. (۳) عکس ده اول يعنى که استثناء ده نقيض ده مقدم اوشي نو نتيجه به عين تالي راځي. (٤) عکس ده دويم يعني که استثناء ده نقيض د تالي اوشي نو نتيجه به عين مقدم راځي، ده اول صورة ده پاره مثال لکه هذالعدد اما زوج او فرد (دا شرطيه منفصله ده) لکنه زوجٌ استثناء د عين مقدم اوشوه نو نتيجه به نقيض د تالي راځي چه فهو ليس بفردٍ.

د دويم صورة مثال لکه لکنّه فردٌ دا استثناء د عين تالي اوشوه نو نتيجه به نقيض ده مقدم راځي چه فهو ليس بزوجٍ.

د دريم صورة مثال لکه لکنه ليس بزوجٍ دا استثناء د نقيض د مقدم اُشوه. نو نتيجه به عين تالي راځي چه فهو فردٌ دے.

د څلورم صورة مثال چه استثناء د نقيض د تالي اوشي لکه لکنّه ليس بفردٍ نو نتيجه به عين مقدم راځي چه فهو زوجٌ دے.

دريم صورة دادے چه اوله قضيه منفصله مانعة الجمع وي نو بيا به اول دواړه صورتونه (ده منفصله حقيقه) جاري کيږي. يعني که استثناء د عين مقدم اُشوه نو نتيجه به نقيض ده تالي وي. لکه اما ان يکون هذالشئُ شجراً او حجراً لکنه شجرٌ فهو ليس بحجرٍ. او که استثناء ده عين تالي اُشي نو نتيجه به نقيض ده مقدم راځي لکه لکنه حجرٌ فهو ليس بشجرٍ.

او څلورم صورة دادے که اوله قضيه شرطيه منفصله مانعة الخلوه وه نو بيا به روستني دواړه صورتونه (ده منفصله حقيقه) جاري کيکي. مثلاً اِمّا ان يکون زيدٌ فى

البحر او لا یغرق زیدٌ نو که استثناء د نقیض د مقدم اُشي مثلا لکنه لیس فی البحر نو نتیجه به عین تالی راځي چه فهو لا یغرق. او که استثناء نقیض د تالی اُشوه مثلا لکنه یغرق نو نتیجه به عین مقدم راځي چه فهو فی البحر. فتدبر و تذکر وتشکر

نو دا په څلورو صورتونو کښې لس اقسام جوړیږي ، اجمالی خاکه ئې دا ده :

دوه صورتونه د متصلې ، څلور صورتونه دمنفصلې، دوه صورتونه دمانعة الجمع ، دوه صورتونه د مانعة الخلو ، تفصیل د پاره نقشه وګورئ :

| | شرطیه | مقدم | تالی | مقدمه استثنائیه | استثناء عین مقدم نتیجه عین تالی |
|---|---|---|---|---|---|
| (۱) | متصله | کلما کانت الشمس طالعة | کان النهار موجودًا | لکن الشمس طالعة | فاالنهار موجود |
| (۲) | | // | استثناء نقیض تالی<br>لکن النهار لیس بموجود | | نتیجه نقیض مقدم<br>فا الشمس لیست بطالعة |
| (۳) | منفصله حقیقیه (۱) | مقدم تالی<br>هٰذالعدد اما ان یکون زوجا او فردًا | استثناء عین مقدم<br>لکنه زوج | | نتیجه نقیض تالی<br>فهو لیس بفردٍ |
| (٤) | (۲)<br>// | // | استثناء عین تالی<br>لکنه فرد | | نتیجه نقیض مقدم<br>فهو لیس بزوج |
| (٥) | (۳)<br>// | // | نقیض مقدم<br>لکنه لیس بزوج | | نتیجه عین تالی<br>فهو فرد |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| (٦) | (٤) // | // | استثناء نقیض تالی<br>لکنه لیس بفرد | نتیجه عین مقدم<br>فهو زوج |
| (٧) | مانعة الجمع (١) | هذا الشی اماان یکون شجرًااو حجراً<br>(مقدم تالی) | استثناء عین مقدم<br>لکنه شجر | نتیجه نقیض تالی<br>فهو لیس بحجر |
| (٨) | (٢) // | // | استثناء عین تالی<br>لکنه حجر | نتیجه نقیض مقدم<br>فهو لیس بشجر |
| (٩) | مانعة الخلوه (١) | مقدم / تالی<br>اما ان یکون زید فی البحر(مقدم) او لایغرق زید (تالی) | استثناء نقیض مقدم<br>لکنه لیس فی البحر | نتیجه عین تالی<br>فهو لایغرق |
| (١٠) | (٢) // | // | استثناء نقیض تالی<br>لکنه یغرق | نتیجه عین مقدم<br>فهو فی البحر |

فصل الاستقراء هو الحکم علی کل: ده حجت درے اقسام وو.

(١) قیاس (٢) استقراء (٣) تمثیل

هر کله چه فارغ شو مصنف د قسم اول نه چه قیاس دے نو شروع ئی اوکړه په قسم ثانی ده حجت کښے چه استقراء ده. استقراء په لغت کښ تتبع او تلاش کولو ته وائی او په اصطلاح ده مناطقو کښ امر جزئی نه په کلی حکم لګولو ته استقراء وئیلے شی و بعبارةٍ اخریٰ داسې اووایه چه ده کلی ده بعض افراد حکم د کلی په ټولو افرادو لګول دیته استقراء وائی.

ساده مثال ✿ لکه په پشاور کښې بعضې پوليس والو ستا نه په فردوس کښې رشوت واخستو نو تا اوئيل چه "د پشاور ټول پوليس رشوت خواره دی". نو د بعض افرادو حکم چه رشوت خواره کيدل تا په ټولو افرادو د پوليس اولګوو دا استقراء ده. ✿

په استقراء کښې دويمه خبره داده چه دا مفيد د يقين نده بلکه مفيد ده ظن ده. ځکه دا خبره ضروری نه ده چه دا حکم دې د کلي ټولو افرادو لره ثابت وی. مثلا په مثال مذکور کښې دا خبره ضرور نه ده چه د پشاور ټول پوليس دې رشوت خواره وی ہوسکتا ہے بعض کسان دې ده ځلور مياشتو او چيلؤ والا وی هغوی دې پوره زندګۍ کښې چرته رشوت نه وی اغستے استقراء په دوه قسمه ده (۱) استقراء تام (۲) استقراء ناقص.

(۱)استقراء تام ديته وائی چه د تمام جزئيات حکم په کلي اولګوی مثلا کل جسم اما حيوان او جماد او نبات وکل واحد منهما متحيِّزٌ فکل جسم متحيِّزٌ، دے مثال کښې جسم يو کلي دے د هغه افرادو حيوان جمادات نباتات دی. دے تمام افراد حکم متحيز کيدل دی دا حکم مونږ په کلي هم اولګولؤ. چه هر جسم متحيز دے. (متحيز معنیٰ مکان کښې کيدل) استقراء تام ته قياس مقسم هم وائی د استقراء تام مثال ډير کم دے ځکه دا په حقيقت کښې استقراء نه ده بلکه ده قياس يو قسم دے.

دويم استقراء ناقص ده د هغے تعريف او مثال مخکښے تير شو (چه د بعض افراد حکم په ټولو افرادو لګول) ده استقراء ناقص دپاره مصنف ده مثال حاصل دادې مونږ په اکثر حيوانات کښې سوچ اوکړو بلکه اوليدل چه د خوراك په وقت کښې فك اسفل لاندے جامی لره حرکت ورکوی ) او خوځوی ئے نو مونګ دا حکم کلي ټولو افرادو لره ثابت کړو. چه "كُلُّ حَيوَانٍ يُحَرِّكُ فَكَّه الاَسفلَ عِندَ المَضغ"، او دا استقراء مفيد ده يقين ځکه نده. بعضی حيوانات داسې هم شته چه د شخوند په وخت کښې هغوی فك اعلی (باندے جامه) خوزوی لکه تمساح شو دا يو قسم مهے دے چه دا کارنامه ده د نشان امتياز دے نو استقراء مفيد ده يقين نه شوه.

## فصل التمثيل وهو اثبات حکم فی جزئی لوجوده فی جزئی آخر

هر کله چه مصنف فارغ شو د دويم قسم د حجت نه چه هغه استقراء ده نو شروع ئے اوکړه په دريم قسم د حجت کښې چه هغه ته تمثيل وائی. تمثيل په لغت

کښې تشبیهه ورکولو ته وائی او په اصطلاح د مناطقؤ کښې تمثیل وئیلے شی. دیو جزئی حکم بل جزئی له ورکړے د وجه د علت مشترکه نه او په اصطلاح د اصول فقهه کښې دیته قیاس وائی. په تمثیل کښې ضروری ده معرفت د څلور شیانو نه اصل او مقیس علیه. (۲) مقیس (۳) علت مشترکه (٤) حکم مثلا خمر یو جزئی دے او دده حکم دادے چه دا حرام دی ځکه چه خمر کښې سکر نشته اوس بل یو شئ چه هغه کښې نشه وی هم ته وئیلے شی چه دا حرام دے مثلا بهنګ هم حرام دی ځکه دے کښې هم نشه ده نو خمر مقیس علیه شو او بهنګ مقیس شو، او علت مشترکه سُکر شو او حکم حرام والے شو.

مصنف چه د تمثیل د پاره کوم مثال ذکر کړے دے د هغی حاصل دادے چه بیت حادث دے دوجے د تالیف نه یعنی کور حادث دے ځکه ده کښې ترکیب راغلے دے د مختلف اجزاء نه او هر هغه شئ چه دائے شان وی هغه حادث وی نو د کور د حدوث دپاره علت مشترکه هغه تالیف او ترکیب دے نو دا علت په یو بل جزئی کښې هم موجود دے نو هغه به هم دغه حکم وی. یعنی حادث به وی هغه عالَم دے، دے هم حادث دے د وجے د علت مشترکه نه چه هغه تالیف دے ځکه عالَم هم د مختلف اجزاؤ نه جوړ دے نو کوم وقت کښې چه د بیت او د عالَم علت یو شو چه ترکیب دے نو حکم ئے هم یو شو. چه هغه حدوث دے نو بیت اصل او مقیس علیه شو او عالم مقیس شو. او ترکیب علت مشترکه شو او حدوث ئے حکم شو. نو اثبات د حکم د یو جزئی بل جزئی لره دیته مناطقه تمثیل او فقهاء او اصول فقه علماء ورته قیاس وائی.

## اوس دا خبره یاد ساتل پکار دی:

چه مقیس علیه او مقیس او حکم دا ظاهر دی دے کښې ده بحث ضرورت نشته البته علت کښې خفاء ده هغه ده ثابت کولو ده پاره مصنف دوه طریقی ذکر کړیدی اوله طریقه ته دوران یا طرد عکس وئیلے شی او دویمی طریقی نوم سبر او تقسیم دے. دوران څه ته وائی. د هغی مختصر وضاحت دادے دوران معنی (چورلیدل یا چکر لګول) اصطلاح کښې دوران موقوف کیدل د حکم علت پورے یعنې که علت وه نو

حکم به وی او که علت نه وی نو حکم به هم نه وی یعنې حکم علت پسې گرځی وائی که ته ئے نو څه به هم یم. مثلا په مثال مذکور کښې سُکر وه نو خمر حرام دی او که سُکر نه وه نو حرام نه دی (ځکه بیا هغه خمر نه دی یا سَکر دے یا عام شربت دے یا نبیذ دے وغیره وغیره)
په دویم مثال کښې حدوث حکم، عالَم د پاره هله ثابت کیګی چه ترکیب وی که ترکیب نه وی بیا به حدوث هم نه وی په عالم کښې او په بیت کښې ترکیب شته نو حکم چه حدوث دے هم شته او په واجب تعالیٰ کښې ترکیب نشته نو حدوث هم نشته.
دویمه طریقه: ده اثبات ده علت دپاره هغی ته سبر او تقسیم وائی. سبر لغوی معنیٰ ازمائش کول او په اصطلاح کښې سبر او تقسیم دیته وائی چه ده مقیس عیه اوصاف معلوم کړے شی او دا خبره معلومه شی چه کوم یو وصف دے چه مقیس علیه او مقیس کښے مشترك دے یعنی ده مقیس علیه څه اوصاف شمار کړلے شی بیا د یو، یو وصف علت کیدل باطل کړے شی اٰخر کښې چه کوم وصف د اصل او د مقیس کښې علت جوړیدے شی هغه ثابت کړے شی چه صرف دا وصف د دې حکم علت دے مثلا د حرمت د خمر په باره کښې اووئیلے شی چه خمر حرام دی یا د دې وصف (علت) د وجه نه چه دا د انګورو نه جوړیګی یا حرام دی د وجے د سیلان نه (بهیدل) یا حرام دی د وجے د خوړ والی نه یا حرام دی د وجے د نشی نه.
(اوس یو یو علت باطلوه) چه انګورو نه جوړول علت د حرمت نه دے ځکه بیا خو هر هغه شربت چه د انګورو نه جوړ شوے هغه حرام پکار دے او هر انګوری جوس حرامیدل پکار دی والا مرلیس کذالك.
او سیلان هم علت د حرمت نه دے ځکه سیلان خو په ماء (اوبو) کښے هم دے نو بیا خو اوبه هم حرامیدل پکار دی. وَلاٰ مر لیس کذالك.
او خوږ والے هم علت د حرمت نه دے ځکه بیا هر خوږ شے حرامیدل پکار وه لکه چائے، شهد، متهائی وغیره ولاٰ مَرُ لیس کذالك.
نو معلومه شوه چه علت ده حرمت هغه سُکر نشه ده یعنې ده سُکر نه علاوه نور اوصاف علت جوړیدلو صلاحیت نه لری هم دا مطلب دے د مصنف د دې عبارة چه لوجود تلك الاوصاف فی محل اٰخر مع تخلف الحکم عنه.

مثلا فی المثال المذکور یقولون: ده سبر او تقسیم به په مثال مذکور کښې داسې جاری کوؤ. بیت حادث دے او علت د حدوث یا به وجود وی ،او یا به امکان وی ،یا به جسمیّت وی ،او یا به جوهریّت وی، یا به تالیف وی د تالیف نه علاوه نور اوصاف د مقیس او مقیس علیه کښې د علت جوړیدلو صالح نه دی جوهریت علت د حدوث نشی کیدے ځکه عقول عشره جوهر دی سره ده دے نه چه هغه حادث نه دی بلکه قدیم دی (عند الفلاسفه) جسمیّت هم علت د حدوث نشی کیدے ځکه افلاك اجسام دی سره د دے نه چه هغه قدیم دی حادث نه دی. (عند الفلاسفه) امکان هم علت د حدوث نه دے ځکه افلاك او عقول په اعتبار د ذات سره ممکن دی او حادث نه دی بلکه قدیم دی وکذالك صفات الله تعالیٰ ممکنه مع انها قدیمة دارنګه وجود هم علت د حدوث نشی کید ځکه وجود د واجب تعالیٰ دپاره ثابت دے سره د دې نه هغه قدیم دے نو معلومه شوه چه علت د حدوث هغه تالیف دے لاغیر". جواهر مجرده معنیٰ عقول عشره اجسام اثریه معنی افلاك۔

## یو اهم وضاحت

په عبارت کښې د عقول عشرؤ او د افلاکو ذکر اوشو. د دې متعلق مختصر وضاحت کوؤم. د فلاسفؤ په مشهور قول مطابق عقول لس دی او د ارسطو په نزد عقول تقریبا پنځوس (۵۰) دی. د دے حقیقت څه دے نو ددے په باره کښې کله فلاسفه وائی چه عقل یو جوهر دے یعنې قائم بالذات دی خپل په کار او ذات کښې مادی محتاجه نه دے او متکلمین د عقول قائل نه دی او کله فلاسفه د عقول نه تعبیر کوی په فرشتو سره چه عقول عشره عبارة دی د فرشتو نه چه لس فرشتے چه جبرائیل علیه السلام وغیره دی او افلاك نه مراد اوه(۷) اسمانونه، عرش او کرسی دی .دا ټول نهه افلاك شو.

د فلاسفؤ یوه بنیادی عقیده داده چه الوَاحد لَا یَصدُرُ عَنه اِلَّا الوَاحِد، الله تعالیٰ واحد حقیقی ذات دے هغه نه به یو کار کیګی ډیر کارونه نشی کولے. (نعوذ باالله) نو الله تعالی ټولو نه مخکښې صرف یو کار اوکړو چه عقل اول ئے پیدا کړو. او عقل اول واحد غیر حقیقی (اضافی) دے هغه کښې دوه جهته دی. (۱) یو جهت ده امکان

ذاتي. (۲) دويم جهت د وجوب غيري.

امکان ذاتی په جهت سره عقلِ اول فلکِ اول پيدا کړو. او وجوب غير په جهت سره عقلِ اول، عقلِ ثانی ئے پيدا کړو دغه سې په هغه کښې هم دوه جهته دی. (۱) امکان ذاتی (۲) او وجوب غيری.

امکان ذاتی په جهت سره فلکِ ثانی ئے پيدا کړو او وجوب غيری په جهت سره عقل ثالث ئے پيدا کړو دا سلسله تر فلك تاسع او عقل عاشر پورے اوچليدله يعني آخر کښې فلك تاسع پيدا شو. او عقل عاشر چه هغه ته عقل فَعَّال (ډير کار کوونکے) هم وائی او عقل فعال ته ده تمام کارونو تصرف حواله شويدے. د فلاسفؤ دا عقيده نقلا او عقلا باطله ده. [۱]

تفصيل د پاره شيخ الاسلام علامه ابن تيميه کتاب الرد علی المنطقين دارنګه مجموعة الفتاویٰ ص۲٤۲ ج ۲۷ ، ص۳۳٦ ج ۱۸ وغيره مطالعه کړئ. او عقلا څکه باطله ده چه عقول هم بسيط دی په عقل اول کښې. فلاسفه تکثر اعتباری قائل دی چه هغه کښې دوه جهته منئ او په عقل فعَّال کښی خو بے شماره جهتونه منئ. نو په واجب تعالیٰ کښې تکثر اعتباریٔ ولے نه منئ ؟ نو صحيح خبره داده چه واجب تعالیٰ واحد دے. ليکن تکثر په واجب تعالیٰ کښې په اعتبار د صفاتؤ سره دے او دا تکثر وحدت سره منافی نه دے. يعني په يو جهت سره واجب تعالیٰ عالم دے په بل جهت سره قادر دے دغه سې د هر صفت جدا حيثيت او اعتبار دے نو هر کله چه تکثر اعتباری په واجب تعالیٰ کښې راتلے شی نو د عقولو، واسطه کؤلو او نور قسما قسم تکلفاتو او اختراعاتو ته ضرورت پاتی نشو.

﴿وَاللّٰهُ يَقُوْلُ الْحَقَّ وَهُوَيَهْدِی السَّبِيْلَ﴾

---

[۱] : فانقيل:تولو اشياؤ نه مخکي باری تعالیٰ عقل پيدا کړےدے دانظريه خو حديث نه ثابته ده، کما فی الحديث اول ما خلق الله العقل الخ احياء علوم الدين ص ۸۳ج۱.جواب دادے دا حديث ضعيف دے بلکه ده شيخ الاسلام ابن تيميه رحپه نزد په اتفاق د علماؤ سره دا حديث موضوع دے .انظر جامع لرسائل ص۱٦۸ ج۱ المغنی عن حمل الاسفار ص۸۳ج۱.

دل میں تو آتا ہے سمجھ میں نہیں آتا
بس میں جان گیا تیری پہچان یہی ہے
تو وحدت ہے مگر لاکھوں کے دلوں میں ہے تیرا مسکن
تیری وحدت کا کیا کہنا تیری کثرت کا کیا کہنا
برسو فلاسفہ کا چنا چنیں رہی
لیکن خدا کی بات جہاں تھی وہی رہی

✿✿✿✿ ✿احقر حسین علی حفظہ اللہ✿

## فصل من الا قیسة المرکبة قیاس یسمّٰی قیاس الخلف

قیاس په دوه قسمه دے یو قیاس بسیط دے چه مرکب نه وی ده قیاسینو نه' دویم قیاس هغه ے چه مرکب وی ده قیاسینو نه' دی فصل کښې مصنف ده قیاس مرکب یعنی قیاس خُلف بیانوی. قیاس خلف ته قیاس خلف ځکه وائی خلف معنیٰ ده بطلان او په قیاس خلف کښې هم مطلوب ثابتولے شي په بطلان ده نقیض ده مطلوب سره په اصطلاح ده منطق کښې قیاس خلف هغه قیاس دے چه مرکب وی یو ده قیاس اقترانی شرطی نه (چه دغه قیاس اقترانی شرطی به خپله جوړوی ده دوو(۲) شرطیو متصلو نه) دویم قیاس به قیاس استثنائی وی چه ده هغه صغریٰ به ده قیاس اقترانی نتیجه وی او کبریٰ به ده قیاس اقترانی ده نتیجی تالی نقیض به وی مثلا المدعیٰ ثابتٌ. دا یوه دعویٰ شوه دا مونګ ثابتوؤ په قیاس اقترانی شرطی سره لانه لولم یثبت المدعیٰ (مقدم) یثبت نقیضه (تالی) دا صغریٰ شو ه وکُلَّما یَثبُتُ نقیضُه ثَبتَ المُحالَ '(دا مقدم او تالی کبریٰ شوه ) دا شکل اول دے ځکه یثبت نقیضه صغریٰ کښې تالی دے او په کبریٰ کښې مقدم دے دا حد اوسط چه لرې کړې نتیجه به داشي لَو لَم یثبت المدعیٰ ثبت المُحال. دا ده قیاس خلف اول قیاس وه چه قیاس اقترانی دے، ده نه حاصل شوے نتیجه چه لو لم یثبت المدعی ثبت المحال، دا به صغری شي او د دی نتیجی تالی یعنی د ثبت المحال نقیض چه هغه المُحال لیس بثابت دے هغه به کبری شي اوس به قیاس استثنائی داسې جوړوؤ لو لم یثبت المدعیٰ ثبت المُحال (صغریٰ)

ولكن المحال ليس بثابت (كبرىٰ) فالمدعىٰ ثابت نتيجه شوه. (لكه څرنګه چه صغرىٰ كبرىٰ قياس اقترانى كښې جارى كيږى. دغه رنګه كله كله په قياس استثنائى كښې هم جاري كيږى. يعنى اولئ مقدمه ته صغرىٰ او دويمى مقدمه ته كبرىٰ وئيلے شى)
په دے قياس كښې د مدعىٰ نقيض چه ثبوت د محال وه هغه باطل كړو. نو اوس به مدعىٰ ثابت وى كه مدعىٰ هم ثابت نشى او نقيض هم ثابت نشى نو لازم به شى ارتفاع ده نقيضينو او دا باطل دے نو ده مدعى ثابتيدل نه منل هم باطل شو.
د قياس خلف بيان مصنف په يو مثال جزئى سره هم كړے دے په دے عبارة سره چه وان اشتهيتَ فهمْ هذا المعنىٰ فى مثال جزئى. حاصل ئى دادے :چه كل انسان حيوان دا دعوه ده زمونږ اومنه كه نه منے ؟نو د دې نقيض به منى. چه هغه سالبه جزئيه ده چه بعض الانسان ليس بحيوان او كه دا نقيض صادق شى نو لازم به شى محال ځكه بعض انسان حيوان نه كيدل محال خبره ده نو نيتجه دا راغله كه زمونګ دعوه صادقه نه شى نو لازم به شى محال ليكن محال ثابت نه دے نو زمونګ دعوىٰ صادقه ده ورنه لازم بشى ارتفاع ده نتيضينو او دا باطل دے او كوم شئ چه مستلزم كيګى محال لره هغه پخپله باطل وى نو زمونګ دعوىٰ نه منل باطل شو.
فصل وينبغي ان يعلم: غالبًا په دے فصل كښې مصنف درې خبرى ذكر كوى.
(۱) چه كله فارغ شو مصنف د بيان د صورة د قياس نه نو شروع كوى په ماده د قياس كښې. (۲) مصنف دويم غرض ترغيب وركوى استاذانو او طالبانو ته د پاره د توجه وركولو ماده د قياس ته . لكه څنګه چه تاسو خپل توانائى په ايزده كولو د صورة قياس كښې صرف كوى د هغے نه زياته خپله توانائى خرچ كړئ په ايزده كولو ده ماده د قياس كښې ځكه چه د مادے بحث په نسبت د صورة ډير مفيد دے. (۳) دريم غرض د مصنف ګيله كوى د متأخِّرينو مناطقو نه يعنې مصنف د متقدمينو مناطقو نه خوشحاله دے چه هغوى د مادي بحث له كافى اهميت وركړے دے او د مادي د قياس بيان ئى ډير په شوق و ذوق سره كړيدے او دغه ورلره پكار هم وه ځكه بحث د مادي د قياس نه ډير مفيد دے په نسبت سره صورة د قياس ته ليكن مصنفؒ د متأخّرينو مناطقو نه ګيله مند دے چه دوى مناسب خدمت ده ماده ده

قیاس نه دے کړے اکثر تیم پاسی ئے کړی ده او یا خانه پوری ئے کړیده.
دې متاخرینو صورة د قیاس باندے خپل زور خرچ کړیدے حالانکه صورة د قیاس فائده ډیره کمه ده د مادی د قیاس نه داسې کار دوی لره پکار نه وه ځکه مادی د قیاس نه بحث نه کول ډیر نقصان دے لیکن اوس به څه کوی؟ ع:

د زرکو د کونترو ښکار د نورو مشغله شوه
ځما د غرونو باز، توت خورکو، پسې ګرځی
صلا کوی جرګه کوی غورزیږی تندرونه
خوك جاله جوړوی خان له ډکو پسی ګرځی

متأخرینو د پاره دا حق خو حاصل دے چه صورة د قیاس نه بقدر ضرورت بحث اوکړی لیکن دا حق ورته بالکل حاصل نه دے چه لږی فائدی د پاره دی ډیر نقصان اوکړی ځکه د میوو شوکولو د پاره ځانګی ماتول پکار نه دی کنه ...........
ځکه خو دا شعر رایاد شو:

تجھے یہ حق ہے شجر پہ ہو جو ثمر لے جا
مگر نہ اتنا کہ شاخیں بھی توڑ کر لے جا
تیرے نگر میں کئی غم نصیب بستے ہیں
خوشی سمیٹ کر ساری نہ اپنے گھر لے جا
(ح-ع-ج)

د دې درے "۳" غرضو نه بعد د ضروری الفاظو معنیٰ او مطلب ذکر کوم لیکن هغے نه مخکے دا خبره ایزده کړه چه د قیاس صورة هغه هیئت(Structure) ته وائی چه صغریٰ کبریٰ نه حاصل دے یعنې صغریٰ به اول وروسته به کبریٰ وی. او حد اوسط به دواړو کښې مکرر وی دیته صورة د قیاس وئیلے شی. او ماده د قیاس عین صغریٰ او کبریٰ مقدم تالی مقدمه استثنائیه وغیره ته ماده د قیاس وئیلے شی.

وقد عرفت الاشکال الاربعة:

یعنې صورة د قیاس هغه د چه اشکال اربعه کښې ذکر شو. چه حد اوسط کله چرته وی نو شکل اول وی او چه کله چرته وی نو شکل ثانی وی او چه کله بل چرته وی نو

شکل ثالث وی او چه کله به چرته وی نو شکل رابع وی وغیره وغیره. کما مرّ تفصیلا فلا نعیده.

کانو اشد اهتماما فی تفصیل مواد الاقسیة: یعني متقدمینو مناطقو په بیان د مواد د قیاس کښې ډیر اهتمام کړیدے او ذوق او شوق سره ئے ماده د قیاس بیان کړے ده.

واکثر اعتناء عن البحث فی بسطها وتنقیحها:

او متقدمینو ډیر اهتمام کړے دے چه ماده د قیاس په تفصیل او وضاحت سره ذکر کړیده او خوره کړیده.

لان معرفة هذا اتم فائده واشمل عائدة: ځکه معرفت د ماده د قیاس پوره فائده رسوونکی ده او مشتمل ده په پوره فائده باندے ده طالبان ده منطق دپاره.

مع قلة جدوی هذه المباحث: یعنی صورة د قیاس نه بحث کول فائده ئے کمه ده.

واقتصروا فی بیانها علیٰ بیان حدود الصناعات الخمس: یعني مادے نه بحث متاخرینو ډیر کم کړے دے صرف صناعات خمسو په تعریفونو باندے اکتفا ئے کړے ده. (صناعات خمسه چه قیاس برهانی، جدلی، خطابی، شعری او قیاس سفسطی دی) او تفصیلات ئے ندی ذکر کړے.

لا ادری ای امر دعاهم الی ذالك: یعنی ماته پته نشته چه کوم یو شئ وه چه د متاخرین ئے مجبوره کړل د ضروری شئ نه بحث پریخودلو باندے.

وای باعث اغراهم هناك: او ماته معلوم نه دے چه کوم شئ وه چه هغه په دوی باعث شو او غیر ضروری شئ کښې بحث کولو باندے مشغول کړل.

ولابد للفطن اللبیب: او پکار دی هر عقلمند او ذهین طالب او طالبې دپاره.

ان یهتم فی هذه المباحث الجلیّة الشان الباهرة البرهان غایة الاهتمام؛

چه هغه طالب او طالبه دې اوچت شان والا مباحثو لپاره او دې واضح دلیل ولا مسائلو ته دې متوجه شی په کمال توجه سره (او دادی ازده کړی)

وزبر الاقدمین السحره: زبر معنیٰ کُتُب' اقدمین' معنیٰ متقدمین' سحره معنی مهره (ماهرین).

فعلیك ایها الولد العزیز: په دې عبارة سره مصنف ده زړه په درد سره طالبانو او طالباتو ته وصیت کوی چه بچورو! متأخَرینو چه څه اوکړل هغوی پوهه شه او د

هغوى كار ﴿لَا تُسْئَلُونَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ البته مونګ له دا پکار ده چه په پټو سترګو به د چا تقليد نه کوؤ خه او بد به پيژنو بيا به په خُذْ مَا صَفَا وَدَعْ مَا كَدِرْ باندے عمل اکړو۔

د دې وجے نه ځما وصيت واوره او ځما په وصيت عمل اوکړه چه بنياد دې مضبوط شي او چه بنياد دې مضبوط شو نو تعمير به دې هم مضبوط شي كما قال الشاعر:

تو خاک میں مل اور آگ میں جل جب خشت بنے تب کام چلے
ان مردہ دلوں کی عنصر پہ بنیاد نہ رکھ تعمیر نہ کر

فصل في البرهان:

مصنف په دے فصل کښې صناعات خمسه ذکر کوی چه اول په هغوی کښې برهان دے ، برهان ئے مقدم کړو په نورو صناعات خمسؤ باندے ځکه چه برهان يقيني دے او نور صناعات خمسه يقيني نه دی برهان په لغت کښې دليل ته وائي اوپه اصطلاح کښې برهان هغه قياس ته وائي چه مرکب شوے وی د يقينياتو نه.

بديهية كانت او نظرية: يعني برهان هغه قياس دے چه مرکب شوے وی ده ادسې مقدماتو نه چه هغه يقيني وی برابره خبره ده چه دغه مقدمات بديهی وی او که نظری او که دا مقدمات نظری وی نو بيا دا خبره لازم ده چه دا به حاصل شوے وی د بديهی نه هم دا معنیٰ ده د مصنف د دے قول چه منتهية اليها».

ځکه که دا مقدمات نظريه د بديهی نه حاصل شوے نه وی بلکه د نظری نه حاصل شوے وی نو لازم کيګی دور او تسلسل ځکه که د يو نظری علم موقوف شي په بل نظری او د هغه علم په اول نظری نو دور لازم شو او که د هغه دويم نظری علم موقوف شو دريم نظری باندے او د هغه په څلورم باندے او دغه سی په مخکښې ځه نو لازم شو تسلسل نو دا خامخا دا نظری به حاصل وی د بديهی نه.

وليس الامر كما زعم: غرض د مصنف د دے عبارت نه رد دے په بعضی منطقيانو باندے هغوی د برهان تعريف دا کړيدے چه دا به مرکب وی د مقدماتؤ بديهيه نه صرف د نظريات نه به مرکب نه وی.

نو البديهيات ستة: بديهيات شپږ دی. (۱) اوليات (۲) فطريات (۳) حدسيات (٤) مشاهدات (٥) تجريبات (٦) متواترات.

اولیات دیته وائی چه صرف ده موضوع محمول او نسبت تصور اوکړے شی نو عقل ته یقین حاصلیګی. دلیل ته ضرورت نه وی لکه الکُلُّ اعظمُ من الجزءِ، دے قضیه کښې صرف د موضوع محمول او نسبت تصور کولو سره یقین حاصلیګی. چه کل اعظم وی د جزء نه دلیل ذکر کولو ته ضرورت نشته.

(۲)فطریات: وهی ما یفتقر الی واسطةٍ : فطریات هغه قضایا ته وئیلے شی چه موضوع محمول او نسبت تصور سره یقین عقل ته نه حاصلیګی. بلکه د یقین راوستلو دپاره د دلیل ضرورت به وی لیکن دا دلیل به د ذهن نه غائب نه وی بلکه د موضوع، محمول تصور سره تصور د دلیل به هم آټومیټك ( automatic )طور باندے ورسره راځی داسې قضایا ته قضایا قیاساتها معها' هم وئیلے شی. یعنی هغه قضایا چه دلیل ورسره هم ذکر دے مثلا الحمد لله رب العالمین ثبوت د حمد د الله تعالی د پاره په دې دلیل 'رب العالمین' دے. یعنی الله تعالیٰ رب دے تربیت کوی او کوم ذات چه تربیت کوی هغه لره حمد ثابت وی نو الله لره هم حمد ثابت دے د فطریاتو د دپاره مثال لکه الاربعةُ زوجٌ، موضوع اربعه دے او محمول زوج دے نو په الاربعةُ زَوجٌ، باندے چه عقل ته یقین حاصلیګی هغه د یو دلیل د وجه نه نو هغه دلیل په الاربعة زوج کښې موجود دے چه کله هم د اربعۀ تصور اوشی. نو منقسم بمتساویین تصور ورسره هم راځی نو دلیل دادے لان الاربعة منقسم بمتساویین وکلما هذا شانه فهو زوجٌ فاالاربعة زوجٌ.

وثالثها الحدسیات: په دے فصل کښې مصنف دریم قسم د بدیهیات ذکر کوی چه هغه حدس دے حدس او فراست (ایکومنAcumen )

تقریبا یو شئ دے کښې څه خاص فرق نشته. عام اصطلاح کښې ورته فراست وئیلے شی. او فلاسفه ورته حدس وائی حدس مقابل فکر او نظر دے. د حدس تعریف دادے چه ذهن حرکت اوکړی د مطلوب نه مبادی نه او بیا د مبادی نه مطلوب ته لیکن دا حرکتین تدریجی نه وی. بلکه دفعةً واحدةً وی یعنی اتومیټك طور باندے په مطلوب باندے علم راشی ذهن ته د سوچ فکر او د تکلیف ورکولو موقع ورنه کړے شی او فکر دیته وائی چه ذهن حرکتین اوکړی یو حرکت د مطلوب نه مبادی او بل د مبادی نه مطلوب ته لیکن دا حرکتین تدریجی وی. سوچ او فکر ته په کښې

ضرورت وی مثلا انسان تاته بوجهٍ مّا معلوم دے په ضاحك كاتب سره ليكن ته د انسان ذاتيات او حقيقت معلوم كول غواړې نو په سوچ او فكر سره تا د انسان ذاتيات معلوم كړل چه حيوان او ناطق دے دا اول حركت شو د مطلوب نه مباديو ته بيا حيوان جنس وو تا مخكښې كړو. او ناطق فصل وو تا وروستو كړو. او ترتيب دې ورلره وركړو. او د دې په ذريعه تا د انسان حقيقت معلوم كړو.

چه الانسان هو الحيوان الناطق. دا دويم حركت شو د مباديو نه مطلوب ته ليكن دا دواړه حركتين پس ده سوچ او فكر او ترتيب نه اوشو دارنگه دا دواړه حركتين تدريجي دی پس د دے دواړه حركتين نه انسان حاصل شو. نو انسان نظرى شو دا وو حقيت د فكر او حدس مثال لكه دفعةً ذهن حركت اوكړو د مطلوب نه مباديو ته او بيا ئے دفعةً حركت اوكړو د مبادى نه مطلوب ته او انسان ورته حاصل شو . دا حركتين تدريجى طور باندے نه وى ديته حدس وائى. پس د دے دواړه حركتين نه انسان بديهى شو. يعنى كه انسان په حدس سره معلوم شى نو انسان بديهى دے او كه په فكر سره معلوم شى نو انسان نظرى دے.

دويمه خبره په دے بحث كښې داده چه د حدس هم مراتب دى چه د چا حدس قوى وى د هغوى ذهن مطلوب ته ډير ذر رسى. لكه انبياء، اولياء، حكماء شو او د بعضو خلقو حدس ضعيف وى په هر شئ باندى به ورته لاس ايږدي ورنه په اشاره ئي نه پيژنى لكه غبى قسم خلق او هغه خلق چه هغوى باندے سفاهت او ساده توب غالب وى نو كيدے شي يو شئ به يو كَس ته بديهى وى ځكه هغه ته به حدس او فراست حاصل وى او بل كس ته به هغه شئ نظرى وى ځكه هغه به د حدس نه محروم وى.

ورابعها المشاهدات: مشاهدات هغه قضايا ته وئيلے شى چه په هغے يقين عقل ته حاصليږى. پس د مشاهدے او احساس نه ، مشاهده ديته وائى چه په يو شئ علم راشى په واسطه د حواس خمسۇ ظاهرۇ سره چه قوة باصره ، قوة سامعه، قوة شامه، او قوة لامسه دى، قوة باصره بارى تعالى په سترگو كښے ايخے دے په دى سره انسان اشياء وينى او قوة سامعه الله تعالى په دواړو غوږونو كښې ايخے دے چه په دے قوة سره انسان آوازونه اورى. قوة ذائقة په ژبه كښې ايخودے شوے دے چه كله شئ په ژبه كيخودلے شئ او د هغه ذائقه په لعاب سره خلط شى نو دغه قوة معلوموى چه

دا ذائقه د څه شئ ده' او قوة شامه' دا قوة باری تعالیٰ په دوو ټکړو د غوښو کښې ایخے دے چه دا ټکړی د دماغو په اول سر کښې او د پوزے په آخری حصه کښې دی اوددې غوښو شکل پشان ده سرونو د میمو د ښځے دے (nipple of the breast) (یعنی بالکل غونډی منډی دی) په دے سره د اشیاؤ رائحات معلومیګی. او قوة لامسه باری تعالیٰ په ټول بدن کښې ایخودی ده خصوصا په مسبّحه او ابهامه ګوته کښې دا قوة په نسبت د نور بدن ډیر دے په دی قوة سره. د اشیاؤ یخ والے، ګرم والے، خویه والے، جیشن والے ، پوس والے، سخت والے ،لوند والے ،وچوالے، وغیره . کیفیات معلومیګی، یا به یقین راغلے وی په دغه قضایاؤ باندے په وجدان سره یعني په حواس باطنو سره.

د حواس ظاهره پشان حواس باطنه هم پنځه دی.

(۱)حس مشترك (۲) خیال (۳) متصرفه (٤) واهمه (٥) حافظه

تفصیل المقام دادے چه د هر انسان دماغو کښې درے (۳)خانے وی او هره خانه په دوو حصو مشتمل ده اوله خانه د شکل مثلث پشان وی دویمه خانه ګول ده او دریمه خانه د شکل مربع پشان ده په دے شکل سره حواس باطنه په دماغو کښے موجود دی.



خانه اول په اوله حصه کښې حس مشترك دے د ده خدمات دادی چه ده کښې ظاهری اشیاؤ صورتونه منقش کیږي پس د ادراك د قوت باصره نه خانه اول په دویمه حصه کښې خیال دے ده ده خدمت دادے چه دے خزانه دے دپاره ده حس مشترك یعنې یو صورة که ده حس مشترك نه غائب شی نو هغه په خیال کښې محفوظ پرورت وی معمولی توجه ده ذهن سره واپس یاد شی.

واهمه د دماغ ده دویمی خانے په حصه ثانی کښې واهمه ده ده دے خدمت دادے چه دا ده جزئیات، محسوسؤ نه معانی جزئیه ادراك کوی. لکه مثلا دوه کسانو کښې ده محبت ادراك یا دوه کسانو کښې ده نفرت ادراك وغیره وغیره.

حافظه: ده دماغ په خانه ثالثه د اوله حصه کښې ده دې خدمت دادی چه دا خزانه ده د پاره ده واهمه یعنې واهمه چه کوم معانی جزئیؤ ادراك کړے وي هغه په دی قوة کښې محفوظ پراته وی.

متصرفه: ده دماغ خانه ثانی په حصه اول کښې ده دے خدمت دادے چه حس مشترك او واهمه چه کومو صورتونو ادراك کړے دے دا متصرفه په هغے کښې جوړ توړ کوی یا داسی اووایه چه کوم صورتونه په خیال کښې پراته دی نو قوة متصرّفه په هغے کښې ترکیب او تحلیل کوی مثلا په خیال کښې صورة ده زید پروت دے نو متصرفه په هغے کښې تصرف اوکړی ده زید نه سر لرے کړی او بغیر ده سر نه هغه لره منډه ورکړی یا مثلا زید په هوا کښې والوزوی یا په بل څه کار کښې مشغوله فرض کړی . دا تحلیل شو او که زید سر ، سره ئے یو بل سر هم فرض کړو یعنی زید ذورأسین فرض کړی یا ئے زید ته ده حمارسر فټ ( fit) کړو نو دا ترکیب شو. (وهٰذِهِ الاَفعَالُ کُلّهَا مُشاهَدةٌ نراها الیوم بِالحاسوب (Computer)، والالاَتِ الالیکترونِیّة

دارنګه قوة متصرفه په هغه صورتونو کښې هم تحلیل او ترکیب کوی کوم چه په حافظه کښې پراته دی. په هغے کښې داسی تصرف کوی چه دیو شی نه بل شئ جوړ کړی.

و مدرکات العقل الصرف: دے عبارة کښې مصنف بیان د یو نکته کوی چه هغه داده چه یو وجدانیات چه دا امور جزئیه دی ده دے ادراك حواس باطنه کوی او د

امور كليه چه مثلا انسانيت، حيوانيت وغيره دى د دے ادراك عقل كوى حواس باطنه نشي كولے.

## فائده :

په دي عبارة كښې اشاره ده دريم قسم ته د مشاهداتُ اول قسم د مشاهداتو هغه وه چه د هغي ادراك حواس ظاهرو كولو دويم قسم د مشاهداتو هغه وه چه د هغي ادراك حواس باطنؤ كولو دريم قسم د مشاهداتو دے چه د دي ادراك صرف عقل كوى بغير د واسطي د الاتو نه لكه علم زمونږ شو په خپل ذواتو او په افعالو د ذواتو باندي نو ټول اقسام د مشاهداتو دري شو نو مصنفؒ فرمائى ، چه مدركات د عقل الصرف ، دا په حواس باطنؤ كښې داخل نه دى بلكه دا مستقل قسم دى د مشاهداتو نه ، ليكن ! كه د حسِّ باطن نه مراد هغه قوة شي چه د حس ظاهر نه علاوه دے . نو بيا مدركات د عقل په قسم ثاني (حواس باطنؤ) كښې داخل دى.

احقر حسين على حفظ الله

فائده: حواس باطنه په وجود صرف فلاسفه قائل دى متكلمين ده حواسِ باطنؤ قائل نه دى متكلمينؤ په نزد باندے جزئياتُ كلياتُ تمام اشياؤ ادراك زړه ( heart)كوى. او عقل د زړه رهنمائي كوى. عقل ده زړه دپاره پشان د ټارچ (tarch)دے.

ليكن داخبره ياد ساتل پكارْ دى چه د حواس باطنؤ په موجود كيدلو سره د اسلام په عقائدو باندے هيڅ قد، غنؔ نه لګى. بلكه ده بارى تعالىٰ د قدرت مزيد جهلكئ ښكاره كيګى. لهذا متكلمين دى د دې د باطلولؤ ډير تكليف نه كوى

احقر حسين على حفظ الله

<u>وخامسها التجريبات</u>: پنځم قسم ده بديهيات هغه تجريبات دى. تجريبات هغه قضايا ته وئيلے شي چه په هغوى يقين حاصل وى. پس د بار بار تجربه ( experience) كولو نه لكه السقمونيا مسهل يعنى سقمونيا (چه جمال كوټه ده) دا دستونه لګوى او د هغے نه بعد بيا صفراء ختميږى نو په دے قضيه يقين پس د بار بار تجربه كولو نه حاصل شويدے مثال په طور لكه فليجل Flygel امساك راولى ده دستونو نه. دا خبرهِ هم په تجربه سرهِ يقين ته رسيدلے ده يا لكه پيناډول (Panadol ) سره بخار

کنټرول کیگی. په دے جمله یقین هم په تجربه سره حاصل دے.

وسادسها لمتواترات: شپږ قسم د بدیهیات هغه متواترات دی. متواترات هغه قضایا ته وئیلے شی چه په هغے یقین حاصل وی د وجه د خبر ورکولو د دومره کسانو نه چه د هغوی اتفاق په دروغ باندے ممکن نه وی. مثلا زمونږ یقین حاصل دے په وجود د بغداد باندے اگر که مونگ نه دے لیدلے. ځکه د بغداد وجود باره کښې دومره خلقو خبر راکړیدے چه د هغوی یوځائے کیدل په دروغو محال دی ، ځکه چه مسکن د هر یو جدا جدا علاقه کښے دے مثلا یو سړے کراچی کښے دے بل اسلام آباد کښې دے بل پشاور کښې دے بل کوهستان کښې دے بله وجه داده چه دا خبره ورکوونکی دومره ډیر دی چه د دوی اتفاق په دروغ محال دے ځکه یو دوه کسان خو د دروغو دپاره جمع کیدے شی لیکن په زرگونو کسان د دروغو جوړولو دپاره جمع کیدل ممکن نه دی.

واختلفوا فی اقل عدد هذه الجماعة: په متواترات کښې د عدد اکثر دپاره حد نشته کیدے شی چه یو واقعه هزار، لاکهه، کسان ئے نقل کړی خیر دے،لیکن د عدد أقل دپاره څه حد شته او که نه ؟

مصنف فرمائی ، دی کښې اختلاف دے بعضو وئیلی دی.چه کم از کم دا کسان به څلور وی که د څلورو نه تعداد کم شو دا خبر به متواتر نه وی. بعضو وئیلی دی کم از کم تعداد به لس وی او د بعض په نزد تقریبا کم از کم تعداد څلویښت کسان دی. مصنف فرمائی چه د عدد اقل دپاره هم څه تعین نشته بلکه دے ته به گورو چه واقعه څنگه ده، د هغے په مناسبت سره به خبر ورکوونکو ته هم گورو. یعنی خبر دي حد ته اورسی چه یقین حاصلیگی بس دا متواتر دے خبر ورکونکی لس وی شل وی که څلویښت وی. ځکه که ورکوټے واقعه وی خو چه کم کسان ئے نقل کړی نو هم یقین راځی لیکن که غټه واقعه وی نو تر څو چه ډیرو کسانو نه وی نقل کړی نو یقین نه راځی مثلا په افغانستان کښې په امریکنیانو باندے بلاستنگ (blasting)اوشو په هغے کښې شل کسان مړه او پنځوس ژوبل شو. نو دا وړه واقعه ده چه دوه درے کسان ئے نقل کړی نو هم یقین راځی لیکن که څوک دا

واقعه نقل کړی چه صدر بُش (bush)سره د هیلی کاپټر (helicopter) نه طالبانو والوځولو نو په دے واقعه یقین هله راځی چه ډیر خلق ئے نقل کړی یا ئے کم کسان نقل کړی لیکن چه د هغوی خبر قابل یقین وی نو یقین حاصلیږی.

فهٰذهِ السِّتَّةُ هي مبادی البراهین ومقاطع الدلیل ومنتهی الیقین:

دا شپږ قسمه بدیهیات دا د برهان د مبادیو نه دی یعنی برهان د دے نه جوړیګی او دی مبادیو نه چه کوم دلیل جوړ شی هغه قطعی دلیل وی او پوخ وی په یقین کښی.

فائدة زعم قوم: یو غرض د مصنف د فائدةٌ نه یو اختلاف ذکر کول دی دویم غرض د مصنف احقاق دماهو الحق او ابطال دما هو الباطل دے. اختلاف دادے چه بعض علماء د منطق هغوی وائی چه مقدمات نقلیه یعنی هغه مقدمات چه رانقل شوی وی دا په طریقه د تواتر سره ولے نه وی نو بیا هم دا قضایا نه مستعملیږی په قیاسِ برهانی کښی. یعني قیاس برهانی دینه نشی جوړیدے وجه داده چه قیاس برهانی قطعی او یقینی وی او مقدمات نقلیه کښی د غلطئ او د خطاء قوی احتمال دے نو مقدمات نقلیه ظنی شو نو یقینی شئ د ظنی نه څنګه مرکب کیګی په دے علماؤ مصنفؒ رد کوی په دے عبارة سره چه 'وَإِنَّ هٰذَ الظَّنَّ إِثمٌ حاصل د رد دادے چه دا ګمان صحیح نه دے ځکه مقدمات نقلیه د یقین فائده ورکوی خصوصا په هغه وقت کښی چه دا د عقل هم مطابق وی او دارنګه مقدمات نقلیه کښی د نقل شرائطو لحاظ شوے وی.

هاں که خالی مقدمات نقلیه وی نه د شرائطو د نقل لحاظ وی او نه مطابق د عقل[1] سره وی بیا دا مقدمات نقلیه یقینی نه دی. نو حاصل د رد دا شو چه هر مقدمه نقلیه ظنی نه وی (هر سور ګیرے شاه ګل نه وی) نو دا په قیاس برهانی کښی چلیږی. (والله اعلم)

---

[1] خبردار :دمصنفؒ دا عبارت چی وانضم الیه العقل " نه معلومیږ چي مقدمات نقلیه هله مفید د یقین دي چي د عقل مطابق وی والّا فلا" داخبره غلطه ده- دامذهب د معتزلو دے- (ولعمري انه ابرد من هواء المحراب في کانون ،ولا یکاد یروج علی اطلاقه الاصبي او مجنون). صحیح خبره دا ده چی دلیل نقلی مقرون بالشرائط مفید دیقین دے د عقل مطابق وی او کنه- ازاحقر حسین علی حفظ الله لاً

## فصل البرهان قسمان لمّي وإنّي

غرض ده مصنف ده دے فصل نه تقسیم کوی ده برهان دوو قسمین ته چه یو برهان لمی دے او بل برهان إني دے. برهان لمی دیته وائی چه حد اوسط ذهن او نفس الامر دواړو کښې ده نسبت ده پاره علت وی (مراد ده نسبت نه نسبت ده اکبر دے اصغر ته)

مثال لکه زید متعفن الاخلاط وکل متعففن الاخلاط محمومٌ فزیدٌ محمومٌ په دی مِثال کښې حد اوسط چه متعفِّن الاخلاط دے علت دپاره ده نسبت چی ثبوت ده حمی دے زید ته او دا حد اوسط علت په ذهن او قیاس کښې هم دے او په نفس الامر کښې هم علت دے ځکه حمی هله راځی چه تعفن ده اخلاطو راشی.

ده برهان لمی دویم تعریف دا هم مشهور دے چه برهان لمی دیته وائی چه هغه کښې انتقال وی علت نه معلول ته. په مثال مذکور کښې متعفن الاخلاط چه علت دے ده نه انتقال راغلے دے معلول طرف ته چه حمی ده او برهان إنّي دیته وائی چه حد اوسط صِرف ذهن (قیاس) کښې علت وی دپاره د نسبت په نفس الامر کښې علت نه وی.

مثلا زید محموم و کل محموم متعفِّن الاخلاط فزید متعفن الاخلاط په دے مثال کښې حد اوسط چه محموم دے (یعنی بخار) صرف ذهن او قیاس کښې علت دے ده متعففن الاخلاط دپاره په نفس الامر کښې محموم علت نه دے ده متعفِّن الاخلاط دپاره ځکه په نفس الامر کښې ده بخار ده تعفن ده اخلاط نه روسته راځی نو یو شئ چه وجود روسته راځی هغه ده مخکښې شئ دپاره څنګه علت جوړیدے شی؟.

یا ده برهان انی تعریف داسی هم کولے شی او مشهور هم دے چه هغه کښې انتقال راغلے وی ده معلول نه علت ته مثال مذکور کښې محموم دا معلول دے، ده نه انتقال راغلے دے علت ته چه متعفن الاخلاط دے . والله اعلم وعلمه اتم واکمل.
(اللّٰهُمَّ انفعنی ما علمتنی وعلمنی ما ینفعنی)

## فصل القیاس الجدلی

غرض د مصنف د دی فصل نه بیان د دویم قیاس دے د صناعات خمسۇ نه چه هغه قیاس جدلی دے .

وجه د تسمیه : جدل جهګړی (debate) او مباحثې ته وائی او دا قیاس هم اکثر په مناظرو او لانجو کښې استعمالیږی ، دی د وجې نه دیته قیاس جدلی وائي .
تعریف د قیاس جدلی : اصطلاحا قیاس جدلی په دری قسمه دے :
(۱) اول قسم هغه دے چه مرکب شوے وی د داسی مقدماتو نه چه هغه عند عوام الناس مشهوری او متفقه وی . دا شهرت او اتفاق د وجی د مصلحت عامه نه وی لکه العدل حسن وکل حسن محبوب فالعدل محبوب یا لکه الظلم قبیحٌ والقبیح شنیعٌ فالظلم شنیعٌ یا لکه الارهاب (terrorism) ( دهشتګردی ) حرکة شنیعة وکل حرکة شنیعة جریمة فالارهاب حرکة جریمةٌ" او که شکل ثانی سره جوړول غواړی نو بیا به داسی شی کل ارهاب حرکة شنیعة ولا شئ من الجهاد بحرکة شنیعة فلا شئ من الارهاب بجهاد' . او یا دا اتفاق د فطری عادت نه وی لکه کشف العورة عند الناس قبیح وکل قبیح واجب الاجتناب فکشف العورة واجب الاجتناب . دویم قسم قیاس جدلی هغه دے چه مشهوری وی عند قومٍ دون قومٍ برابره خبره ده که صحیح وی او که خطا . چه صحیح وی لکه الخنزیز نجس بعینه وکل ما هذا شانه لایطهر فالخنزیر لایطهر ، دا مقدمه په نزد د مسلمانانو مشهوره ده او صحیح هم ده . او چه مشهوره وی عند قوم او غلطه وی لکه البقرةُ حیوانٌ مقدسٌ وکل حیوانٍ مقدسٍ اکله حرامٌ فالبقرةُ اکلهٗ حرامٌ ( البقرة جنس عند البعض فلا یرد ما یرد) دا مقدمه په نزد د هندوانو مشهوره ده او حقیقةً غلطه ده .
(۲)دریم قیاس جدلی هغه دے چه مرکب وی د داسی مقدماتو نه چه هغه مسلم وي عند الخصم یعنی خصم او مناظر ئي هم تسلیموی مثلا اجتماع النقیضین محالٌ ، التسلسل باطلٌ ، الواجب قدیمٌ با الذات والزمان ، الدور محالٌ وغیره مقدمات شو .
فائده : مقدمات مشهوره د پاره یو مثال قتل السارق واجب ذکر شوے دے دا مثال د مقدمات مشهوره نه کیدل مشکل دی لان المسلمون وغیرهم غیر قائلین بهذا الحکم فضلاان یکون مشهورا فتفکر . ۞ احقر حسین علی حفظ اللہ ۞
دویمه خبره : د هندوانو قول ذبح الحیوان مذمومٌ ذکر دے لیکن صحیح خبره دا ده چه هندوان صرف ذبح د بقری مذمومه ګڼړی او د هغی دفاع (protection ) هم

کوی احتراما لمعبودهم" او د نورو حیواناتو ذبح او اکل دواړه هندوانو کښې رائج دے کما هو ظاهر من المشاهدة.

غاية ما فى الباب : مونږ دا ویلے شو چه مقدمات مشهوره فی ما بین الناس په اختلاف د امکنۆ، ازمنۆ ؤ اشخاصو، اقرانو، عاداتو، سره مختلف کیږي. فلا ملام ولا کلام. ❁احقر حسین علی حفظ اللہ❁

فائده : د یو قوم اتفاق راتلل په یو عقیده د هغی مختلف اسباب کیدے شي. دلته صرف دوه ذکر دی (۱) رقة القلب : د بعضی خلکو زړه نرم وی د هغی وجی نه سختو احکامو ته د تینګی نه وی او د هغه نرمئ اثر په عقیده هم وی. لکه ګستاخ رسول په نزد د مسلمانانو واجب القتل دے بحکم شرعيٍ لیکن د انګریزانو په نزد هغه معاف دے. یا لکه زانی محصن سزا رجم او قتل دے لیکن د روښن خیالو ( bright dreams) په نزد هلک راضی جینی راضی نو څه کار دے د قاضی ؟

## ولكل قوم مشهورات خاصة بهم :

په دی عبارت کښې مصنف چه د هر قوم او د هر فن والاؤ په نزد څه قضيه مشهوره وی چه دغه مشهوره قضيه د بل قوم او بل فن والاؤ په نزد مشهوره نه وی اګر که دغه قضيه په نفس الامرکي غلطه ولی نه وی مثلا مبتدعینو کښی دا قضيه مشهوره ده چه 'إن الاولياء يدمّرون أعداءهم وينصُرون أولياءهم' او په بریلیانو کښې دا قضيه مشهوره ده چه 'من هيأ طعامًا وَجَمَعَ إخواناً وأوقَدَ سراجاً ولبِس جديداً وتبخَّر وتعطّر تعظيماً لقرأة مولد النبي صلى الله عليه وسلم بعثه الله يوم القيٰمة ..........مع الصديقين الخ، او په اهل تشيعُ کښی دا قضيه مشهوره ده : من تمتّع مرةً فدرجته كدرجة الحسين ومن تمتّع مرتين فدرجته كدرجة الحسن ومن تمتّع ثلاث مرات فدرجته كدرجة عليٍ ........ الخ

اګر که دا قضايا په نفس الامر کښې غلطی او فاسدی دی' او چه یوه قضيه په یو جماعت کښې مشهوره وی او صحیح وی لکه تبلیغیانو کښې دا قضيه مشهوره ده "چه اللہ تعالیٰ سے ہونے کا یقین او مخلوق سے نہ ہونے کا یقین دلوں میں پیدا کرنا" او د اشاعت والؤ په نزد داقضيه مشهوره ده : توحید وسنت سے محبت...... شرک وبدعت سے نفرت. او ختم نبوة والؤ په نزد دا قضيه مشهوره ده چه : فرماگئے یہ ہادی ......... لانبيَّ بعدي. او جمعیت والؤ په نزد

دا قضيه مشهوره ده : جمعیت کی دعوت جمعیت کا پیغام،،، خدا کے زمین پر خدا کا نظام. او د اهلحديثو په نزد دا قضيه مشهوره ده : اہل حدیث کے دو اصول ... قال الله وقال الرسول" . دغه رنګه د هر جماعت او پارټۍ څه مشهوره قضيه شته چه دټولو ذکر کول د طوالت نه خالی نه دی.

دویم سبب : هغه نرمی د مزاج ده یا د نرم مزاج نه متاثره کیدل دی نو دداسې خلکو اکثر فیصلی په نرمۍ بناء وی مثلا فی زماننا حضرات تبلیغیه (preachers) شو چه هغوئ اکثر ، بدمعاشان ، شریران ، مجرمانو لره معاف کول پسند کوی . انتقام اغستل نه غواړی . په دی اراده چه ہو سکتا ہے دا اهل شرارت به ائنده نیکان شی لعلّ الله يَهْدِيْهِمْ .د دی حضراتو په دی قضيه اتفاق دے چه 'العفوُ لاهل الشرارة حسنٌ' . مثلا بل طرف ته حضرات مجاهدين دی ( guerrilla fighters in Islamic countries) هغوی اکثر مزاجاً سخت وی . هغوی اهل شرارت او بدمعاشانو لره تعزیر او انتقام اخستل خوخوی . چه شریران او بدمعاشان دی کوتره کړے شی چه ددوی نسل عبرت واخلی فَشَرِّدْ بِهِمْ مَنْ خَلْفَهُمْ .

د دوی په نزد باندی په دی قضيه باندی اتفاق دے چه 'الإنتقام من اهل الشَّرارة حسن'

دارنګه ده هر فن والا په نزد هم څه مقدمات مشهور وی لیکن د بل فن والا په نزد هغه مشهورات نه چلیکی. لکه د نحویانو په نزد دا قضيه مشهور ده چه کل فاعل مرفوع و کل مفعول منصوب و کل مضاف اليه مجرور، اصول فقهه والو په نزد دا قضيه مشهور ده چه الامر للوجوب، يا اذا ذكر الشئ مطلقا يراد به الفرد الكامل، دارنګه ده فقهاء په نزد دا قضيه مشهوره چه "الغرم بالغنم" ده علم منطق والو په نزد دا قضيه مشهوره ده چه "الشكل الاول بديهى الانتاج" د علم حکمت والو په نزد دا قضيه مشهور ده چه كلّ جسمٍ مركّبٌ من الهيولى والصورة وغَيره ذالك.

## وللمشهورات شبه با الاوليات:

غرض د مصنف د دې عبارة نه د يو جزئيه وضاحت کوی هغه داده چه فرق کوی په مابين د مشهورات او اولیات کښ ځکه کله مشهورات او اولیات کښ اشتباه راځی.

نو فرق دادے چه مشهورات کله کله غلط وی او اولیات همیشه صحیح وی ځکه د اهل هند په نزد ذبح البقرةِ مذمومٌ،، دا مشهوره ده لیکن حق نه ده، نو

مصنف فرمائی چه کومه قضیه مشهوره وی د هغی شهرت ته به نه گورو د هغی د شهرت نه به ذهن خالی کړو بیا به ئی د عقل په میزان باندے اوتلو بیا به اوګورو چه دا مشهوره ده او که اولیه ده. که مشهوره وه نو اوبه ګورو چه د مشهوري کوم یو قسم دےآیا هغه قسم دے چه ټول قوم ورباندے متفق وی او کنه هغه قسم دے چه بعض قوم ورباندے متفق وی (ده وجه ده نرم والی ده زړه نه او یا ده وجه ده احترام د معبود خپل نه) او کنه دغه قضیه اولیه ده.

## والغرض من صناعة الجدال:

غرض د مصنف ده دې عبارت نه بیان ده غرض او فائدے د قیاس جدلی دے حاصل ده هغے دادے چه د قیاس جدلی فائده داده چه د قیاس جدلی په ذریعه سره متکلم الزام راوستے شی په خصم باندے دارنګه خپله رائے هم محفوظه ساتلے شی د خطاء او د غلطئ نه.

## فصل فی القیاس الخطابي:

غرض د مصنف په دے فصل کښ بیان د دریم قسم د صناعات خمسۇ دے چه هغه قیاس خطابی دے قیاس خطابی تعریف او حکم مصنف په دے عبارت سره کوی.

مفید للظن: دا حکم د قیاس خطابی دے او تعریف ئے دادے:

ومقدماته مقبولات ماخوذات ممن یحسن الظن فیهم الخ.

حاصل دادے چه قیاس خطابی د دوه قسمه مقدماتو نه مرکب کیګی. (۱) اول قسم دادے چه قیاس خطابی مرکب وی د داسی مقدماتو نه چه هغه مقبولی وی عامو خلقو ته ځکه مقبولی وی چه دا مقدمات راخستلے شوے وی د هغه خلقو نه چه په معاشره کښ په هغوی حسن ظن وی لکه عرفاء، حکماء، اولیاء، علماء، امیران صاحبان، نیك پیران، نو کوم مقدمات چه دا قسمه خلقو نه راخستلے شوی وی نو دا مقدمات د عامو خلقو په نزد مقبولی وی نو دا قسمه مقدمات صحیح هم کیدے شی او غلطی هم کیدے شی د دے وجه نه قیاس خطابی مفید د یقین نه دے بلکه مفید د ظن دے. بعض اقوال د اولیاء لأمثلا : (۱) دلیل عقل المرء قوله و دلیل اصله فعله (۲) رُبّ عالمٍ قتله علمه و رُبّ جاهل نجا بجهله (۳) ذلاقة اللسان رأس المال (۴)

زكوٰة العلم الاحتمال (۵) رؤية الخليل جلاء العين (۲) من لم يتّعِظ بالناس وعّظ الله به الناس (۷) كثرة الوفاق نِفَاقٌ وكثرة الخلاف شِقاقٌ (۸) طِرْ مع الاشكال (۹) جولةُ الباطل ساعة وجولة الحقِّ الى السّاعة(۱۰) مَشْرَبُ الْعَذْبِ مُزْدَحَمٌ (تلك عشرة كاملة ) او بعض اقوال د حکماؤ مثلاً(۱)ضرب الحبيب اَوجَعُ مِن كُلِّ ضَربٍ (۲) ضيق القلب اشدّ من ضيق اليد (۳) دوام السُّرور برؤية الاخوان (۴) خلوُّ القلب خيرٌ من ملأالكيس (۵) خلوص الوُدِّ من حسن العهد (۲) حِرقَةُ الاولادِ مَحرِقةُ الاكباد (۷) جِدَّةُ الْمَرْءِ تهلكه (۸) شرط الأُلفَةِ ترك الكلفةِ (۹) بَشاشَةُ الوَجهِ عطيَّةٌ ثانيةٌ (۱۰) أخوك من وَّاساك بالنَّشَبِ (تلك عشرة كاملة ) او كوم مقدمات چه انبياء عليهم السلام نه منقول وی په قياس خطابی کښې داخل نه دی ځکه قياس خطابی ظني وی او منقولات الانبياء قطعی او يقينی وی ځکه هغه وحی وی او تائيد په معجزے سره هم شوے وی لهذا په منقولات الانبياء کښې اُنّيس ،بِيْس نه کيګی بلکه هغه يقينی وی.

دويم قسم قياس خطابی دادے چه ده داسی مقدمات نه جوړ شوے وی چه هغه مظنونات وی يعني په هغه مقدمات غالب ګمان وی چه دا صحيح دی اګرکه مرجوح احتمال دا هم وی چه دا صحيح نه دی نو په دے دويم قسم کښې حدسيات، تجربيات، او متواترات هم داخل دی ځکه د هغوی باره کښې هم دا فيصله ده چه غالب ګمان دادے چه دا حدسيات تجربيات او متواترات صحيح او حق دی اګر که دا احتمال په کښې شته چه دا صحيح نه وی.

هغه قياس چه مرکب وی ده مقدمات مظنونه نه لکه ته او وائی زيد ده شپې بازار کښې ګرځی او خوك چه ده شپې بازار کښې ګرځی هغه پاګل وی نو زيد پاګل دے په دے قياس کښې غالب ګمان هم دادے چه زيد پاګل وی ليکن احتمال مرجوح دا هم شته چه زيد دی پاګل نه وی بلکه ده بازار څوکيدار دې وی يا لکه زيد ده شپې ګرځی او خوك چه ده شپې ګرځی هغه غل وی نو زيد غل دے راجح احتمال هم دادے چه زيد غل وی ليکن مرجوح احتمال هم لری چه زيد غل نه وی بلکه پوليس والا دے وی يا سپيشل برانچ والا دے وی.

قوله بسبب عدم شعور العلة: دليل دے ده حدسيات او تجربيات داخليدل په قياس

خطابي کښې قوله او عدم ...... دليل دے ده دخول ده متواترات دپاره په قياس خطابي کښې.
ولهذه ايضاً منفعة عظيمة: په دې عبارت سره مصنف فائده ذکر کوی ده قياس خطابي حاصل ئے دادی چه قياس خطابي چه علماء خطباء ، واعظين، ذاکرين دی دپاره استعمالوی چه په دی سره دنيا اوآخرت په خه کارونو دپاره ترغيب ورکوی او دنيا او آخرت ده بدکارونو نه عوامو ته ترهيب ورکوی چه دينه زان بچ کړئ.
يعنې قياس خطابي ده ترغيب او ترهيب يوه لويه ذريعه ده دغه وجي نه علماء ، خطباء يو ځوئے اجتماع ته په دی قياس خطابي سره خطاب کوی او په دی سره مجلس گرمه وی چه د خطيب بيان سره په عوامو کښې يو وجدانی او جذباتي کيفيت پيدا کيږي.
حتی کي سامعين په جذباتو کښې راشی نو بے اختياره دا نعره په خوله وی (علامه فلاں زنده باد) (قائد قدم بڑھاؤ ہم تمہارے ساتھ ہیں) وغيره وغيره،

## فصل القياس الشعری

غرض د مصنف په دی فصل کښې بيان د څلورم قسم د صناعات خمسۆ دے چه هغه قياس شعری دے.

قياس شعری تعريف مصنف په دی عبارت سره کوی:

قياس مؤلف من المخيلات الصادقة او الكاذبة المستحلية او الممكنة.

يعنې قياس شعري هغه قياس دے چه دا جوړے شوے وی د هغه مقدمات نه چه هغه خيالی وی او سړے خوشحاله کوی يا خفه کوی برابره خبره د چه صادقي دی او که کاذبي، او که صادقه وی نو بيا برابره خبره دی چی ممکنې وی او که محالئ مقدمات خياليه هغه مقدمات ته وئيلے شی چه په هغې تصديق نه وی حاصل بلکه په هغې باندے تخيل حاصل وی او تخيل يو قسم دے د تصور نه تخيل ديته وائی چه علم راشی په يو نسبت تامه خبريه باندے خو په دی نسبت تامه کښې نفس ناطقه لحاظ د مطابقت او د عدم مطابقت د واقع سره نه وی کړے او ده مقدمات خياليۆ نه سړے خوشحاله او خفه کيږی ځکه چه نفس څنګه د صحيح خبرو او د يقيناتو تابع کيږی دغه رنګه نفس د خيالات نه هم متاثره کيږی او د هغي تابع کيږي بلکه بعض اوقاتو کښې د خيالاتۆ نه ډير متاثره کيږي مثال د هغې چه شعر مشتمل وی په

خیالات صادقؤ باندی او نفس په هغی خوشحاله کیږی لکه:

ځما پښتون تندی سره د زخم تاج مزه کا
داستا پښتنی سترګی د رنجو په لوپټه کښ
ځما شوخه ځوانی په بارودی واسکټ خه ښکاری
دا ستا نازك بدن د ستارو په لوپټه کښ
پټکے مو د ځوانانو د غیرت ترجمانی کړی
عزت او خائست وی د جینکو په لوپټه کښ
(مفتون)

په اردو کښ مثال لکه:

رُخِ مصطفٰی ہے وہ آئینہ کہ اب ایسا دوسرا آئینہ
نہ ہماری بزم خیال میں نہ دکانِ آئینہ ساز میں

او چه د نفس د هغی په اوریدلو سره خفه کیږي لکه:

تمام غنچہ وگل داغِ دل بنے کیفی خزاں نصیب بہاروں سے کیا لیا میں نے

والغرض من هذه الصناعة ان ینفعل النفس باالترهیب والترغیب:

دي عبارة سره مصنف فائده د قیاس شعری ذکر کوی چه ده قیاس شعری فائده داده چه دا په نفس کښ ترغیب او ترهیب پیدا کوی یعنی کوم کار چه کول مناسب وی د هغه شوق پیدا شی او کوم کار نه چه منع کول مقصد وی هغه نه ویره پیدا شی.

د ترغیب ده پاره مثال چه یو کار ته مثلا جهاد ته ترغیب ورکول وی لکه دا اشعار شو:

چه ښکاری لیونو ته لیونی ځومره مزه کا
په ټول کلی اولس کښ داسړی ځومره مزه کا
سینګارچه ئے ځوانی په کمربند او په ټوپك وی
زلمیو کښ هم دغه شاه زلمی ځومره مزه کا
طالبه ښائسته ږیره توري زلفی دے زړګی وړے
خو بل درسره ګرانه تور پټکے ځومره مزه کا
ساده ساده وطن چه په شرعی ښکلا سینګار شی
رنګین رنګین ده وینو پسرلی ځومره مزه کا

یا ترغیب وی خه اعمالو کولو ته او خه کردار خپلولو ته لکه دا اشعار شو:

دا چه ربه بنیادم قیمتی کیږی
ستا په فضل او کرم قیمتی کیږی
هغه یاد کړه چه حرم پری قیمتی دے
دا پریږده چه په حرم قیمتی کیږی
تور رانجه د تورو سترګو قیمت نه دے
داد تورو شپو په نم قیمتی کیږی
ځما خوار زخمی زړه به لویه خدایه!
ستا د رحم به مرهم قیمتی کیږی
کاش که زه خاوره د هغه چا د ښپو وے
چه ئے خاوره په قدم قیمتی کیږی
خوشحالی یوه نشه ده سپکه وی دی
سړے کله په غم قیمتی کیږی
وخته! ښه تور غمونه راته راکړه
سپین کاغذ په تور قلم قیمتی کیږی
که د زړه ګل قیمتی غواړی مفتونه
داد اوښکو په شبنم قیمتی کیږی
(مفتون)

یا په هغه شعر کښې ترهیب ورکول وی لکه دا شعر شو:

کسی خاکی پر مت کر خاک اپنی زندگانی کو جوانی کر فدا اس پر کہ جس نے دی جوانی کو

يا لكه دا شعر شو:

فحاشی بڑھ نہ پائے کہ یہ آنچل چھین لیتی ہے
خلش رشتوں میں بڑھ جائے تو کاجل چھین لیتی ہے (ذاکر)

واشترط في الشعر: غرض ده مصنف ده دے عبارت نه دادے چه شعر كښې دا شرط دے چه دا به د صرف او نحوے ده قواعد مطابق وی كه ده قواعدو ده لغت مطابق نه وو نو هغه ته بليغ او فصيح شعر نه وئيلے كيږى.

مشتملاً علىٰ استعارات بديعةٍ رائعة وتشبيهات انيقة فائقة الخ:

دارنګه په شعر کښې دا شرط دے چه دے به مشتمل وی په عجيبه او شاندارو استعاراتو او دارنګه په اعلیٰ تشبيهاتو هغه اشعار چه مشتمل وی په خيالاتو تشبيهاتو او استعاراتو باندے لکه:

ځان چه سنګار کړی تورو سترګو له لکئ اوباسی
زما د زړه د کوره کډی خوشحالئ اوباسی
ستا د مستئ غرور به يو بادِ زمبور ماتوی
څما د زړه د چوپال ستنی خوسيلئ اوباسی
(امير جان)

(استعارة)

او چه مشتمل وی په تشبيهه باندے د هغے دپاره مثال لکه:

کبھی صحرا ترا لہجہ کبھی بارش تیری باتیں
متاعِ زیست ہے نینا یہی غربت یہی دولت
کبھی ٹھنڈا ترا لہجہ کبھی آتش تیری باتیں
کبھی کاسہ ترا لہجہ کبھی بخشش تیری باتیں

ويورث فرحًا او يوجب ترحًا: يعنی دا د شعر کمال دے چه کله په نفس کښې دا ښے اثر اوکړی چه نفس خوشحاله شی او کله په نفس کښے داسې اثر اوکړی چه نفس خفه غمجن شی. بعض هغه اشعار چه نفس کښې خوشحالی او جذبه د جهاد پيدا

دا ثبوت د خپلواکۍ لیلیٰ ته ښایو
لیونی په صحراګانو باندے ولۍ
مونګه د جوند په قدر دومره خه پوهیږو
چه ځانونه دشمنانو باندے ولۍ
مظلومان د ترحم ځادر کښې نغاړو
د غم غشې ظالمانو باندے ولۍ
مونږ په ښکلو باندے سره ګلونه شیندو
خو بدرنګ خلقِ بوټانو باندے ولۍ
پاك الله داسې عجیب طاقت راکړی
چه شاهان په ملنګانو باندے ولۍ
(مفتون)

او هغه اشعار چه نفس کښې خفګان پیدا کوی لکه ده اردو دا بعض اشعار شو:

اوزار تھما دیتی ہے ہاتھوں میں غریبی
ہر طفل کی قسمت میں کتابیں نہیں ہوتی



غربت نے اڑایا ہے میرے فن کا مزاق
تیری دولت نے تیرے عیب چھپا رکھے ہیں



یہاں مزدور کو مرنے کی جلدی یوں بھی ہے محسن
کہ زندگی کی کشمکش میں کفن مہنگا نہ ہو جائے



چہرہ بتا رہا تھا کہ مارا ہے بھوک نے
حکیم یہ کہ رہے تھے کہ 'کچھ کھا کہ مر گیا'

ومن ثم لا يجوز فيه استعمال الاوليات الصادقة: يعني هر كله چه په قياس شعرى كښې دا شرط دے چه دے به مركب وى د مخيلاتو نه نو جائز نده استعمال ده قضايا

اولیو صادقؤ ځکه په قضایا اولیات باندے علم تصدیقي وی او تخیل نو قسم دے د تصور نه.

ویستحسن استعمال المخیلات الکاذبة: یعني په دے شعر کښ خیالی حرے خصوصا چه هغه مشتمل وی په دروغؤ او مبالغه باندے د هغے استعمال ډیر ښه دے د دے دپاره تائید مصنف د عارف ګنجوی قول هم پیش کړے دے چه دا بزرګ خپل بچئ ته چه ده ده د جګر ټکړه (lovely son) ده دا وصیت کوی څخه شعر او شعر فن نه ځان لرے ساته دا ښه کار نه دے او دا وصیت ئے په دے بیت کښ کړے دے:

در شعر مپیچ و در فن او
چوں اکذب اوست احسن او

یعنی ده لچر شعر(Feeble couplet) او د هغه د فن نه ځان بچ ساته ځکه چه کوم شئ دروغ وی هغه په دا قسم شعر کښ ډیر ښائسته وی.

وکقول القائل: سره مصنف مثال پیش کوی چه دروغ خبری لره چه شعر کښ مرچ مصالحه ورکړے نو هغه نه یو vip کلام جوړیګی ګوره کنه دي دروغؤ ته چه یو شاعر ده خمرؤ، او ده محبوب، صفت کوی:

لها البدر کأس وهي شمس یدیرها
هلالٌ وکم یَبدوا إذا مزجت نجم



یعنی شرابؤ دا کاسه په شان ده څوار لسمے سپوږمئ ده (په پرق پروق کښ) او دا شراب پشان د نمر دی (په چهمك دهمك کښ) او دي کاسئ دپاره اړوی راړوی هغه ګوتئ ده محبوب چه پشان ده اولی میاشت دی. (یعني محبوب ګوتی نری سپینئ خائسته کری وری دی په هغه ګوتو سره کاسه د شراب نیوی کله چاته ورکوی کله چاته).

او چه کله دي شرابؤ سره څه شئ مثلا اوبه ګډ شی نو په شرابؤ کښ بیا غوړ پرق پروق پشان د ستورو ښکاری نو پوره میاشت، نمر، او اول میاشت ، او ستوری دا ټول چه یو ماحول کښ جمع شی نو دا مزه څه په الفاظو کښ نشم بیانولے. (دا وو

مقصد د شعر)

په دے شعر کښې شاعر ټول دروغ وئیلی دی لیکن هغه له ئے داسے مصالحه ورکړي د چه حقیقت ښکاریږی.

وقال شاعر په دے مثال سره مصنف دویم مثال پیش کوی چه دروغ او خیالئ خبره په شعر کښې ډیر ښائسته کیګی. لکه دا شعر شو:

لَاتَـعـجَـبُـوا مِـن بِـلـىٰ غِـلَالَـتِه
قَـدزُرَّ اِزرَارُه عَـلَـى الـقَـمَـرِ

تاسو تعجب مه کوئ د زوړوالی د 'بنین' د محبوب نه ځکه د ده تنړی (batton) تړلے شوے دی په سپوږمئ باندی- د شعر مطلب دادے چه ځما د محبوب دا بنین زوړ دے دا خبره منم خو د دي وجه داده 'چه ځما محبوب پشان د سپوږمئ دے او بنین ده ده جوړ دے د کتانُ کپړی نه او کتانُ کپړه سپوږمئ ته نشی ټینګیدے زر زړیګی نو ده ده دا بنین که زوړ وی او سُورے سُورے، وی نو دا څه عیب نه دے بلکه دامحبوب ده حسن ده جهلکو یو دلیل دے ، دیته مبالغه فی التشبیه یا خیالی دروغ ویلے شی ، په عربئ کښې یو بل مثال لکه :

قالت سمنتَ فأین اثار الهوٰی ؟ لو کنتَ تعشقُنی لکنتَ نحیلا
فاجبتُها کتم الدموعِ عن الوَرىٰ قد زاد من وزنی فَصِرتُ ثَقِیلا




حالانکه دا 'سوچه' دروغ دی . پښتو کښې مثال :

تاسره تشبیه ورکوم شمعی او سپوږمئ ته
د دینه زیات به څه وی ادب د رنړا ګانو؟'

اردو کښې مثال :

تشبیہ دوں تو کس سے کہ تیرے حسن کا ہر رنگ
نیلم الگ، زمرد الگ، یاقوت الگ، مرجان الگ

وقد ينتج اجتماع النقيضين: يعنې اجتماع د نقيضين خو عامو حالاتو کښې ممنوع ده ليکن په قياس شعري کښې اجتماع د نقيضين جائز ده ځکه ده شعر مدار اکثر په خيال باندے وی او په خيال کښې اجتماع دنقيضين راتلے شي مثلاً:

انا مظهر الحوائج با اللسان مظهرها با المدامع (صغریٰ) يعنی ځه خپل حاجتونه په ژبے سره پټ ساتم (چاته اظهار نه کوؤم) او ښکاره کوم حاجتونه په اوښکو سره (يعنې د سترګو نه اوښکې روان کړم نو خلقو ته پته اولګی چه يار محتاجه دے)

وکل مضمر الحوائج صامت وکل مظهرها متکلم (کبریٰ) هر څوك چه خپل حوائج پټ ساتی چه هغه صامت دی او چه څوك ئے ښکاره کوی نو هغه متکلم وی نو حد اوسط چه مضمر الحوائج او مظهرها دے لرې کړی نو نتيجه به دا شی انا صامتٌ و متکلمٌ. او دي نتيجه کښې اجتماع ده نقيضينو راغلي ده چه صامتٌ او متکلمٌ دے او په پښتو شعر کښې چه اجتماع د نقيضين راغلي وی لکه:

د عجيب خصلت خاوند وو ورته فکر حيرانيکی
هم پخپله پسرلے وو هم خزان سره خزان
هم بادشاه وو هم ملنګ وو عجيب غونډے انسان وو
هم خوږ وو هم به تريخ وو يو بنده وو ده رحمان
(نجم)

په اُردو کښې مثال لکه:

ہمیشہ استحالہ سن رہے تھے دو نقیضوں کا
رخ دلدار کی زلفوں نے توڑا گر حکیموں کا
اکٹھا کفر وایمان ہے رُخ دلدار کے اندر
نہ پوچھو کیا مزہ ملتا ہے پس دیدار کے اند ر
(توضيحات)

او په عربئ کښې مثال لکه:

الحبُّ فيه حَلاوَةٌ وَمرارة والحبُّ فيه شقاوةٌ وَنَعيم
الحبُّ أهوَنُ مايکون مبرح والحبُّ اصغرمايکون عظيمُ

الظرف والظرفاء ص ۵۴ لابی الطیب محمد بن اسحق بن یحیی الوشاء هکذا ذکر ابن الجوزی رحمه الله ، انظر اخبار النساء لابن الجوزی ص ۱۵۶ ☆اختر حسین علی حفظه الله☆

ولا یشترط الوزن فی الشعر : غرض د مصنف د دے عبارة نه یو اختلافی مسئلے ته اشاره کوی او هغه مسئله دا د چه آیا وزن په شعر کښې شرط دے او کنه نو علماء د منطق په نزد شعر وئیلے کیګی هغه کلام ته چه مرکب وی د خیالاتو ، استعاراتو او تشبیهاتو نه فقط برابره خبره ده چه وزن پکښې وی او که نه وی او د علماء د ادب په نزد شعر هغه کلام ته وئیلے کیګی چه مرکب وی د خیالاتو نه او مشتمل به وی په وزن باندے.

فائده: چه دوه فقرے په وزن کښې برابر وی لکه ''وَنَمَارِقُ مَصفُوفَةٌ وَزَرَابِيُّ مَبثُوثَةٌ، او چه وزن کښې برابر نه وی لکه والمُرسَلٰتِ عُرفاً فَالعٰصِفٰتِ عَصفاً.

نعم یفیده حسنا: یعنی وزن په شعر کښې په نزد د علماء د منطق شرط نه دے البته منع هم نه دے په وزن سره د کلام حسن کښې اضافه کیګی.

والکلام الشعری الخ: یعنی کلام شعری چه، مشتمل شی په وزن باندے او بل په ښائسته اواز سره اداء شی نو دا بیا بالکل د ''سونے پہ سہاگہ'' مصداق شي ، داسې کلام په سامعینو ډیر اثر کوی. حتی که بعض اوقاتو کښې چه داسې کلام په ښائسته آواز او وزن او په VIP ترنم سره اداء شی نو سامعین په وجد او رقص کښې راشی نو بیا ئے توپئ او پګړی هم ده سرونو نه اوغورځیګی او د هر یو نه بیا بے اختیاره داآوازونه اوځی "ډیره ده ډیره" ده. ماشاء الله ارشاد جی ارشاد، واه جی واه، یو ځل بیا اووایه''

هم ده دے وجه نه د یونان پخوانی حکماء د شعر سره ډیره دلچسپي ساتله ځکه بعض اشعارو سره د انسان دل و دماغ باغ و بهار شی.

فصل القیاس السفسطی: په دے فصل کښې بیان ده قسم خامس دے ده صناعات خمسؤ نه او په دے فصل کښې به مونګ پنځه خبرے ذکر کوؤ.

(۱)معنی لغوی ده قیاس سفسطی. (۲) معنی اصطلاحی ده قیاس سفسطی
(۳) اقسام ده قیاس سفسطی (٤) حقیقت ده قیاس سفسطی
(٥) فائده ده قیاس سفسطی.

اوله خبره: سفسطی ماخوذ دے ده سفسطۀ نه او سفسطه دا لفظ مرکب دے ده سوف او اسطا نه چه دا ده یونانی لغت دے سوف معنی علم او اسطا معنی غلط نو ده سفسطه معنی غلط علم او فاسد علم.

دویمه خبره: قیاس سفسطی هغه قیاس ته وائی چه دا مرکب وی ده داسې مقدمات نه چه هغه وهمیه وی. او غلطی وی.

دریمه خبره: قیاس سفسطی په دوه قسمه دے. اول قسم دادے چه قیاس سفسطی هغه قیاس دے چه مرکب وی ده داسې مقدماتو نه چه هغه وهمیه وی او دروغ وی یعنې داسې دروغ وی چه ده هغی ایجاد وهم کړے وی.

کقیاس غیر المحسوس علی المحسوس لکه غیر محسوس شئ په محسوس شئ باندے قیاس کړي مثلا ته اووائے غیر المحسوس موجود (صغریٰ) وکل موجود مشار الیه( کبریٰ) غیر المحسوس مشار الیه (نتیجه) دا اوس قیاس سفسطی دے ځکه ده ده مقدمات کښې کبریٰ غلطه ده چه هر موجود شئ مشار الیه وی (یعنی هر موجود ته اشاره حسی کیږی) دا ځکه غلطه ده چه ډیر اشیاء داسې دی چه موجود دی لیکن مشار الیه نه دی لکه واجب تعالیٰ عقول حرارت برودت وغیره. نو دا قیاس فاسد دے ځکه دے کښې غیر محسوس په محسوس قیاس کړے شوے دے چه محسوس مشار الیه دے نو غیر محسوس به هم مشار الیه وی (وهذا القیاس فاسد)

ولولا رُد العقل والشرع حکمَ الوهم لدام الالتباسُ بینهما:

په دے عبارة کښې مصنف ذه جمله معترضه په طور باندے د باری تعالیٰ دوه نعمتونه ذکر کوی اول عقل دویم شَرعَ که دا دوه نعمتونه چه عقل او شَرعَ دی نه وے نو د صحیح خبرو او ده وهمی خبرو مینځ کښې امتیاز به نه وه راغلے لیکن باری تعالیٰ دا دوه نعمتونه راکړی دي د دے په وجه باندے مونږ معلوموؤ چه کومه خبره او کوم قیاس صحیح او کوم غلط او فاسد دے. (یاربِّ لكَ الحمدُ کما ینبَغِي لجلال وجهِك وعظیمِ سلطانِكَ).د دے وجے نه کوم خلق چه د عقل او د شریعت نه محرومه دی نو هغوی په مختلفو ظلماتو او اوهامِ باطلؤ کښې غرق دی اگر که د دنیا په اعتبار سره ډیر ایجوکیټډ(educated) او (well known)ولی نه وی ځکه یو شاعر فرمائی

ڈھونڈنے والا ستاروں کی گزرگاہوں کا　　اپنے افکار کی دنیا میں سفر نہ کر سکا
جس نے سورج کے شعاعوں کو گرفتار کیا　　زندگی کی شبِ تاریک سحر نہ کر سکا

او من الكاذبة المشبهات با الصادقه: په دې عبارة کښې مصنف دويم قسم د قياس سفسطي ذكر كوى چه دويم قسم د قياس سفسطي دادے چه مركب وى د هغه قضاياؤ نه چه هغه دروغ وى د دويم قسم او اول قسم مينځ کښې فرق دادے چه دويم قسم قضايا هم دروغ وى ليكن د صحيح قضاياؤ سره مشابهت لرى په دے شان سره چه عقل ورته اوګورى نو ګمان ورباندے كوى چه دا قضايا اوليه يا مقبوله يا مشهوره يا مسلّمه دى ځكه ظاهرى ډانچه کښې د هغوى سره مشابهت لرى حالانكه حقيقت کښې د يو قسم نه هُم نه وى.

دا مشابهت د قضايا صادقو سره په دوه قسمه دے.

(۱)چه مشابهت لفطا راغلے وى لكه ده اوبو چينړ باره کښې اووئيلے شى. هذا عين (صغرىٰ) وكل عين يستفيئ بها العالم (كبرىٰ) فهذه العين يستضيئ بها العالم (نتيجه) دې قياس کښې صغرىٰ چه كوم عين دے ده هغے نه مراد چينه ده او كبرىٰ کښې چه كوم عين دے د هغے نه مراد نمر دے استضاء العالم د كبرىٰ (عين) سره كيږى نه د صغرىٰ (عين) سره نو دې قياس کښې عين کښې لفظى مشابهت راغلے دے معنوى نشته نو نتيجه هم فاسده ده.

او چه معنوى مشابهت راغلے وى د صحيح قضيئ سره هغے دپاره مثال لكه ته په ديوال د انسان تصوير او وينئ او بيا اووائى هذا انسان (صغرىٰ) وكل انسان حيوان (كبرىٰ) فهذا حيوان (نتيجه) دا نتيجه فاسده ده ځكه تصوير حيوان نه وى اګر چه معنوى مشابهت ئے د صحيح قضاياؤ سره دے ځكه صغرىٰ او كبرىٰ دواړو کښې انسان معنىٰ سرے دے دا نتيجه ځكه فاسده ده چه صغرىٰ کښې چه كوم انسان دے د هغے نه مراد صورة د انسان دے او كبرىٰ انسان نه مراد حقيقى انسان مراد دے.

وهذا الصناعة كاذبة: مصنف په دے عبارة سره څلورم غرض ذكر كوى چه هغه حقيقت د قياس سفسطى دے نو فرمائى، چه حقيقت ده قياس سفسطى دادے چه

قیاس سفسطی ټوله دو نمبری او ملمع سازی ده او د 'دروغږ ډیپو' دے لکه 'وسپنې یا پیتلؤ' د پاره چه ده چاندئ اوبه ورکړے شی، نو قیاس سفسطی هم دغه سے دے. ظاهر ئے صحیح ښکاری لیکن حقیقت ئے غلط او فاسد دے.

نعم نافعة باالعرض بان صاحبها لایغلط ولا یغالط: په دے عبارة سره مصنف پنځم غرض ذکر کوی چه فائده د قیاس سفسطی ده' حاصل ئے دادے چه د قیاس سفسطی یو فائده داده چه څوك په قیاس سفسطی کښ مهارت او سپیشیلیټی (Specialty) حاصله کړی نو هغه ته دنیا کښ دوه انعامه حاصلیگی. (۱) پخپله به نه غلطیگی. (۲) بل څوك به ئے هم نشي غلط کولے. او دا د مؤمن علامت هم دے کما فی الحدیث (المؤمن لایخدع ولا یخدع) دا ئے یو فائده شوه. دویمه فائده داده مصنف په دے عبارة سره کړے ده. ویقدر علی ان یغالط غیره وان یمتحن بها او یعانده : حاصل ده دویمے فائدے دادے چه کوم سړے چه په قیاس سفسطی کښ مهارت لری او ده ده خصم ضدی او سرکش وی نو داسے عنادیانو دپاره دا ښه هتیار دے د قیاس سفسطی په ذریعه باندے هغه معاند خصم دپاره زیر کولے هم شی او ده د په ذریعه د هغه نه یو دوه هم خطاء کولے شی او هر هغه هتیار چه په هغے سره معاندین او سرکش خلق پخیږی هغه ښه هتیار وی نو قیاس سفسطی هم ښه هتیار دے. د ده ښه والی پته هم په داسې موقعه لګی.

وصاحب هذه الصناعة: غرض د مصنف د دے عبارة نه یو جدیده اصطلاح ذکر کوی حاصل ئے دادے چه کوم سړے چه قیاس سفسطی د یو منطقی او فلسفی خلاف استعمالوی (یعنی د ده خصم فلسفی وی) نو دے استعمالوونکی ته سوفسطائی وئیلے شی. داده ده تمغه امتیاز ده او دے فن ته سفسطه وئیلے شی. سفسطه معنیٰ حکمت باطله او که د ده خصم فلسفی نه وه عام مُلا وه نو ده ته بیا مشاغبی وئیلے شی. او دے فن ته مشاغبه وئیلے شی. مشاغبی معنیٰ جهګړالو، مشاغبه معنیٰ یوبل سره جهګړه کول.

وعلی التقدیرین: دینه وروسته مصنف دا ذکر کوی چه. که څوك په قیاس سفسطی سره فلسفی سره بحث کوی یا غیر فلسفی سره بحث کوی په هر صورة دا قیاس فاسد

دے یا د وجه د ماده نه چه ماده ئے غلطه وی او یا د وجه د صورة نه او یا د دواړو وجو نه.

سوال : مغالطه ، او سفسطه ،کښې څه فرق دے؟

جواب : مغالطه عامه ده او سفسطه خاصه ده ځکه ده سفسطی ټول مقدمات یا به وهمیه کاذبه وي او یا به کاذبه مشابهه بالصادقه وي په خلاف د مغالطی نه ، ده هغي مقدمات داسي نه وي نو هره سفسطه مغالطه ده لیکن هره مغالطه سفسطه نه ده مثلا الانسان حیوان ، والحیوان جنس ، فالانسان جنسٌ ، دا مغالطه ده ، دي کښې کلیت د کبریٰ نشته ځکه نتیجه فاسده ده، لیکن سفسطه نه ده ځکه دا مقدمات په حقیقت کښې صحیح دی .

## فصل فی أسباب الغلط :

انسان کله کله قیاس جوړ کړی لیکن د هغے نتیجه غلطه راشی کله کله مقدمات د قیاس غلط وی د دی اسباب څه دی؟ نو په دے فصل کښې مصنف د غلطئ اسباب ذکر کوی حاصل ئے دادے چه د غلطئ اسباب څه ډیر دی لیکن د هغے نچوړ په دوو شیئونو کښې راغلے دے. (۱) سوء فهم ، اول سبب ،غلط فهمی ، یعنی انسان د غلط فهمی او د کم فهمئ د وجه نه په غلط نتیجهٔ اورسی. او د غلط فهمئ سبب څه دے نو هغه مصنف په دے عبارة سره ذکر کوی نو دا سبب السبب شو.

بسبب انغماس النفس فی ظلمات الوهم: د وجه د داخلیدو ده نفس نه په تیارو د وهم، یعني د انسان په قوة عاقله باندے قوة واهمه غالب شی بیا د صحیح او د غلط په مینځ کښې تمیز نشی کولے غلط شئ ورته هم صحیح ښکاری مثلا الهواء لیس بمبصر (صغریٰ) وکل مالیس بمبصر فهو لیس بجسم (کبریٰ) فالهواء لیس بجسم (نتیجه) دا نتیجه فاسده ځکه ده دی قیاس کبریٰ غلطه ده چه کُلّ مالیس بمبصِر فهو لیس بجسمٍ.

ځکه ہواء اگر که مبصره نه ده لیکن جسم لری اگر که هغه جسم لطیف او باریك دے ښکاری نه ته گوری نه چه هواء د کلوکانو په حساب په بازار کښې خرڅیږی دارنګه د نمبرو په حساب په ټائیرونو کښې اچولے کیګی دارنګه هواء سره

ډیر معاملات د ذوی الاجسامو کیږی ـٰ دویم سبب د غلطئ مصنف په دے عبارة سره ذکر کوی اشتباه الکواذ ب بالصوادق.

دویم سبب حاصل دادے چه کله کله قضا یا کاذبې مشابه شي د هغه قضایاؤ سره چه صادق وی د دغه اشتباه د وجه نه غلطی راشی، په دے کښ تفصیل دے چه اشتباه څنګه راځی؟ اوکله راځی ؟او ولې راځي؟ هغه به انشاء الله په خپل مقام کښ د هغے تفصیل ذکر کوؤ. بعضی علماء فرمائی چه د دغه غلطیانو چه څومره اسباب دی ده هغی نچوړ صرف یو سبب دے او هغه دادے چه شئ او د هغه مشابه مینځ کښ امتیاز نه کول پس دغه بنیادی سبب دے د ټولو غلطیانو دپاره کچرته د دې سبب تدارك اوشی نو بیا به انشاء الله ډیري غلطیاني نه راځی.

فصل عدم التمیز بین الشئ وشبهه الخ:

شئ او د هغه مشابهه په مینځ کښ عدم امتیاز دا په دوه قسمه دے.

(۱)دا عدم امتیاز به یا په اعتبار د لفظ سره وی دویم قسم دادے چه دا عدم امتیاز به په اعتبار د معنیٰ سره وی. (یعنی د عدم امتیاز تعلق به یا د لفظ سره او یا به د معنیٰ سره وی)

قسم اول یعني چه عدم امتیاز به په اعتبار د لفظ سره وی د د ټول اقسام اته جوړیږي تفصیل ئي دا دے چه عدم امتیاز په اعتبارد لفظ سره په دوه قسمه دے .

(۱) اول قسم عدم امتیاز به د ترکیب د جهة نه وی (۲) دویم قسم دادے چه دا عدم امتیاز د ترکیب د جهة نه وی. دیکښ دا اول قسم چه عدم امتیاز په مابین ه شئ او د هغه مشابهه کښ په اعتبار ده لفظ سره وی او د جهة د ترکیب نه نه وی دا بیا په پنځه قسمه دے.

---

ـٰ: قال الامام الغزالی رحمه الله : فمن عبد جسمًا فهو کافر باجماع الائمة السلف منهم والخلف سواء کان ذلک الجسم کثیفاً کالجبال الصم الصلاب او لطیفاً کالهواء والماء، وسواء کان مظلمًا کالارض او مشرقًا کالشمس والقمر والکواکب، او مشفًا لا لون له کالهواء او عظیمًا کالعرش والکرسی والماء او صغیرا کالذرة والهباء،،(الجام العوام عن علم الکلام ص ۳۹ )، امام صاحب د دی عبارت نه معلوم شوه چه ډیر اشیاء دی چه خلک ئي اجسام نه ګنړی لیکن هغه اجسام دی . ❁ احقر حسین علی حفظ الله ❁.

(۱)عدم امتياز به راغلے وی "بين الشئ و شبهه" د وجے د اشتراك لفظى نه يعني دا لفظ به مشترك وی په دوو يا ډيرو معانيو كښ نو د دې اشتراك د وجے به امتيار نه كيږي. په معانيوؤ كښ نو نتيجه با فاسده راځی. مثلا "هذه عين وكل عين يستضئ بها العالم فهذه العين يستضئ بها العالم" دے مثال كښ نتيجه ځكه فاسده ده، چه عين د اوبو چينه ته وائی. او په هغے سره استضاء د عالم نه راځی بلكه استضاء عالَم په

هغه عين سره راځی چه هغه نوم د نمر دے نو دا استضاء ثابت شو د اوبو چينی، دپاره نو نتيجه فاسده شوه. او چينې د پاره استضاء ځكه ثابت ده، چه حد اوسط چه صغرئ او كبرئ كښ مكرر كيږي نو هغه به شئ واحد وی دانشي كيدے چه هغه حد اوسط نه به په صغرئ كښ يو شئ مراد واخلے او په كبرئ كښ بل شئ مراد واخلے. (۲)يا به دا اشتباه راغلے وی "بين الشئ و شبهه" د وجه د عدم امتياز بين المعنئ الحقيقی والمجازی نه لكه "زيدٌ اسدٌ و كل اسدٍ له مخالبُ فزيدٌ له مخالبُ". په حقيقت كښ مخالب د هغه اسد دپاره وی چه هغه حيوان مفترس دے او دلته زيد دپاره ثابت شويدے نو نيتجه فاسده شوه د وجه د عدم امتياز نه بين المعنئ الحقيقی والمجازی ځكه د اسد اطلاق په حيوان مفترس حقيقةً دے او په زيد مجازًا دے. (۳) يا به دا عدم امتياز "بين الشئ و شبهه" راغلے وی د وجه د 'گردان' يا صيغی د وجی نه لكه 'مختار' شو. اوس په دے لفظ كښ اشتباه ده چه آيا دا صيغه د اسم فاعل ده او كه صيغه د اسم مفعول ده، د دې اشتباه سبب گردان دے صرف لفظ نه دے ځكه كه د ده اصل مختيِر شی په كسری د ياء سره نو بيا صيغه د اسم فاعل ده او كه اصل ئے مختيَر شی په فتحے د ياء سره نو بيا صيغه د اسم مفعول ده. (٤) يا به اشتباه راغلے وی بين الشئ و شبهه د وجه د اعجام (نقطه) نه يعنی كه نقطه وی نو بيا هم معنئ وی او كه نقطه نه وی نو هغه لفظ بيا هم معنئ لرى نو لوستونكے اشتباه كښ واقع شي چه كومه معنئ مراد ده مثلا (*حبل*شو) لوستونكے حبل، هم وئيلے شی او ،جبل، هم لوستلے شی او ، خبل ، هم لوستلے شی او ،چپل، هم لوستلے شی ، او د ټولو معنی بدل ده يا لكه *قفيز بز*شولوستونكے قفيز بُرٍ هم لوستلے شی او فقير بزٍ هم

لوستلے شي . او معنیٰ د دواړو بدل د اول جملے معنیٰ د یو پیمانه غنم او د دویمے جملے معنیٰ د فقیر د کپړی. (۵) او کله به اشتباه راغلے وی بین الشئ و شبهه د وجه د اعراب نه یعنی اعراب نه کیدلو د وجی نه اشتباه راځی لکه غلام حسین شو که دا مرکب توصیفی شي غلامٌ حسنٌ بیا به ئے معنیٰ وی خائسته هلك. او که مرکب اضافی غلامُ حُسْنٍ شی بیا به معنیٰ شی د حسن غلام نو د اعراب تبدیلی سره معنیٰ کښې تبدیلي راځي نو لوستونکے باندے اشتباه راځی چه دا غلامٌ حسنٌ دے که غلامُ حُسْنٍ دے او چه اشتباه راغلي وی بین الشئ و شبهه په اعتبار د لفظ سره د جهة د ترکیب نه دا په درے قسمه دے (۱)اول قسم دادے چه اشتباه راغلي وی د وجه د مرجع ده ضمیر نه لکه ما یعلمه الحکیم فهو یعمل بما یعلمه نو که هو ضمیر حکیم ته راجع شي نو معنیٰ صحیح ده یعنې حکیم سړے په خپل علم عمل کوی او که هو ضمیر ما یعلمه ته راجع شي بیا معنیٰ غلطه ده معنیٰ به داشی چه دا علم عمل کوی. په علم باندے حالانکه عمل کول یا عمل نه کول دا ذوی العقول کار دے او علم د ذوی العقول نه نه دے نو معنیٰ غلطه شوه.

(۲) او دویم قسم چه اشتباه راغلے وی بین الشئ و شبهه د وجه د ترکیب او د افراد نه یعنی که یو لفظ مرکب ذکر شي نو معنیٰ به صحیح وی او که مفرد ذکر شي نو معنیٰ خطاء کیګی لکه النارنج حلوٌ حامضٌ (نارنج خوږ او تهریوؤ دے) حلوٌ حامضٌ مرکب ذکر شي نو معنیٰ صحیح ده لیکن که مفرد ئے ذکر کړي چه حلو او حامض نو معنیٰ غلطه ده څکه معنیٰ به داسې نارنج یا خوږ دے یا تریوؤ دے، دے دواړو کښې یو دے حالانکه مراد زمونګ دواړه دی.

(۳) دریم قسم کله به اشتباه راغلي وی بین الشئ وشبهه د وجه د جمع او د عدم جمع نه یعنی د انفصال او د عدم انفصال نه یعنی که یو شئ منفصل ذکر شي نو معنیٰ به صحیح وی لیکن که انفصال ختم شي او متصل ذکر شي نو معنیٰ به فاسده وی لکه زیدٌ طبیبٌ وماهرٌ- مطلب ئے دادے چه زید طبیب هم دے او د بل فن ماهره هم دے اوس که دا انفصال ختم شي او داسې ذکر شي چه زیدٌ طبیبٌ ماهرٌ نو معنیٰ به داشي چه زید ماهره طبیب دے د بل فن ده مهارت معنیٰ ختمه شوه حالانکه دا

معنیٰ هم زمونږ مقصود وه. په دے سبق باندے ځان پوهه کولو ده پاره په دی نقشه باندے نظر واچوه.




## فصل فی الاغاليط اللتی تقع بسبب المعنیٰ

عدم امتياز بين الشئ و شبهه چه په اعتبار د لفظ سره وی د هغے ذکر سره د اقسامو نه اوشو دے فصل کښې مصنف عدم امتياز بين الشئ و شبهه په اعتبار د معنیٰ سره ذکر کوی. دا قسم هم په دوه قسمه دے. (۱) قسم دادے چه دا مغالطه او

اشتباه د مادے دوجے نه راغلی وی چه د کومی ماده نه قیاس مرکب دے. (۲) دویم قیاس دادے چه دا مغالطه او اشتباه د صورة ده قیاس نه راغلی وی. اول قسم چه مغالطه د مادي د قیاس نه راغلی وی دا په دوه قسمه دے. (۱)مقدمات

د قیاس دپاره داسے ترتیب ورکړے شی چه قیاس صحیح وی لیکن مقدمات د قیاس صادق نه وی. (۲) صورة مقدمات صحیح وی لیکن قیاس صحیح نه وی. اول صورة د پاره مثال چه قیاس صحیح وی لیکن مقدمات د قیاس کاذبې وی لکه الانسان ناطق من حیث هو ناطق (صغریٰ) ولا شئ من الناطق من حیث هو ناطق بحیوان (کبریٰ) فلا شئ من الانسان بحیوان (نتیجه) په دے مثال کښې دري صورتونه جوړیږی او دري واړه صحیح نه دی.

اول صورت دا دے چې: من حیثُ هوناطقٌ قید په صغریٰ او کبریٰ دواړو کښې معتبر شی نو بیا صغریٰ کاذبه ده ځکه چه انسان ذات او ناطق ذاتی دے او ذاتی ذات دپاره بغیر ده څه علت او د واسطه نه ثابت وی او دی مثال کښې ناطق چه ذاتی دے د انسان د پاره ثابت شوے دے د وجه د ناطق علت کیدلو نه.

دویم صورت دا دے: که د صغریٰ کبریٰ دواړه مقدمو نه قید د من حیثُ هو ناطقٌ حذف شی نو بیا به کبریٰ کاذبه شی ځکه بیا به داسې شی الانسان ناطق ولاشئ من الناطق بحیوان. دا کبریٰ باالکل غلطه ده ځکه ناطق انسان د پاره فصل دے او حیوان جنس دے دے مثال کښې د فصل نه جنس نفی شوے دے حالانکه فصل بغیر د جنس نه نشی موجود کیدے (لان سلب الحیوان من الناطق خطاً عند کل عاقل).

دریم صورت: دا دے چې قید د حیثیتَ صغری نه حذف شی او کبری کښې باقی پاتې شي نو تکرار د حد اوسط نه راځی. ځکه قیاس کښې صغریٰ او کبریٰ دواړه مشترك وی په حد اوسط کښې او هغه په صغریٰ کښې مطلق دے چه ناطق او کبریٰ کښې مقید دے چه من حیث هو ناطق نو چه اشتراك ده صغریٰ او کبریٰ رانغلو په حد اوسط کښې یعنی تکرار د حد اوسط رانغلو نو قیاس غلط شو.

﴿ په اول دواړو صورتونوکښې قیاس صحیح دے لیکن ماده د قیاس (صغری او کبری) صحیح نه ده.

او په دريم صورت کې ماده صحيح ده ليکن قياس صحيح نه دے﴾
واما اللتي من جهة اللصورة: په دے عبارة کښې مصنف هغه دويم قسم ذکر کوی چه مغالطه په صورة د قياس کې وی يعنی قياس په داسی ډيزائن مرتب شی چه هغه نتيجه آور نه وی مثلا الزمان محيط بالحوادث (صغریٰ) والفلك محيط بها (کبریٰ) فاالزمان هو الفلك (نتيجه) دا نتيجه فاسده ده ځکه معنیٰ ئے داده زمانه آسمان دے دا فساد ځکه راغلے دے چه دا شکل ثانی دے ځکه "محيطٌ باالحوادثِ" صغریٰ کبریٰ دواړو کښې محمول دے او په شکل ثانی کښې دا شرط دے چه صغریٰ کبریٰ به ايجاباً او سلبًا مختلف وی او په مثال مذکور کښې دواړه موجبه دی نو دا نقصان په قياس کښې د وجه د صورة د قياس نه راغلو- مزيد وضاحت دپاره په نقشه نظر واچوه:



حیثیت حذف شی نو کبری کاذب لان هو من لوازم شکل الثانی ﴾
سلب الحیوان من الناطق خطأ عند کل عاقل
(۳): او که قید د حیثیت صغری نه حذف شی
او کبری کښې باقی پاتی شی نو تکرار د حد اوسط نه راځي .

والآن نذکر بعض المغالطات: دینه روستو مصنف یو څو مغالطی ذکر کوی چه دا مغالطی د صورة د قیاس نه پیدا شوی دی او ل په هغی کښې مصادره علی المطلوب د مصادره علی المطلوب دیته وائی چه دلیل موقوف شی په مدعیٰ باندے مثال لکه زید انسان (دعوه) لانه بشر (صغریٰ) وکل بشر انسان (کبریٰ) فزید انسان (نتیجه) دا قیاس فاسد دے لیکن مغالطه خصم ته په د سره ورکولے شی. او وجه د فساد داده چه ده کښې مصادرة علی المطلوب ده ځکه دلیل چه لانه بشر او مدعیٰ چه زیدٌ انسانٌ دے دواړه یوشئ دے او مصادرة علی المطلوب ځکه باطله ده چه دا مستلزم ده دورلره.

ومنها اخذ ما باالعرض مکان ما باالذات: دویم د مغالطات صوریؤ نه هغه دا صورة دے چه یوشئ باالعرض حاصل وی یعني باالواسطه حاصل وی هغه ته د هغه شئ په ځائے کیدي چه هغه باالذات او بلاواسطه حاصل وی.

د هغے د پاره مثال لکه جالس فی السفِینةِ مُتحرِّكٌ (صغریٰ) وکلُّ متحرّكٍ لایثبتُ فی موضعٍ واحدٍ (کبریٰ) جالس فی السفینة لا یثبت فی موضعٍ واحدٍ، ظاهره ده چه دا نتیجه غلطه ده دے غلطئ سبب دادے چه صغریٰ کښې جالس فی السفینة متحركٌ، دي متحرك نه مراد بالعرض مراد دے او کبریٰ کښې کل متحرّكٍ، متحرك نه مراد بالذات مراد دے نو حد اوسط صغریٰ کبریٰ کښې مساوی او مکرر نه شو نو فساد راغلو په نتیجه کښې.

ومنها ان لایتکر الاوسط بتمامه: دریم صورة د مغالطات صوریؤ نه دادے چه حد اوسط په صغریٰ او کبریٰ کښې پوره مکرر نه شی مثلا الانسان له شَعر (صغریٰ) وکل شَعرینبت (کبریٰ) الانسان ینبت (نتیجه) دا نتیجه فاسده ده او وجه ئے داده چه حد اوسط په کبریٰ کښې بتمامه نه دے ذکر شوے ځکه مکمل حد اوسط هغه ، له

شَعرٌ ، دے او دا په کبریٰ کښې نه دے ذکر شوے کبری کښې صرف ،شعرٌ ، ذکر شوے دے.

ومنها ان لایکون الا وسط متشابهاً: د مغالطات صوریۀ څلورم قسم دادے چه حد اوسط د صغریٰ او د کبریٰ موافق نه وی په صفت کښې د صغریٰ حد اوسط باالقوة وی او د کبریٰ حد اوسط باالفعل وی مثلا الساکت متکلم (صغریٰ) والمتکلم لیس بساکت (کبریٰ) الساکت لیس بساکت (نتیجه) او دا نتیجه غلطه ده ځکه دے کښې سلب الشئ عن نفسه راغلے دے او دا غلطی ځکه راغلي د چه صغریٰ متکلمٌ نه مراد باالقوه دے او ده کبریٰ متکلمٌ نه مراد باالفعل دے نو چه حد اوسط د صغریٰ او د کبریٰ موافق نه شو نو نتیجه باطله شوه.

ومنها اختلال الترکیب بسبب شك: د اغالیط صوریۀ پنځم قسم دادے چه د قیاس ترکیب کښې شك واقع شوے وی هغه شك د وجه نه په قیاس کښې خلل واقع شوے وی چه په دي قیاس کښې دا قید چه دے دا د موضوع جزء دے او که محمول نه جزء دے؟ مثلا

الانسان وحده ضاحكٌ (صغریٰ) وکل ضاحكٌ حیوانٌ (کبریٰ) نو الانسان وحده حیوانٌ (نتیجه) دا نتیجه باالکل غلطه ده چه صرف انسانٌ حیوانٌ دے او د غلطئ وجه داده چه وحده مونګ جزء د موضوع (انسان) نه اوګرځوو حالانکه دا جزء دے دمحمول ضاحك نه که داسې اوونیلے شی الانسان وحده ضاحك وکل ماهو وحده ضاحك حیوان نو حد اوسط (وحده ضاحك) مجموعه دے نو چه دا حد اوسط ساقط کړے شی نو نتیجه الانسان هو حیوان راځی او دا باالکل صحیح ده.

فا الغلط فی هذا المثال: دې عبارة سره مصنف د غلطی منشاء ذکر کوی چه د غلطئ منشاء داوه چه په الانسان وحده باندے ضاحك حمل کړے دے حالانکه وحده د ضاحك جزء وه.

ومنهاً ان لایکون الاکبر محمولاً علی جمیع افراد الاوسط:

دا د اغالیط صوریۀ نه شپږم قسم دے د دی مغالطے حاصل

دادے چه اکبر په کبریٰ کښې د حد اوسط په ټولو افراد نه حمل کیګی. مثلا کل

انسان حیوانٌ (صغریٰ) والحیوان عامٌ او جنسٌ او مقولٌ علی کثیر ین مختلفی الحقیقة( کبریٰ) کل انسانٍ عامٌ او جنسٌ او مقولٌ علي کثیرین مختلفی الحقیقه (نتیجه) دا نتیجه غلطه ده ځکه چه اکبر چه عامٌ وغیره دی، ده حد اوسط چه حیوان دے هغه ټولو افرادو ته شامل دے یعني اصغر چه انسان دے هغه ته شامل نه دے دا ځکه شامل نه دے چه دا شکل اول دے او شکل اول کښې دا شرط دے چه کبریٰ به کلیه وی او دلته کبریٰ طبعیه ده ځکه حکم ده عام جنس وغیره په طبیعیت د حیوان دے او طبیعه کلیه نه وی چه کلیه نه شوه نو نتیجه فاسده شوه.

ومنها مایقع بسبب تقدم الروابط: دا د مظالطات صوریؤ نه اووم قسم ذکر کوی. حاصل ئے دادے چه کله کله مغالطی سبب د تقدیم د حرف ربط دے د سوالبو نه او تاخیر د هغه دے یعنی کله حرف رابط په حرف سلب مقدم شی. نو یو قضیه جوړیګی او کله مؤخر شی نو بله قضیه جوړیګی. او حکم ئے هم بدل وی. نو دغه تقدیم تأخیر کښې امتیاز او نه شی نو دے سره اشتباه راځي مثلا:

زید هو لیس بقائمٍ وزید هو لیس بقائمٍ په اول مثال کښې رابط چه هو دے د حرف سلب لیس نه مؤخر دے نو دا قضیه سالبه ده او په دویم مثال کښې هو حرف ربط د حرف سلب لیس نه مقدم دے نو دا قضیه موجبه معدولة المحمول ده نو کله کله یو د بل په ځائے کیخودے شی نو مغالطه راشی.

وکذا تقدم الجهة علی السلوب وتأخرها: دغه رنګ کله کله جهت مقدم شی په حرف سلب او کله مؤخر شي چه حرف سلب په جهة مقدم وی. لکه با الضرورة ان لا یکون الانسان کاتباً. په دے مثال کښې جهة چه با الضرورة دے په حرف سلب چه ، لا، دے مقدم دے یعنی د انسان کاتب نه کیدل ضروری دی. ولیس باالضرورة ان یکون الانسان کاتبا. دے مثال کښې جهت د حرف سلب نه مؤخر دے مطلب دادے چه د انسان کاتب کیدل ضرور نه دی بلکه ممکن دی یعنی کاتب کیدل او نه کیدل دواړه برابر دی حاصل دا چه حرف سلب او جهت چه یو د بل په ځائ راشی نو معنی بدلیږی .

وتکثر السلوب من هذا الباب: په دے عبارت کښې مصنف دا فرمائی سلب په

کثرت سره استعمالول هم د مغالطه صوریو د قبیل نه دے خکه سوالب په کثرت سره استعمال شي او جُفت وی نو دا به اثبات وی لکه سلب سلب دا اثبات دے کما قال الشاعر.

دو منفیوں کی ضرب سے بنتی ہیں مثبتیں
تو بھی خدا کے واسطے کہہ دے نہیں! نہیں!

احقر حسین علی حفظہ اللہ

دارنګه سلب سلب سلب سلب دا هم اثبات دے. وعلیٰ هذ القیاس.

او که سلب وترًا استعمال شي نو دا به نفي وی لکه سلب سلب سلب حاصل دا چه د سلب استعمال جفتًا دا اثبات دے او وترًا دا نفي ده نو کله کله ده سوالب استعمال کښې هم مغالطه راځی د انسان مقصود اثبات وی او فارمولا (formula) د نفی استعمال کړي یا مقصود ئے نفی وی او فارمولا د اثبات استعمال کړي یعنی سلب ایجابی ده سلب سلبي په ځائے استعمالول او د سلب سلبی په ځائے سلب ایجابی استعمالول اغلاط صوریو نه دے.

ایجاب دپاره مثال لکه: سلب سلب یا سلب سلب سلب سلب یا سلب سلب سلب سلب سلب سلب سلب او د نفي د پاره مثال لکه سلب سلب سلب یا سلب سلب سلب سلب یا سلب سلب سلب سلب سلب سلب سلب سلب سلب داد نفی مثال دے.

ومنها اخذ الاعتبارات الذهنية والمحمولات العقلية اموراً عينيّةً:

اتم قسم د مغالطات نه دادے چه یو شئ ذهنی وی یا عقلی طور باندے حمل کیګی او هغه باندے د امر خارجی ګمان اوکړے شي مثلا الانسان کلي دے مثال کښې په انسان د کلي حکم شوے دے لیکن دا حکم ذهنی دے یعني انسان په ذهن کښې کلي دے لهذا دا ګمان کول چه انسان په خارج کښې کلي دے دا ګمان غلط دے خکه خارج کښې افراد دانسان دی او هغه اشخاص دی پدی تحقیق سره یو بله مغالطه هم حل شوه هغه داده مثلا دا دعوه ده چه الممتنع موجودٌ دلیل ئے دادے لانهُ اِنْ اِمتَنَعَ شئٌ في الخارج لكان امتناعُه حاصلاً فی الخارج (صغریٰ) صغریٰ مطلب دادے که یو

شئ په خارج کښ کیدل ممتنع وی نو خامخا امتناع به ئے په خارج کښ حاصل وی دا ظاهره ده وکُلّ ماکان إمتناعه حاصلاً فی الخارج کان موجودًا فی الخارج (کبریٰ) یعنی کوم شئ چه امتناع په خارج کښ ورته حاصله وی نو هغه به په خارج کښ موجود وی ځکه په خارج کښ موجود کیدو نه بغیر خارج کښ امتناع بیا څنګه راځي؟........................... نتیجه دا راغله.

فیکون الممتنع موجودًا فی الخارج: حالانکه دا نتیجه باطله ده دا غلطی ځکه راغله چه د امتناع موجود ذهنی دے او د کوم شئ وجود چه ذهني وی د هغه په خارج کښ موجود کیدل ضرور نه وی یعني په امتناع سره چه کوم شئ متصف شی د هغه ممتنع موجود کیدل په خارج کښ ضروری نه دی.

کما قال الشاعر:

فلا تجْعلِ الحسنَ الدلیلَ علی الفتٰی فماکُلُّ مصقول الحدیدِ یماني

(کذلک لایکون الممتنع خارجیا) دغه رنګه هر چنګ دارَے، سکے خان نه وی کما قال الشاعر:

إذا رأیتَ نیوبَ اللیث بارزةً فلا تظننّ ان اللیثَ یَبْتَسِمُ

ومنها اخذ مثال الشئ مکانه:

مغالطه صوریؤ یو قسم دادے چه د شی مثل لره د عین شئ حکم ورکول یعنی په تصویر د شئ ګمان د اصل کول او کوم حکم چه په ذات او د اصل وی هغه حکم تصویر لره ثابتول دی سره هم په انسان ګړبړیشن(confusion) راځی . مثلا ته د اُور تصور په ذهنی کښ اوکړی او بیا اوائی إنّه نارٌ (صغریٰ) وکُلّ نارٍ محرِقٌ (کبریٰ) فهو محرقٌ (نتیجه) دا نتیجه فاسده ده ځکه احراق صفت د عینِ نار دے او تا دا صفت مثل او صورة د نار لره ثابت کړو.

وهذ الاشتباه:

په دې مقام خان پوهه کولو ته مخکښ په دی خبره خان پوهه کړه چه د اشیاؤ دپاره څو وجوده دی؟ مذهب ده حکماء دادے چه اشیاؤ دپاره دوه وجوده دی. (۱)

وجود خارجی چه په هغه باندی صفات مرتب کیږی لکه د نار وجود خارجي شو په هغه احراق مرتب کیږی دویم وجود ذهنی دے یعنی د هغه شئ په ذهن کښ تصور کول دي په تصویر هغه اثار او صفات نه مرتب کیږی، او د متکلمین په نزد د اشیاء صرف وجود خارجی شته لیکن وجود ذهنی نه لری ولی که اشیاؤ دپاره وجود ذهنی ثابت شی لازم به شی حرق د ذهن په وقت د تصور د نار کښ او خرق د ذهن په وقت د تصور د جبل کښ دغه رنګه ذهن به سپین او تور شی په وقت د تصور د سواد او بیاض کښ، حالانکه دا ټول کارونه ذهن سره نه کیږی معلومه شوه چه وجود ذهنی د اشیاؤ هم نشته، مصنف د حکماء طرف نه جواب ورکوی متکلمینو ته چه د شی مثل لپاره عین د شئ حکم ورکول دا کار د متکلمینو دے چه دوې د وجود دهنی نه منکر دی او دغه مذکوره نقصانات شماری لیکن د دوې دا دلیل تام نه دی ځکه د دوې دلیل د أُخذما بِالعرضِ مَکان ما باالذاتِ د قبیل نه دے یعنی کوم شئ چه باالعرض دے هغه تاسو باالذات په ځائے استعمال کړیدے په ساده الفاظو کښ به داسی اووایو چه تاسو په تصویر باندی ګمان د اصل کړے دے ، ﴿وهذا من مَزلَّة الاقدامِ کمزلّة الاَفیالِ حین کثرةِ الاوحالِ﴾ ﴿احقر حسین علی حفظ اللہ﴾

ځکه احراق یا اخراق مثلا دا د عین نار او جبل اثاراو صفات دی او تاسو دا ثابت کړی دی مثل او صورة د نار او جبل لره دغه غلطئ سره اشتباه راغلی ده.

دویم جواب دادے چه حرق یا خرق ده ذهن هله راځی چه ذهن مادی وے حالانکه ذهن مجرد دے مادی نه دے.

<u>ومنها اخذ جزء العلة مکان العلة</u>: د اغالیط صوریو یو مثال دادے یو حکم ثابت وی علت دپاره او ته هغه حکم ثابت کړی جزء د علت دپاره مثلا اویا (۷۰) کسان یو درون کانړے اویا(۷۰) میله اوړے شی دی مثال کښ کانړے اوړل حکم دے او اویا کسان علت دی اوس ته دغه حکم جزء د علت دپاره ثابت کړی چه یو کس دے مثلا داسی اووائی چه یو کس دغه درون کانړے یو میل وړلے شی حالانکه یو کس هغه کانړے خوځولے هم نشی، دا غلطی ځکه راغله چه حکم ثابت شو د علت جزء دپاره نه د علت د پاره .

ومنها اجراء طریق الاولیة: او د مغالطه صوریو یو قسم دادے دوه شیان کښې په وخت د اختلاف کښې د اولیت طریقه جاري کړے شي. مثلا انسان د نفس ناطقه د وجه نه د چڼړ چڼړی نه غوره نه دے ځکه دواړه حیوانیت کښې شریك دی ، داخبره صحیح د چه انسان او عصفور په حیوانیت کښې شریك دی لیکن د انسان سره د نفس ناطقه تعلق دے او عصفور سره نفس ناطقه تعلق نشته نو انسان او عصفور کښې اختلاف شو او اختلاف په وخت کښې اولویت طریقه جاري کول صحیح نه دی.
لهذا داسې وئیل صحیح نه شو چه انسان د عصفور نه په سبب د نفس ناطقه اولیٰ او غوره نه دے هاں د اتفاق په وقت کښې د اولیت طریقه جاري کول صحیح دی.
مثلا زید او خالد دواړه انسانیت او نفس ناطقه کښې متفق او شریك دی لهذا دا وئیل اوس صحیح دی چه زید د خالد نه د انسانیت په وجه یا د نفس ناطقه په وجه اولیٰ نه دے. نو د اختلاف په وخت کښې اولویت طریقه جاري کول مغالطه ده.
ومنها ما وقع من قلة المبالات باالحیثیات: مغالطه صوریو یو قسم دادے چه د حیثیاتو اعتبار اونه کړے شي نو د هغی د وجه نه انسان باندی خلط او ډپریشن (departion) راځی مثلاته اووائي هر ابیض په حقیقت کښې بیاض داخل دے. حالانکه دا نتیجه فاسده ده ځکه
د زید حقیقت حیوان ناطق مع التشخص دے بیاض د زید په حقیقت کښې داخل نه دے دا مغالطه د دی وجه نه پیدا شوه چه د حیثیت لحاظ نه دے شوے ، د حیثیت لحاظ نه روسته به دا غلطی نه وی ځکه بیاض د ابیض په مفهوم کښې داخل دے لیکن من حیث انه ابیض لامن حیث انه حیوان او انسان. د حیثیاتو خیال نه ساتلو د وجه نه غلطي واقع کیږی هغی دپاره دویم مثال لکه دا قول د مناطقو شو،
مماثلُ المماثلِ مماثلٌ نحو الانسان مماثلٌ للنّخلةِ والنخلةُ مماثلةٌ للحجرِ الخ:
یعني انسان د کهجوری (date) مماثل دے او کهجوره د حجر مماثل د (په جسمیت او غیر ذی روح کیدو کښې) نو زید هم جماد او غیر ذی روح شو. قاعدي مذکوره د وجه نه چه مماثلُ المماثلِ مماثلٌ ، و لامر لیس کذالك دی مثال کښې د غلطی وجه داده چه انسان مماثلت د کهجوری سره په یو حیثیت دے چه هغه طول دے او

کهجوری مماثلت د حجر سره بل حیثیت باندی دے چه هغه جسمیت دے که د دی حیثیاتو لحاظ اوشی بیا غلطی نه راځی.

وما يوقع في الغلط: په دی عبارة سره مصنف د مغالطئ یو بل مثال ذکرکوی حاصل ئے دادی چه عدم دا مقابل د ملکه دے که ځوك دا د ضد او نقیض په ځائے کیدی نو مغالطه راځی مثلا سکون تعریف دادے چه عدم الحركة عما من شانه ان يتحرك دغه رنګه د عمی تعریف دادے عدم البصر عما من شانه ان يكون بصيرا، اوس که څوك سکون د حرکت نقیض اوګرځی او اووائی چه عقل ساکن دے ځکه متحرك نه دے دغه رنګه دیوال ته اعمیٰ او وائی ځکه چه دیوال بصر نه لری نو دا به د هغه غلطی وی ځکه سکون صرف د عدم حرکت نوم نه دے بلکه عدم ملکه نوم دےیعنی ساکن هغه شئ ته وئیلے شی چه د هغه شان نه حرکت کیدے شی لیکن حرکت نه کوی والعقل لیس کذالك دغه رنګه اعمیٰ هغه ته وئیلے شی چه د هغه د شان نه بصر وی او دیوال د شان نه بصر نه دے نو هغه ته اعمیٰ نه وئیلے کیږی.

ومن المغالطات المشهورة:

په دی عبارة سره مصنف یو بل مثال ذکر کوی د مظالطي د پاره حاصل ئے دادے چه د مجهول حاصلول محال دی ځکه د مجهول حاصلولو دوه صورتونه دی. (۱) مجهول به د حاصلولو نه مخکښ یا باالکل مجهول (مجهول مطلق) وی نو یو خو طلب د مجهول مطلق راځی دویم دا نقصان راځی چه د حاصلولو نه بعد بیا دا پته نه لګی چه دا هغه مجهول دے کوم چه مونږ حاصل کولو او که نه بل دے او (۲)دویم صورة که دغه مجهول قبل التحصيل معلوم وی او بیا ئے حاصل کوو نو تحصیل د حاصل راځی وهذا باطل باالاجماع، فأين الفرار اذا لم يكن القرار ؟

جواب د دی مظالطی دادے چه مطلوب نه باالکل مجهول دے او نه باالکل معلوم دے بلکه من وجهٍ معلوم دے او من وجهٍ مجهول دے وجه معلومي سره وجه مجهول حاصلولے شی نو طلب د مجهول مطلق هم رانغے او تحصیل د حاصل هم رانغے او چه من وجه معلوم دے نو حاصلولو نه بعد مونږ وئیلے شو چه دا هغه مجهول دے کوم

چه مونږ حاصلؤ، په دی خبره ځان په یو مثال سره پوهه کړه مثلا عبد اٰبق دے (وروك شوے غلام) د چانه غلام اوتختیدو، او دے د هغه په طلب کښ صحرا په صحرا کوځه په کوځه گرځی نو دغه غلام من وجه معلوم دے په اعتبار د ذات سره چه داسی شکل ،صورة ، ناز او انداز والا دے او من وجهٍ مجهول دے په اعتبار د مکان سره چه چرته دے؟ کله چه دغه غلام اوموندے شی نو مالك دا وئیلے شی چه دا هم هغه غلام دے کوم په طلب کښ چه څه وارخطا وم نو مالك گرځیدو ته خوك هم طلب د مجهول مطلق یا تحصیل د حاصل نه وائی.

اغلوطه: په دی عبارة سره مصنف یو بل مثال ذکر کوی د مغالطه د پاره ، دی ته مغالطه نباتیه وائی . د دی مختصر حاصل دادی چه مثلا څوك اووائی، لو لم یصدق قضیة لم یصدق زید قائم (صغریٰ) یعنی که چرته قضیه صادقه نه شی نو زید قائم به هم صادق نه شی، ځکه زید قائم هم یو قضیه ده. وکلما لم یصدق زیدٌ قائمٌ صَدَقَ نقیضُه اعني زید لیس بقائم (کبریٰ) یعنی چه کله زید قائم صادق نه شی نو د نقیض به صادقه کیږی چه زید لیس بقائم دے، نتیجه دا د کلما لم یصدق قضیةٌ صدق زید لیس بقائم حالانکه دا نتیجه غلطه ده ځکه زید لیس بقائم هم یو قضیه ده د قضایاؤ نه حاصل د مغالطی دادی چه صغریٰ او کبریٰ کښ انتفاءِ صدقِ قضیه انتفاءِ صدقِ زیدٌ قائمٌ و زیدٌ لیس بقائمٍ لره مستلزم وه او نتیجه کښ انتفاءِ صدقِ قضیه وجودِ صدقِ قَضیَه لره مستلزم دے چه هغه زید لیس بقائم دے، وهذا محال.

والحل: په دی عبارة سره مصنف د دی مغالطی حل پیش کړیدے چه د هغی مختصر حاصل ذکر کوم لیکن هغی نه مخکی یو خبره ځان سره اوډوانس کښ محفوظه اوساته چه قضیه محصوره کښ حکم په افرادو وی لکه دا خبره تاته معلومه د لیکن په قضیه شرطیه کښ حکم په تقادیرو وی، لکه څنګه چه افراد کله حقیقی وی اوٍ کله فرضی وی دغه شان تقادیر هم کله حقیقی وی او کله فرضی دغه سی افراد کله کلا وی کله بعضًا دغه سی تقادیر هم کله کلًّا وی او کله بعضًا، دی نه روسته جواب حاصل دادی چه څه تانه تپوس کوم چه کبریٰ کښ دا حکم که په تقادیرو واقعیو باندی وی (یعنی واقعی طورباندی که زید قائم صادق نشی نو زید لیس بقائم

به صادقیږی) نو دا کبریٰ منظور ده لیکن صغریٰ چه لو لم یصدق قضیه لو یصدق زید قائم. دا صغریٰ بناء د په تقادیرو فرضیو باندی یعنی دا صغریٰ فرضی د واقعی نه ده ځکه که بله هیڅ قضیه هم دنیا کښ صادقه نه وی نو الله موجودٌ الله سمیعٌ او الله بصیرٌ خو واجب الصدق دی یعنی د داسی قضایاؤ صدق په هر وخت کښ یقینی دے نو هر کله چه صغریٰ فرضی شوه او کبریٰ واقعی شوه نو ټول قیاس فاسد شو نو نتیجه کښ اصغر چه کلما لم یصدق قضیة داد اکبر چه صدق زیدٌ لیس بقائمٍ لاندی داخل نه شو نو د دی

قیاس حشر داسی شو لکه شاعر فرمائی :

خشتِ اول چو نہد معمار کج
تاثریا ے رود دیوار کج

او که په کبریٰ کښ حکم عام وی یعنی که تقادیر فرضیه وی اوکه تقادیر واقعیه وی نو بیا نتیجه کښ منم چه اصغر داخل کیږی لاندی ده اکبر نه بناء بر تقادیر فرضیه لیکن څه بیا کلیت د کبریٰ نه منم یعنی کبریٰ کښ حکم په تقدیر واقعی سره دے نه فرضی سره ځکه زید لیس بقائم هله صادقیږی چه واقعی طور باندی زید قائم صادق شی، او که فرضی طور باندی زید قائم صادق شی نو فرضی طور باندی دی زید لیس بقائم هم صادق نشی ځکه بحسب الفرض خو داسی هم کیدے شی کنه چه نه اصل صادق شی او نه نقیض ځکه محال محال دپاره مستلزم کیدے شی نو معلومه شوه کبریٰ په دواړه صورتونو کښ غلطه ده ﴿نہ اِدھر کے رہے نہ اُدھر کے رہے نہ خدا ہی ملا نہ وصال صنم،﴾ او داسی کبریٰ چه نه په تین کښ داخله وی او نه په تیره کښ ، نتیجه دپاره مستلزم نه وی (والله اعلم).

<u>ویقرب من هذه الاغلوطة</u>: کومه مغالطه چه ذکر شوه دیته قریب قریب یو مغالطه بله د هغی ته مغالطه عامة الورود وائی ده دی مطلب دادے چه داسی مغالطه د چه هرڅوك د دی په ذریعې سره خپل دعوی ثا .ت کولے شی برابره خبره ده چه هغه دعوه حقه وی او که غلطه، د هغی مختصر تقریر دادے مثلا څوك اووائی <u>المدعیٰ ثابت</u> یعنی څما مدعی ثابت ده او دلیل ئے په دی طریقه ذکر کړی.

لانه لو لم یکن المدعیٰ ثابتا کان نقیضة ثابتًا:

یعنی که څما دعوه ثابت نه وی نو بیا به ده هغی نقیض ثابت وی مثلا زید قائم صادق دے که دا صادق نه منی نو ده ده نقیض زید لیس بقائم به صادق منئ. دا صغریٰ شوه کبریٰ داده:

وکلما کان نقیضه ثابتًا کان شئ من الاشیاء ثابتًا: ده دی نتیجه داده لو لم یکن المدعیٰ ثابتًا کان شئ من الاشیاء ثابتًا، یعنی که څما دعوه ثابته نه وی کم از کم یو شئ د اشیاؤ نه به ثابت وی اوس د دغه نیتجه عکس نقیض مونږ اوباسو یعنی نقیض د مقدّم به د تالی په ځائے کیدواو نقیض د تالی به د مقدّم په ځائے کیدو نو تقدیر به داسی شی،

لو لم یکن شئ من الاشیاء ثابتا کان المدعی ثابتا:

که یو شئ هم د اشیاؤ نه ثابت نه وی نو څما مدعی به ثابته وی حالانکه مدعی هم شئ من الاشیاء ده، لهذا چه شئ من الاشیاء ثابت نه شو نو مدعیٰ هم ثابته نه شوه.

هذا خلف: دا خلاف مفروض ده ځکه مونږ دا فرض کړے وه چه دعوه ثابته ده او په عکس نقیض سره ثابته شوه چه دعوه هم ثابته نه ده او خلاف مفروض په منطق کښ لویه ګناه ده.

وَتَحیَّر العُقلاءُ فی حِلِّه فمِن قائلٍ: د دی ځائے نه روسته مصنف د مغالطه عامة الورود نه دری جوابونه کوی اول جواب چه بعض عقلاء کړیدے هغه حاصل دادی چه نتیجه چه لو لم یکن المدعی ثابتا کان شئ من الاشیاء ثابتا چه کومه شرطیه ده د دی عکس نقیض دغه مذکوره شرطیه چه لو لم یکن شئ من الاشیاء ثابتًا کان المدعیٰ ثابتا منظورنه د ځکه اصل یعنی نتیجه کښ چه کوم شئ مذکور دے هغه خاص دے ځکه هغه شئ نه مراد صرف نقیض د نتیجه دے او د نتیجه چه کوم عکس دے هغه کښ شئ عام دے ځکه عکس کښ د شئ نه مراد نقیض نیتجه او د هغه نه غیر ته هم شامل دے نو اصل خاص او عکس عام شو او عام د خاص عکس نه وی لهذا دا عکس صحیح نه دے صحیح عکس د نیتجي دادے:

کلما لم یکن ذالك الشئ ثابتًا کان المدعی ثابتًا: او په دی عکس سره خلاف

المفروض نه راځي.
وان شئت قلت بتقریر اخر : غرض د مصنف په دی عبارة سره دویم جواب ذکر کوی د مغالطه مذکوره نه حاصل د دی جواب دادی چه عکس کښې کوم شئ مذکور دے هغه عام دے نو هغه نقیض د نیتجه او غیر دواړو ته شامل دے لیکن عام په ضمن د خاص کښې موجود کیږی نو دا عام هم نقیض د نتیجه په ضمن کښې موجود دے نو دغه مذکوره عکس چه لو لم یکن شئ من الاشیاء ثابتا کان المدعیٰ ثابتًاکښې چه کوم شئ دے دی نه مراد نقیض د نیتجه دے یعنی د لو لم یکن شئ من الاشیاء ثابتا معنیٰ لو لم یکن نقیض المدعی ثابتا کان المدعی ثابتا ده یعنی که د مدعی نقیض ثابت نه وی نو مدعیٰ به ثابت وی او دا عکس صحیح دے.
ومن مجیب یجیب: غرض د مصنف په دی عبارت سره دریم جواب ذکر کوی مغالطه مذکوری نه حاصل ئے دادی چه عکس مذکور چه لو لم یکن شئ من الاشیاء ثابتا کان المدعی ثابتا دي کښې مقدم یعنی لو لم یکن شئ من الاشیاء ثابتا محال دے ځکه الواجب موجود دا هم یو شئ دے او ثابت دے نو چه کله دا قضیه ثابته ده نو دا وئیل چه لو لم یکن شئ من الاشیاء ثابتاً دا محال دے یعنی مقدم محال دے نو که دا تالی محال د پاره چه کان المدعی ثابتاً دے لره مستلزم شی نو هیڅ نقصان نشته ځکه محال خپل نقیض دپاره مستلزم کیدے شی فلا خلف،
وقد وقع الاطناب :غرض ده مصنف دی عبارت نه تر راتلونکی فصل پوری (۱) عذر ذکر کوی او (۲) بل خپل امتیازی نشان ذکر کوی حاصل د دواړو دادے چه مغالطات ما دلته تفصیلا ځکه ذکر کړل چه د منطق اکثر کتابونه د مغالطاتو نه خالی دی دا ځما امتیازی نشان دے چه دا مغالطات ما ذکر کړل لهذا د دی قدرکول پکار دی.

## فصل ولابد ان یعلم

په دی فصل کښې مصنف دا خبره ذکر کوی چه که د قیاس دواړه مقدمی برهانی نه وی بلکه یوه مقدمه برهانی وه او دویمه مقدمه جدلی، خطابی ،شعری یا سفسطی وه نو دغه قیاس ته به جدلی یا خطابی یا شعری یا سفسطی وئیلے شی برهانی نشی ،

وئیلے یعنی لکه څنګه چه نتیجه تابع ده اخس ارذل وی دغه شان قیاس هم تابع د ارذل المقدمتین وی حاصل دا چه کوم قیاس د راجح او مرجوح مقدمی نه مرکب شی هغه به تابع د مرجوح مقدمی وی او په هغه نوم سره به موسوم کیږی.

خاتمه: مصنف په خاتمه کښ دا خبره ذکر کوی چه هر علم د دریو امورو نه مرکب وی اول موضوع، دویم مبادی دریم مسائل، موضوع د علم هغه شئ وی چه په هغه کښ د عوارض ذاتیؤ ده هغه نه بحث کیږی. عوارض ذاتیؤ او غریبؤ مختصر تفصیل دا دے چه عارض به خپل معروض ته یا بلاواسطه (ذاتي نمبر۱) لاحق کیږی او یا بالواسطه که با الواسطه عارض کیږی نو بیا به خالی نه وی یا به دغه واسطه ده معروض جزء(ذاتي نمبر۲) وی یا به خارج وی که خارج وی نو یا به ده معروض سره مساوی(ذاتي نمبر۳) وی یا به د معروض نه عامه (غریب نمبر ۱) وی (۳) یا به معروض نه خاصه وی (غریب نمبر۲) یا به معروض نه مبائن وی (غریب نمبر۳) که عارض معروض ته (۱)بلاواسطه لاحق کیدو وه یا په واسطه د جزء سره لاحق کیدو یا په واسطه د امر خارج مساوی سره لاحق کیدو نو دی دریو ته عوارض ذاتیه وئیلے شی اول د پاره مثال چه عارض لاحق وی معروض ته باالذات لکه تعجب شو چه لاحق کیږی انسان ته بلاواسطه، دویم دپاره مثال لکه حرکت چه عارض دے انسان ته په واسطه د حیوان او حیوان د انسان جزء دے. دریم دپاره مثال لکه ضحك چه عارض دے انسان ته په واسطه ده تعجب او تعجب (متعجب) او انسان کښ مساوات دے لان کل انسان ، متعجب وکل متعجب انسان، او چه عارض لاحق وی معروض ته په واسطه د عام سره لکه حرکت چه لاحق کیږی ابیض ته په واسطه د جسم سره او جسم د ابیض نه عام دے اوکه عارض لاحق کیدو معروض ته په واسطه د (۲)خاص سره لکه تعجب چه لاحق کیږی حیوان ته په واسطه د انسان سره او انسان حیوان نه خاص دے او که عارض لاحق کیدو معروض ته په واسطه د (۳) امر مبائن سره لکه حرارت چه عارض کیږی ماء ته په واسطه ده نار سره او نار د ماء سره مبائن دے. دا اخری دری عوارض غریبه دی. حاصل دا چه د هر علم موضوع هغه شئ وی چه د هغه د عوارض ذاتیؤ نه په هغه علم کښ بحث کیږی

لکه علم طب موضوع بدن د انسان دے لانه یبحث فیه عنه، یعني علم طب کښې عوارض ذاتیه د بدن نه بحث کیږی چه بدن انساني نه بخار څنګه راځي اویه څه سره لرې کیږی او بلډ پریشر کله زیاتیږی او نارمل کیږی څنګه ؟ وغیره وغیره دغه شی علم نحو موضوع کلمه او کلام دی او د علم هندسه موضوع مقدار متصل یعني خط او سطح دی نو د علم منطق موضوع معلوم تصوری او معلوم تصدیقي دے.

وینبغي ان یعلم: غرض د مصنف دی عبارة نه تر وثانیها پورې یو اهمه فائده ذکر کوی چه د هغې حاصل څه په دا ډول دی چه د هر علم موضوع هغه شئ وی چه د هغه د عوارض ذاتیو نه په هغه کښې بحث کیږی لیکن په علم کښې د موضوع د وجود یا د عدم نه بحث نه کیږي او نه په علم کښې حقیقت او یاهیت د موضوع ذکر کیږی دا خبره مصنف په یو مثال سره واضح کړیده مثلا اوګوره کنه د علم طب موضوع بدن د انسان دے څکه چه علم طب کښې د عوارض ذاتیو د بدن نه بحث کیږی او په علم طب کښې د وجود د بدن او عدم د بدن نه بحث نه کیږی مثلا چه دلائل ذکر کړی په وجود د بدن د انسان باندی او نه د بدن حقیقت نه بحث کوی چه حقیقت د بدن حیوان ناطق دے او کنه، یا مثلاً نحویان عوارض ذاتیه د کلمه او کلام نه بحث کوی لیکن هغوی هم وجود د کلمه او کلام نه بحث نه کوی او نه حقیقت د کلمه او کلام نه بحث کوی.

سوال: چه د علم موضوع هغه شئ وی د کوم شئ عواض ذاتیو نه علم کښې بحث کیږی نو سوال دادے چه علم حکمت یو فن نوم طبعیات دے او د طبعیاتو موضوع جسم مطلق دے او علم طبعي کښې بحث د هیولیٰ او صورة جسمیه نه شویدے حالانکه هیولی او صورة جسمیه د جسم اجزاء دی یعني هیولی او صورة جسمیه د جسم ماهیت او حقیقت دی نو علم طبعي کښې بیا د حقیت د موضوع نه ولی بحث کیږی ؟ په ساده الفاظو کښې داسې اووایه چه طبعیاتو موضوع جسم دے او د جسم ماهیت هیولی او صورة دی او په طبعیاتو کښې بحث د هیولی او صورة یعني د ماهیت نه شوے دے دا ولی ؟

مصنف د جواب حاصل دادی چه دا کار د علم طبعي والو صحیح نه دے کنه

زما د معترض سره اتفاق دے د دی وجه نه خو په هغوی دغه اعتراض کیدے شی لیکن علم طبعی والا جواباً دا عذر پیش کوی چه د هیولیٰ او صورة نه بحث کول قصدا نه دی بلکه تبعًا دی یا دا جواب هم کیدے شی چه هیولی او صورة لازم او ملزوم دی او هیولیٰ نه هغوی بحث ځکه کوی چه په دی سره جزء لا یتجزّیٰ باطلوی نو د علم طبعی والو نظریه بغیر د ذکر د هیولیٰ او صورة نه نه مکمل کیږی.(لهذا زمونږ مجبوری په بدمعاشي مه حمل کوه---!)

فائده: د هیولیٰ او صورة جسمیه او جز لایتجزیٰ (ATOM) تفصیلی بحث به انشاء الله په هدایة الحکمت کښ تاسو ته راشی دلته صرف مختصر دا خبره ازده کړی چه جزء لایتجزیٰ معنیٰ داسی ورکوټے جز چه هغه تقسیم نه قبلوی نه په کټ کولو نه په ماتولو، نه په ټکولو، نه په شلولو، الخ او هیولیٰ (Image) باالعربیة (شَبح) معنیٰ اصل او ماده د شئ یو ساده مثال سره ځان په هیولیٰ پوهه کړه مثلاً مالوچ شو چه د هغے نه مختلف شیان جوړیږی مثلا کمبل، جرسی کوټ څادر کپړی وغیره او په ټولو کښ یو شئ شریك دے چه هغه مالوچ دی. دغه مالوچ ته هیولی د دغه شیان وئیلے شی. وللتفصیل مقام اخر فانتظر.

وثانیها مبادیة: هر علم دپاره دویم ضروری شئ هغه مبادی دی مبادی هغی ته وائی چه په هغی د علم مسائل موقوف وی مبادی په دوه قسمه دی. (۱)مبادی تصوریه (۲) مبادی تصدیقیه . مبادی تصوریه مبادی تصوریه په دری شیؤنو مشتمل وی. (۱)د علم د موضوع تعریف کول. (۲) د موضوع د اجزاؤ تعریف کول مثلا د منطق موضوع معلوم تصوری او معلوم تصدیقی دي تصور او د تصدیق تعریف کول. یا په تصدیق کښ د محکوم علیه محکوم به او د نسبت تعریف کول وغیره. (۳) عوارض ذاتیه د موضوع تعریف کول. مثلا کلمه او کلام د علم نحو موضوع دي د کلمي عوارضِ ذاتیه اسم فعل حرف کیدل. یا د تصور او د تصدیق بدیهی او نظری کیدل د تصور بدیهی او نظری تعریف کول دغه سی د تصدیق بدیهی او نظری تعریف کول وغیره او مبادی تصدیقیه هغه قضیئ دی چه هغه نه

قیاس مرکب کبری. (چه صغریٰ کبریٰ یا مقدم تالی دی) برابره خبره ده چه دغه مقدمات بدیهه وی یا نظریه وی که دغه مقدمات بدیهیه وی نو هغه مقدمات ته علوم متعارفه وئیلے شی او که نظریه وی نو بیا به مسلمه وی یعنی بغیر د دلیل نه به تسلیم شوی وی د تسلیم بیا دوه صورته دی. (۱) یا به خو د حسن ظن او حسن عقیدت د وجه نه تسلیم شده وی لکه د شاګرد استاد سره یا د مقلد مجتهد سره حسن ظن او حسن عقیدت وی د هغی په وجه ډیری قضایا شاګرد او مقلد بغیر د دلیل او چون چرا نه تسلیم کوی. دغه مقدمات چه حسن ظن او حسن عقیدت په بناء تسلیم شویدی دیته اصول موضوع وئیلے شی او که مقدمات تسلیم شده وی لیکن هغی کښی شك یا انکار وی نو داسی مقدمات ته مصادره وئیلے شی.

وثالثها المسائل: هر علم د پاره دریم ضروری شئ هغه مسائل دی مسائل نه مراد هغه قضایا دی چه په هغی علم مشتمل وی او په دلیل سره ثابت کولے شی لکه مثلا په منطق کښی قدم د واجب تعالی، علم د واجب تعالیٰ حدوث د ممکنات وغیره.

## فصل فی الرؤس الثمانية

(۱) یو غرض ده مصنف په دی فصل کښی تر اخر د کتاب پوری بیان د رؤس ثمانیه دے.(۲) دویم غرض بیان د فوائدو د رؤس ثمانیه دے او (۳) دریم غرض هغه رخصت اخستل دی د طالبانو نه په کلماتِ الوداعیو سره. (٤)څلورم غرض د مصنف هغه طلب د دعاء دے د طالبانو او طالباتو نه. (٥) پنځم غرض د مصنف هغه شکر ادا کول د باری تعالی دی په تألیف د کتاب باندی په والحمد لله رب العالمین سره. د رؤس ثمانیه مختصر حاصل دادی چه رؤس ثمانیه (۱)غرض د علم (۲) منفعت علم (۳) تسمیه د علم (٤) مؤلف نوم دے (٥) مرتبه د علم (٦) جنس د علم (۷) قسمت (۸) اقسام د تعلیم دی **مختصر فوائد د رؤوس ثمانیودا دی** چه غرض د علم معرفت څکه ضروری دے چه طالبانو او طالباتو محنت ضائع نه شی، (۲) منفعت معرفت څکه ضروری دے چه د علم په حاصلولو کښی محنت آسان شی تسمیه یعنی د علم وجه تسمیه معرفت ضرور دے دی دپاره چه مسائل اجمالی طور

باندی معلوم شی مؤلِف معرفت هم ضرور دے ځکه چه ده مؤلف د عظمت د وجه نه طالبان د کتاب نه هم مطمئن شی. مرتبه علم معرفت هم ضرور ده چه دا معلومه شی چه دا علم مرتبه چا نه مقدم د او چا نه مؤخر د جنس د علم معرفت هم ضرور دے چه دا د علوم عقلیو نه دے او که د علوم نقلیؤ نه دے چه د هغه مناسب بیا محنت اوکړے شی . او د مناسب استاد تلاش هم اوشی که فن د معقولاتو وی نو د منطقی او فلسفی خواته لاړ شی او که فن د منقولاتو وی نو د محدِّث او محقِّق نه ئي حاصل کړی . قسمت معرفت هم ضرور دے چه کتاب مسائل بابونو یا فصلونو ته منقسم دی چه د کوم فصل یا د باب مسائل حاصلول غواړي چه حاصلول ئےآسان شی . اقسام تعلیم معرفت هم ضرور دے یعنی چه مطلوب حاصلولو دپاره قیاس مرکب کول، یا د اشیاء تعریفونه کول یا مطلوب په یقینی طریقه حاصلو، اقسام د تعلیم، دادی تقسیم ، تحلیل ، تحدید ، برهان ، تقسیم معنیٰ مطلوب دپاره قیاس مرکب کول تحلیل مطلب ساده قیاس منطقی قیاس په سانچه کښ اچول (یعنی یو دعوه په قیاس اقترانی یا قیاس استثنائی سره ثابتول چه پخوا په ساده الفاظو کی تا ثابتوله) تحدید مطلب ده اشیاؤ تعریف کول. برهان مطلب مطلوب په هغه طریقه حاصلول چه هغه طریقه د منطقی قیاس وی او که منطقی قیاس نه وی لیکن دلیل یقینی وی چه په هغه سره مطلوب حاصل شی. هذا اخر ما اردت والحمد لله رب العالمین. بروز جمعرات ۱۰ نومبر ۲۰۱٦.



اللهم انا نسئلك زيادة فی الدين وبركة فی العمر وصحة في الجسد وسعة فی الرزق وتوبةً قبل الموت وشهادةً عند الموت ومغفرةً بعد الموت وعفواً عند الحساب واماناً من العذاب ونصيباً من الجنة. اللهم اجعل الريان بابنا والفردوس الاعلیٰ مقامنا ورزقنا النظر الی وجهك الكريم اللّٰهم اجعل قلوبنا سعيده وهمّنا بعيدا وفرحنا قريبا وسرورنايزيدا وعيشنا رغيدا وجعلنا ممن قيل فيهم لهم ما يشاؤن فيها ولدينا مزيد.



اللهم نسئلك محوالذنوب وستر العيوب ولين القلوب وتفريج الهموم وتيسير الامور واكتب لنا يا ربي خير الدنيا والاخرة .



غمِ دستار می خوردم مبادا بر زمیں اُفتد
ندانستم کہ ایں سر نیز زیرِ خاک خواہد شد



فلا كان هذا آخر العهد منكمو
و لا كان ذا التوديع آخر زادي

ابو حماس، احقر حسین علی، حفظہ اللہ، خریج جامعہ دارالعلوم کراچی ۱۴.

